(۵)ومنه:......مانقله ابن خلدون عن بعض الناس: أن أباحنيفةلم يحفظ إلاسبعة عشر حديثاً. قلنا: هذا إفترآء بلا إمترآء، كيف؟ وإنه مجتهد وفاقاً. وتلمذعلى أربعة الاف شيوخ، وألف كتاب الأثار وانتخبه من أربعين ألف حديث، وجمعت مروياته فى المسانيد وتمسک بالأحاديث وأجاب عن أحاديث الخصم. فافهم وحقيقة الأمر: أنه كان الغالب عليه الإستنباط وفقه القرآن والحديث، ولايسرد الأحاديث كسرد أهل الحديث، فلم يروعنه من كان طالب الألفاظ دون الفقه

(۶)ومنه:......أنه رمى بالإرجآء، رماه به الشيخ عبدالقادر الجيلى وغيره قلنا: أصحاب أبى حنيفة كلهم على خلاف رأى الإرجآء، فلو كان أبو حنيفة مرجئًا، لكان أصحابه على رأيه. وحقيقة الأمر: أن الإرجآء إرجاءان. أحدهما: الإرجآء بمعنى تاخير العمل وإخراجه عن الإعتداد، بحيث لايخرج تارک العمل عن الإيمان المنجى ولاعن الإيمان المعلى ولاشک فى كون هذا الإرجآء بدعة سيئة. وثانيهما: الإرجآء بمعنى تاخير العمل وإخراجه عن حقيقة الإيمان وأجزآءه بحيث لايخرج تارک العمل عن الإيمان المنجى وإن كان يخرج عن الإيمان المعلى. ولاشک فى كون هذاالإرجآء حقاً. كمالاشک فى كون علم الفارق بينهمامخطئاًأو مبغضاً.

(۷)ومنه:......أنه يقدم القياس على الحديث. قلنا: هذا إفترآء بلا إمترآء، كان يقدم الحديث وإن كان ضعيفاًعلى القياس، كمافى مسئلة نقض وضوء المصلى بالقهقهة، كمامرفى الفصل السادس: عن ابن عبدالبروأبى جعفر الشيزامارى. وحقيقةالأمر: أنه ماترک حديثاًإلالحديث معارض له. كمافى مسئلة رفع اليدين. وكان يرجح من الحديثين المتعارضين مايؤيده القياس كمافى مسئلةعدم صحة الصلوٰةعندالشروق دون الغرب. وكذا يرجح من معانى الحديث مايؤيده القياس كما فى مسئلة نكاح المحرم بالحج أوالعمرة وكما فى مسئلة نضح بول الصبى. من أراد الإطلاع على تفصيل هذه المسائل فليراجع إلىٰ منهاج السنن شرح الجامع السنن للترمذى. ولعمرى! أنه أحدث للدين ماهوخيروأسهل وأفيد للأمة، ولم يحدث فى الدين ماليس منه. هذاآخرماأردت إيراده، ولله حمداولاًوآخراً. وصلى الله تعالىٰ على سيدناخير خلقه محمدوآله وأصحابه وأتباعه اجمعين.



بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (جلداول)

الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام علي سيد الا نبيـاء والمرسـلين وعلى آله وا صحابه واتباعه اجمعين.

اسلام د ژوند په هر اړخ باندې احاطه کونکې دې دهر ورځې د حوادثو او واقعاتو متعلق راهنمائي کوي. د قران او احاديثو نصوص محدود دي او مسئلې او حوادثات (نوې نوې مسئلې) لا محدود دي. حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه فرمائي چه ما د پيغمبر عليه السلام نه اوريدلي فرمائيل ئې! «رب حامل فقه غير فقيـه و رب حامل فقه الىٰ هو افقه منـه. (ترمذي) څه کسان راشي چه د فقهې او حديثونو روايت کونکي وي ليکن هغوي فقيه نه وي او څه حاملين فقه داسې وي چه د هغوي طرف ته تلل کيدې شي چه هغې ددوي نه زيات پوهه وي.

نو په داسې صورت کښې دنصوصو عبارت، اشارت، دلالت، او اقتضاء، بنياد جوړولې شي اودمسائلو استنباط کولې شی چه دهغې دپاره تيزنظر مضبوط بصيرت اوښه ملکه داجتهاد اوفقاهت ډير زيات ضرورت وی.

الحمد لله جامعه دارالعلوم حقانيه په علوم دينيه کښې دخپل عظمت او شرافت اومضبوط علمی مقام په بنا باندې په ټول عالم کښې شهرت او مقبوليت لری. اودالله تعالی په خصوصی مهربانو کښې داهم دي چه د دارالعلوم دارالافتاء ته هم په په فقه او فتاوٰی کښې د قيادت حيثيت حاصل دې لکه څنګه چه قضاء او افتاء يونازکه ذمه واري ده دغه شان ددې شرائط او صفات هم نازک او حساس دي، نو دې دپاره د يو داسې شخصيت ضرورت وي چه صرف دا نه چه د فقهې په جزئياتو باندې ژور نظر لري او د قرآن او سنت نه په استنباط او استخراج باندې پوره ملکه حاصله وي بلکه چه هغه ته تبحر علمي. ژورنظر، دکتاب اوسنت په وسيع اوقسماقسم زړو او نوو ذخيره باندې ورته کامل عبور حاصل وي. ډيره مطالعه ئې وي د پيغمبر عليه السلام د کلام او احکام مزاج او روح ته د رسيدلو ښه ذوق او صلاحيت واله قوت نه هم مالامال وي. چه دمکتب اومدرسې د رسمي تعليم وتعلم نه زيات به ئې د اولياء الله د فيضونو نظر. دقدرت د طرفنه ورته خصوصي ورکړې وي. اود زړه او ذهن استعداد او پرواز ورته حاصل وي. نو د حقانيه پشان د علمي مرکز دارالافتاء دپاره د يو داسې سړي ضرورت وو چه ددې اوصافو سره

سره په خپل ذات کښې هم دیو مستقل علمي اداري او مرکزي حیثیت مالک وي. چونکه حضرت صاحب دامت برکاتهم په طالب علمي په زمانه کښې هم د امین الله في الارض حضرت مولانا نصیر الدین غورغشتوي رحمه الله نه دکړې شوی استفتاګانو جوابونه ورکول، بیا د ۱۳۷۳ھ نه تر ۱۳۸۲ھ پورې داکوړه خټك په مشهوره دینی درسګاه جامعه اسلامیه کښې نهه کاله پورې په حیثیت د مدرس اعلی، شیخ الحدیث اومفتي خدمات پوره کړل، په جامعه کښې ئې هرقسم کتابونه اوښودل چه په هغې کښې ترمذي شریف ټول سره د شمائل ترمذي، ابو داؤد د شریف مسلم شریف، موطاء امام مالک رحمه الله موطاء امام محمد رحمه الله سننین، مشکوٰة شریف جلالین، بیضاوی شریف، هدایه، مطول، قاضي، مسلم الثبوت، حمد الله، صدرٰی اوشرح جامي د یادؤلو قابل دي، بیادرې کالو پورې په دارالعلوم اسلامیه چارسده کښې دصدرالمدرسین، شیخ الحدیث او مفتي په عهدو پاتې شو، بیا د ۱۳۸۵ھ مطابق ۱۹۶۶ء نه واخلې تر ۱۹۹۲ء پورې، د حضرت صاحب ذات د برکتونو نه ډک د دارالعلوم حقانیه دجاذبیت او مقبولیت علامت جوړشو. په خپل مُلک اوبهر ملکونو کښې عموماً په اختلافی مسئلو کښې دحضرت صاحب فتوٰی آخري خبره (قول فیصل) ګڼړلې کیږي. په سپریم کورټ اوصوبائي هائي کورټونو چه د افغانیانو په علاقو کښې د ټولو نه مخکښې حضرت صاحب فتوٰی آخرنۍ خبره (قول فیصل) ګڼړلې کیږي. په سپرین کورټ او صوبائی هائي کورټونو کښې د حضرت صاحب فتوو ته قانوني حیثیت جاصل دې یو نبرک عالم دین او فرمائیل چه د افغانیانو په علاقه کښې د ټولو نه مخکښې حضرت صاحب د فتوٰی بنیاد کیښودو وو، علامه قاضي فضل الله (مقیم امریکه) په خپل یو مکتوب کښې لیکونکې دي، حضرت الاستاذ شیخ الحدیث مولانا محمد فرید صاحب. یقیناً چه په دې زمانه کښې فرید العصر او بُخاري زمانه دې، په نن وخت کښې دوی سلفو او خلفو حجت او یادګار دې مفتی صاحب حقیقتاً وارث الانبیاء دي چه د رسول کریم صلی الله علیه وسلم درې بنیادی ذمه دارئ وې یعنی (یتلو علیهم آیاته ویعلمهم الکتاب) دشریعت تعلیم (والحکمة) سیاست (ویزکیهم) تزکیه نفس یا طریقت او حضرت صاحب دامت برکاتهم دا درې واړه د خپلې سینې سره لګولې دي، او د اسلافو نمونه جوړ شویده، مونږ د حضرت صاحب ذات په نن زمانه کښې د حق یوه خصوصي نښه ګڼړلې د دارالعلوم حقانیه باني شیخ الحدیث مولانا عبدالحق رحمه الله



به فرمائیل چه مفتي صاحب د دارالعلوم حقانیه روح روان دې هم دا وجه ده چه دوي په یو وخت د دارالعلوم حقانیه د شیخ الحدیث او مفتي اعظم په عهدو باندې پاتې شو او د شیخ الحدیث مولانا عبدالحق رحمه الله د وفات نه پس د دارالعلوم حقانیه د دوره حدیث شریف ته دومره مشهورتیا حاصله شوه چه په ټول مُلک کښې د حدیثو طالبانو کښې د ټولونه زیاتو طالبانو راتګ دلته شروع شو. اودغه شان د طالبانو شمیر اووۀ سوو ته اورسیدو، او ورسره ورسره دده دتعلیم او تربیت او د فتاواؤ په رنړا کښې یو لوئې جماعت ته د مفتیانو جوړلو سعادت هم نصیب شو.

په دارالعلوم کښې دده دورکړې شوو فتوو شمیر پنځوس زره ښودلې شی اودغه شان دغیرمندرج شوو فتاؤو شمیرشل زره ته رسیږي چه حضرت صاحب به په کورکښې یا نورو ځایونوکښې لیکلي چه د هغې د لیکلو پوره اهتمام نه وو ددینه علاوه د جامعه اسلامیه اکوړه خټک اوچارسده د دولسو کالو فتاوي هم دي دیو محتاط اندازې مطابق د ټولو تعداد څه کم وزیات یو لاکھ ته رسیږي.

په دارالعلوم کښې په د نقل فتوؤ خدمت بعضې اساتذه کرامو او طلبائې کرامو کولو. چه په هغې کښې دهرې فتوې سره دنقل کونکي نوم لیکلې شوې دي، په ناقلینو کښې اکثریت سره مولانا قاضي انورالدین، مولانا مفتي غلام الرحمان، مولانا عبدالحلیم کلاچوي، اودحضرت صاحب فرزندان مولانا مفتي رشید احمد حقاني اومولانا حسین احمد صدیقي مهتمم دارالعلوم صدیقیه دې، د دارالعلوم حقانیه نه چه کوم رجسټر ملاؤ شو مولانا حسین احمد صدیقي صاحب دهغې فوټو سټیټ او کړو اومحفوظ ئې کړې، په اپریل ۲۰۰۰ء کښې د هغې په تخریج وحاشیې برابرولو او تبویب باندې دې فقیر کار اوکړو. او تقریباً د اپریل ۲۰۰۱ء پورې په یو کال کښې اولنې جلد ددې مختلفو مرحلو نه تیرشو او د لیکلو مرحله ئې شروع شوه په ترتیب او تخریج کښې د لاندینی امورو خیال سا تلې شوې دې.

(۱) مکررات پکښې حذف شوې دي.

(۲) د حضرت صاحب جوابونه پوره پوره نقل کړې شوې دي.

(۳) په استفتاء کښې څه واقعه یاحادثه خو بخوپه هغه اندازکښې پیش کړې شوې ده.

(۴) د هرې استفتاء سره د مستفتي نوم، تاریخ او د ځائې د لیکلو اهتمام کړې شوې دې، چه د عُرف او زمانې او علاقې په مناسبت سره د فتوې حال معلوم وي او یو تاریخي یادګار هم وي.

(۵) په تخريج او حاشيو کښې د معروف او متداولو کتابونو خصوصيت سره خيال ساتلې شوې دې.

(٦) په بعضې ځايونو د حضرت مفتي صاحب د نقطه نظر د زيات وضاحت کولو دپاره د هغوي د خپلو تصانيفو او تاليفاتو نه حوالې نقل کړې شوې دي.

(٧) د امام بخاري رحمه الله په شان مخکښې وحي. کتاب الايمان او کتاب العلم شروع کړې ده بيا د جديد فتاوي په طرز باندې د ابواب الفقه نه علاوه چه څومره بابونه دي هغه په اولنې جلد کښې جمع کړې شوې دي.

(٨) د بعضې ناقلينو په کوتاهئ او د فوټو کاپئ په وجه باندې د بعضې فتوو خط ډير کمزورې وو نو دې وجې نه هر باب او هر کتاب تياريدلو باندې به د دارالعلوم حقانيه استاد الحديث والتفسير حضرت مولانا مفتي سيف الله حقانى مدظله العالي په هغې نظر ثاني فرمائيله.

(٩) او کوم ځائې کښې چه به څه شک راتلونو حضرت مفتي اعظم دامت برکاتهم برکاتهم ته به رجوع کولې شوه.

(١٠) اولنې جلد چه مکمل شو نو مفتي اعظم د امت برکاتهم ته پيش کړې شو هغوي په ټول جلد باندې نظر واچولو او د بعضې ځايونو تصحيح ئې اوکړه.

په آخره کښې عرض دې. اگر چه د محنت د حد پورې خو څه کوتاهي نه ده شوې د فتوي اصل مقصد حکم بيانول دی مضمون نگاري، د تصنع او تکلف سره کول او پيچيده الفاظو پسې لګيدل او فصاحت او بلاغت اظهار کول نه وی. بيا هم که چالمه په يو ځائې کښې غلطي په نظر راغلهنو په اولنې فرصت کښې مونږ ته اطلاع راکړئ چه په راتلونکې ځل باندې د دې غلطئ ازاله اوکړيشي. پروردگار عالم ته مونږه لاس په دعايو چه کومو ملګرو بالخصوص محترم جناب سيدالرحمان صاحب چه هغوي په اردو ګرائمر او محاوراتو کښې د خپل طاقت مطابق کوشش کړې دې. محترم مولانا امداد الله حقاني، مولانا سعد الاحد حقانی، مولانا سيدنواز حقانی، مولوی ولی الزمان صديقی، او مولوی ولی الرحمن صديقي صاحب چه هغوي په کتاب پروف او نورو مرحلو کښې خدمات اوکړل، الله تعالى دې د دوې کوششونو ته قبوليت نصيب کړې. او الله تعالى دې د دې ټولو په علم او عمل کښې برکتونه واچوي، آمين.

طالب دعا:

محمد وهاب منګلوري عفي عنه

فاضل و متخصص دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک

خادم افتاء وتدريس دارالعلوم صديقيه زروبي ضلع صوابئ



# كتاب الايمان و العقائد

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۙ ①

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۙ ② مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ؕ ③

اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ؕ ④

اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۙ ⑤

صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ۙ ٥ غَيْرِ

الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ع ⑦

........



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كتاب الايمان والعقائد

## باب بدء الوحي

**د اولنئ وحی حالت:**

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره كښي څه فرمائي چه د وحي اولني حالت څه وؤ؟ د ليكلو په شكل يا د حضور ﷺ په زړه مبارك باندي د الهام په صورت كښي، او په دريم ځل چه كوم ايتونه لوستلي شوي وؤ هغه پيغمبر عليه السلام څنګه لوستلي وؤ؟

المستفتي: مولانا سعد الرشيد زيارت كاكا صاحب نوشهره.

**الجواب:** د قرآن مجيد د وحي كيفيت دا وؤ چه حضرت جبرائيل عليه السلام به لوستلو او پيغمبر عليه السلام به اوريدلو او د اولنئ وحي نه مراد هغه وحي ده كومه چه جبرايل عليه السلام په دريم ځل، اِقراء، ته تر ما لم يعلم پوري اولوستلو او حضور ﷺ واوريده. كما صرح به في اول صحيح البخارى،(۱)

**رحماني وحي بند او د شيطان ګمراه كول جاري دي**

**سوال:** علمائي دين او شرع متين ددي مسئلي په باره كښي څه فرمائي چه آيا وحى رحمانى بنده شوي ده او وحى شيطانى به تر قيامت پوري جاري وي نو آيا د اظلم نه دي؟ (نعوذ بالله)

المستفتي: مولانا عبدالستار ټاؤن شپ لاهور...يكم ذيقعده ۱۴۰۲ھ

(۱) عن عائشة ام المؤمنين رضى الله عنها ............ وهوفى غار حراء فجاءه الملک فقال اقرأ فقال فقلت ما انا بقارئ قال فاخذنى فغطنى حتى بلغ منى الجهد ثم ارسلنى فقال اقرأ فقلت ما انا بقارئ فاخذنى فغطنى الثانية حتى بلغ منى الجهد ثم ارسلنى فقال اقرأ فقلت ما انا بقارئ قال فاخذنى فغطنى الثالثة ثم ارسلنى فقال اقرأ باسم ربک الذى خلق خلق الانسان من علق اقرأ وربک الاكرم. فرجع بها رسول الله ﷺ يرجف فؤاده فدخل على خديجة بنت خويلد الخ الحديث.

(صحيح البخارى صفحه ۲ جلد ۱ باب كيف كان بدء الوحى الى رسول الله ﷺ)

**الجواب:** ځکه چه رحماني وحي تر قیامته پورې د هرې زمانې د اصلاح دپاره کافي ده(۱) نو ددې په بندیدلو کښې د ظلم بوئې پورې نه کیدل ثابت شو او شیطان نه خو د هرې زمانې د گمراه کولو دپاره د نوې چلونو ضرورت دې(۲)

# باب الایمان

## د یو عیسائي د ایمان په تعریف باندې اعتراض جواب

**سوال:** یو عیسائي دا اعتراض کړې که چرته څه د مولانا مفتي محمود صاحب په لاس باندې اسلام قبول کړم نود بریلویانو او اهل حدیثو په نزد به بیاهم کافر یم ځکه چه اسلام یو عالمي مذهب منلو والا خلقو د مسلمان او ایمان یو جامع تعریف اونه کړلو څوک وائي چه چاپه الله، فرشتو، پیغمبرانو، کتابونو او آخرت باندې، ایمان او ساتلو هغه مسلمان دې او بعضې وائي چه په شهادتینو اوپه ورځ دآخرت باندې ایمان لرې او قبلې طرف ته مخ کولو سره مونځ کوی لهٰذا عرض دادې چه دایمان متفقه تعریف څه دې؟

المستفتي: مجاهد امر تسري بازار گنج مغل پوره لاهور.

**جواب** خبر شئ چه د ایمان په تعریف کښې معنوي او حقیقي اختلاف نشته وهو التصدیق بجمیع ما جاء به النبي ﷺ مما علم مجیئه به بالضرورة.(۳) یعني ددین ضروریات او وضاحتونه منل، په نورو الفاظو کښې داسې اووایه، چه الله تعالی، فرشتې، آسماني کتابونه خاص طور قرآن کریم، پیغمبران وغیره دمحمدرسول الله ﷺ اود صحابه کرامو ﷺ دتشریح مطابق منل. په دې تعریف کښې دهیڅ اختلاف نشته. اوپه مؤمن مسلمان کیدو کښې صرف دعویٰ ناکافی ده. ځکه چه ایمان او اسلام یوه عملي معاهده ده. د نصاراؤ دپاره ضروري ده چه هغوي ذعیسائیت داسې تعریف راوړي چه دهغوي ټولو

﴿۱﴾ قال الله تعالی الیوم اکملت لکم دینکم واتممت علیکم نعمتی ورضیت لکم الاسلام دینا...... الآیة (پ: ٦ سورة المائدة آیت: ۳)

﴿۲﴾ قال الله تعالیٰ قال رب فانظرنی الیٰ یوم یبعثون قال فانک من المنظرین الیٰ یوم الوقت المعلوم قال فبعزتک لاغوینهم اجمعین الا عبادک منهم المخلصین (پ: ۲۳ سورة ص آیت: ۷۹ تا ۸۳ ع: ۱۴)

﴿۳﴾ قال الحصکفی الایمان وهو تصدیق محمد ﷺ فی جمیع ماجاء به عن الله تعالیٰ مما علم مجیئه ضرورة وقال ابن عابدین لما علم بالضرورة انه من دین محمد ﷺ بحیث تعلمه العامة من غیر افتقار الیٰ نظر واستدلال کالوحدانیة والنبوة والبعث والجزاء ووجوب الصلاة والزکاة وحرمة الخمر ونحوها. انتهیٰ (الدر المختار مع ردالمحتار صفحه ۰۱۳ جلد۱ باب المرتد.)



فرقوته شامل وي. په هغوي کښې څومره لوئې اختلاف دې په هغوي کښې تراوسه پورې د انجیل په تعین باندې اتفاق نشته، نودهغې په تشریحاتو باندې به څه اتفاق راشي. فقط

## حضور ﷺ حاضر ناظر او عالم الغیب گڼل

**سوال:** د حضور ﷺ حاضر ناظر کیدل د قرآن او حدیث نه ثابت دي که نه؟ او حضور ﷺ عالم الغیب گڼل څنگه دي؟

المستفتي: ملک فضل الرحمان جهلم..........۱۱۷۷۱۱۹۷۲

**جواب** د حضور ﷺ هر ځائې حاضر کیدل د قرآن او حدیث او فقهي سره متصادم دي او دهغه د ټولو غیبو څیزونو عالم الغیب گڼل کفر دې. فقط(۱)

## د حضور ﷺ پوره اختیارمند اود الله د نور نه راوتلي حصه منل شرک او کفر دي

**سوال:** یو سړې د اهل سنت والجماعت نه د عالم کیدو دعویٰ کوی اونبی کریم ﷺ حاضرناظر، عالم الغیب، او مختار کل مني اودا وائي چه الله تعالی د نور نه جوړ دې او حضور ﷺ د الله تعالی د واحد خاص نور نه د نورحصه جدا شوې او جوړشوې دې. نو آیا دا عقیده صحیح ده؟

المستفتي: فضل کریم

**جواب** دا سړې مشرک او کافر دې همدارنگه د عیسایانو پشان د ابن الله (الله لره ځوئې ثابتولو) قائل دې اهل اسلام او اهل سنت والجماعت ددې عقیدې نه بیزاره دی. (۲) وهو الموفق.

## د ټولونه مخکښې د محمد ﷺ نور پیدا کیدل اود اولیاؤ د تصرف عقیده

**سوال:** (۱) که یو سړې دا عقیده ساتي چه دټول مخلوق نه مخکښې د حضور ﷺ نور پیدا شوې دې او ددې نور نه عرش کرسی او قلم پیدا شوې دي دا عقیده ساتل شرک دې او که نه؟(۲) او دا عقیده چه د کامل ولي دتصرف

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ قل لایعلم من فی السمٰوات والارض الغیب الا الله. (پاره: ۲۰ سورة النمل رکوع: ۱ آیت: ٦)

وقال الله تعالیٰ ما کان الله لیطلعکم علی الغیب ولکن الله یجتبی من رسله من یشاء. (پاره: ۴ سورة ال عمران رکوع: ۹ آیت: ۱۷۹)

وفی فتاویٰ قاضیخان رجل تزوج امرأة بغیر شهود فقال الرجل .......... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

لاس د خپلو مریدانو نه لنډ نه دي ځکه چه د ولي لاس د الله تعالی لاس دي.
دا عقیده شرک دي که صحیح ده؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: نامعلوم.............. ١١٣٥١١٩٨٦

**جواب** د نور محمدي ﷺ دا مسئله د بعضې ضعیفو روایتونو نه ثابت ده ددې په انکار او اقرار یا تاویل باندې څه کفر یا شرک نه لازمیږي. (٢) که د تصرف نه مراد دا اصطلاحي تصرف یعني توجه مرادوي نو صحیح دې ﴿١﴾ دا خو غائبانه دعا ده او که غیبي تسلط مرادوي نو دا شرکِ جلي (ښکاره شرک) دي. وهوالموفق

**د مصیبت په وخت کښې د یوړي استاذ یا پیر د حاضریدلو او امداد عقیده**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه څوك دا عقیده ساتي چه دمشکل او مصیبت په وخت کښې استاذ یا پیر اګر که مړوي حاضریږی او مدد

(بقیه حاشیه) والمرء خدائے راو پیغامبر مرا گواه کردیم قالوا یکون کفرا لانه اعتقد ان رسول الله ﷺ یعلم الغیب وهو ماکان یعلم الغیب حین کان فی الاحیاء فکیف بعد الموت (فتاوٰی قاضیخان علی الهندیة ص٥٧٦ ج٣ باب مایکون کفرا من المسلم وما لایکون.

(٢) قال الله تعالیٰ ولو کنت اعلم الغیب لاستکثرت من الخیر ومامسنی السوء (پ: سورة اعراف آیت: ) قال الله تعالیٰ یعلم مابین ایدیهم وما خلفهم ولا یحیطون بشیء من علمه الا بماشاء. (پ:٣ سورة البقرة رکوع: ٢ آیت: ٢٥٥) قال الله تعالیٰ قل انما انا بشر مثلکم (سورة کهف) قال الله تعالیٰ سبحان ربی هل کنت الا بشرا رسولا (سورة الاسراء)

﴿١﴾ شیخ الحدیث مفتی اعظم صاحب فرمائي چه توجه تصرف او تاثیر یو څیز دي توجه یو خو یو نفساني کمال دې نه کرامت دې او نه په تصوف کښې دا خل دي، دا کافر او فاسق هم ورکولې شي او توجه د وسلې حکم لري. د جائز مقصد دپاره جائز د او ناجائز مقصد دپاره ناجائز ده. د توجه حقیقت په قوتِ ارادي سره یو کار کول دي. حضور ﷺ فرمائي ان من عبادالله من لو اقسم علی الله لابره رواه البخاری) یعني د الله تعالی بعضې بند ګان د همت او قوتِ ارادي خاوندان دي. او په حدیث قدسي کښې دي انا عند ظن عبدي بي رواه الشیخان یعني چه د چا الله تعالی با ندې د احسن ظن وي چه څه د کوم کار اراده کوم نو الله به هغه کوي نو الله تعالی هم هغه نامراده کوي نه. (سلسله مبارکه خاندان نقشبندیه مجددیه عثمانیه مالکیه ص: ١٧٤) وهاب



کوي او دخپل عنصري بدن سره حاضریږي چه کله مرید یا شاګرد مطمئن شی نو بیا ځي. دداسې عقیدې والا کس څه حکم دې؟

المستفتی: عبدالهادی، ظهیرالحق ګړهی کپوره مردان..... ١٤٠١هـ١٧١٥

**الجواب:** په جزوي طور باندې دا ممکن دي بلکه واقع دي.﴿١﴾ لیکن کلی طور او دقاعدې مطابق دحاضریدلو عقیده ښکاره شرک دې. ﴿٢﴾ او واقعې نه خلاف دي په دې کښې د غیر الله دپاره عِلم غیب ثابتیدل دي او د کربلا په مقام کښې د ,,انصر اخاك ظالماً او مظلوماً،، نه اجتناب راځی.﴿٣﴾

**د کلمه طیبه مقصد او د جبریه ؤ عقیده**

**سوال:** تبلیغي حضرات د کلمه طیبې مقصد د خدائې نه د کیدلو یقین او مخلوق د نه کیدلو یقین ښائي خو ځما په خیال کښې دا د جبریه ؤعقیده ده ددې متعلق وضاحت او کړئ؟

المستفتی: فضل ګل ملوزی صده کوهاټ...... ١٤ رجب ١٤٠٤هـ

**جواب** توکل علي الله او جبر کښې فرق نه کول غلط فهمي او بد فهمي ده دټول

﴿١﴾ قال ابن عابدین وعبارة النسفی فی عقائده وکرامات الاولیاء حق فتظهر الکرامة علی طریق نقض العادة للولی من قطع المسافة البعیدة فی المدة القلیلة وظهور الطعام والشراب واللباس عندالحاجة والمشی علی الماء والهواء وکلام الجماد والعجماء واندفاع المتوجه من البلاء وکفایة المهم من العداء وغیر ذالک من الاشیاء اه.

• (ردالمختار ص ٦٨٤ ج ٢ مطلب فی ثبوت کرامات الاولیاء والاستخدامات)

قال الشاه غلام علی عبدالله المجددی: میاں زلف شاه که یکے ازمخلصان حضرت ایشان (مرزا مظهر جان جانان) است گفت که من دراوائل حال که بخدمت حضرت ایشان ے آمدم در دشت راه گم کردم ناگاه بزرگے نموده شد مرا براه راست آوردند گفتم که شما کیستید گفتند تو برائے بیعت پیش کسی که میروی من همانم دوبار مرا این واقعه پیش آمد.

(مقامات مظهریه للشاه غلام علی عبدالله المجددی رحمهم الله تعالیٰ حرمة واسعة ص: ١٦١)

﴿٢﴾ یعلم مابین ایدیهم وماخلفهم ولا یحیطون بشیء من علمه الا بماشاء (پ:٣ سورة البقره ع:٢ آیت: ٢٥٥

﴿٣﴾ عن انس بن مالک قال قال رسول الله ﷺ انصر اخاک ظالما او مظلوما قال یارسول الله هذا ننصره مظلوما فکیف ننصره ظالما قال تأخذ فوق یدیه.

(صحیح البخاری کتاب المظالم ص ٣٣٠ ج ١ باب اعن اخاک ظالماً او مظلوماً)

اهل اسلام دا عقیده ده چه د الله د اجازت او امر نه بغیر هیڅ یو کارنهٔ کیږي.﴿۱﴾ او الله تعالی د هر کار خالق (پیدا کونکي) دي کاسب نه دي ﴿۲﴾ او په خلق او کسب کښې فرق کول پکار دي نو دې جماعت (ډلې) باندې اعتراض کول پخپله غلطي کول اهل حق ته دغلطئ نسبت کول دی. والی الله المشتکیٰ

## د نظم شاعر ته خالق نظم وئيل جائز نه دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه داسې وئیل چه، ددې نظم خالق څوک دي. دا جائز دې که نه؟

المستفتي: مولانا روح الامین صوابي مردان.............۱۲/۱۳/۱۹۸۷

**جواب** د هر څیز خالق یعني د نشت نه شته کول صرف الله تعالی دي شعر جوړولو والا جوړونکي او ویونکي دې ﴿۳﴾ خو خالق نه دې قال الله تعالی قل الله خالق كل شي الاية ﴿٤﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه على القارى ولايكون فى الدنيا ولا فى الاخرة شئ اى موجود حادث فى الاحوال جميعاً الا بمشيئته اى مقروناً بارادته وعلمه وقضاءه اى حكمه وامره الخ (شرح فقه الاكبر ص ۴۱ لله تعالیٰ اوجد المخلوقات لامن شئ)

﴿۲﴾ قال الملا على قارى وجميع افعال العباد من الحركة والسكون اى علم اى وجه يكون من الكفر والايمان والطاعة والعصيان كسبهم على الحقيقة اى لاعلى طريق المجاز فى النسبة ولا على سبيل الاكراه والغلبة بل باختيارهم فى فعلهم بحسب اختلاف اهوائهم وميل انفسهم فلها ما كسبت وعليها ما اكتسبت لاكما زعمت المعتزلة ان العبد خالق لافعاله الاختيارية من الضرب والشتم وغيره ذالک ولا كما زعمت الجبرية القائلون بنفى الكسب والاختيار بالكلية ففى قوله تعالیٰ اياک نعبد واياک نستعين رد على الطائفتين فى هذه القضية. والحاصل ان الفرق بين الكسب والخلق هو ان الكسب امر لا يستقل به الكاسب والخلق امر مستقل به الخالق وقيل ما وقع بآلة فهو كسب وما وقع لا بآلة فهو خلق ثم ما اوجده سبحانه من غير اقتران قدرة الله تعالیٰ بقدرة العبد وارادته يكون صفة له ولا يكون فعلا له كحركة المرتعش وما اوجده مقارنا لايجاد قدرته واختياره فيوصف بكونه صفة وفعلاً وكسبا للعبد كالحركات الاختيارية. ثم خالقها) اى موجد افعال العباد وفق ما اراد لقوله تعالیٰ الله خالق كل شئ الخ (شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص: ۴۹، ۵۰ افعال العباد كسبهم وخلق الله تعالیٰ)

﴿۳﴾ قال الملا على قارى والله تعالیٰ خالقها اى موجد افعال العباد وفق ما اراد لقوله تعالیٰ الله خالق كل شئ (شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص ۵۰ الفرق بين الكسب والخلق)

﴿۴﴾ پ: ۱۳ سورة الرعد ركوع: ۸ آيت: ۱۶)



## غير الله ته دآواز کولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یا رسول الله، یا غوث الاعظم، یا پیر بابا وئیل جائز دي که نه؟ ددې عقیده شرک دې یا نه؟ غیرالله ته د آواز کولو حکم واضح کړئ؟

المستفتي: عبدالمتین چمکني پشاور......۱/۱۲/۱۹۸۴

**الجواب:** غیر الله ته د غیبي تسلط په ارادې سره آواز کول ښکاره شرک دې او په نورو ارادو سره کله مو هم د شرک او کله جائز دې. (والتفصیل في الفتاوي الرشیدیه)

## په صحیح عقیدې سره یا محمد وئیل جائز دی

**سوال:** که د یو سړي عقیده صحیح وي پیغمبران او ولیان عالم الغیب او حاضر نه ګڼړي نو دهغوی دپاره په یا محمد سره آواز کول جائز دې که نه؟

المستفتي: نور الله هرات افغانستان

**جواب:** المحظور هو النداء بيا محمد على عقيدة علم الغيب واعتقاد التسلط الغيبى علما وقدرة لامحض النداء كما فى التشهد ﴿۱﴾ وكما فى حديث الطبرانى الصغير صفحه ۱۰۳ فمن قال يامحمد انى اتوجه اليک فلا اثم فيه الا ان الاجتناب عنه احوط فى غير التشهد والصلاة والسلام لكونه موهما ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د اولیاء الله نه مدد طلب کول په دې عقیده باندې چه دې ددې د پاره مقرر دې دا ښکاره شرک دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د اولیاؤ نه براه راست څه غوښتل او مدد غوښتل ناجائز دي لیکن زید وائي چه ولي مشکل کشا دې د ولي نه بذاتِ خو د هم غوښتل جائز دي پدیکښې څه بدي نشته وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: محمد پیر سدو مردان............۲۷/ستمبر ۱۹۸۲

---

﴿۱﴾ السلام عليک ايها النبى ورحمة الله وبركاته كما فى التشهد الصلاة.
﴿۲﴾ دا آواز (ندا) که د حاضر ناظر په عقیدې سره نه وي نو بیا هم په دې خاص آواز یعني په دې خاص نوم د آواز کولو ګنجائش نشته ځکه چه پیغمبر ﷺ ته د هغه په خپل نوم سره آواز کول منع دي. البته یا رسول الله وغیره پشان آواز کول خیر دې چه عقیده خرابه نه وي.

**الجواب:** په اولیاؤ وسیله نیول جائز دي ﴿۱﴾ لیکن د غیر الله نه په دې عقیدې سره غوښتل چه الله تعالی دې د حاجتونو ﴿۲﴾ پوره کولو دپاره مقرر کړیدي، دا شرک جلي دی ﴿۳﴾ وهو الموفق

**یا مصطفی مشکل کشا وئیل**

**سوال:** یا مصطفي، مشکل کشا وئیل شرک دي یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتي: لطیف الله مدرسه عربیه شمس العلوم......۱۵ شعبان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** دا الفاظ دحاظرناظر اوعالم الغیب په عقیدې سره وئیل شرک جلی دي اود عشق او محبت په انداز کښې وئیل جائز دي ﴿۴﴾ او پیغمبر ﷺ ته مشکل کشا وئیل په دې معني سره چه د خدائي دطرفنه د مشکلاتو د حل کولو دپاره مقرر دي دروغ دي او کفر دي. او په دې معني سره چه دهغه په توسل (وسیله نیولو) سره به مشکلات حل شي صحیح او جائز دي ﴿۵﴾

**د خوب تعبیراو. یا رسو ل الله په ما باندې رحم اوکړه. والا مسئله**

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي (۱) چه یو سړي خپل خوب داسې بیان کړي چه ماته په خوب کښې دنبي علیه السلام زیارت نصیب شو نو وې فرمائیل چه کوم سړې په ما باندې درود شریف وائي نو څه دهغه

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ وکانو من قبل یستفتحون علی الذین کفروا (پ:۲ سورة البقرة ع: ۱۱ آیت: ۸۹) قال الله تعالیٰ وماکان الله لیعذبهم وانت فیهم وماکان الله معذبهم وهم یستغفرون (پ: ۹ سورة الانفال ع: ۱۸ آیت: ۳۳) وقال الله تعالیٰ وکان ابوهما صالحا (پ: ۱۶ سورة الکهف ع: ۱ آیت ۸۲) وقال الله تعالیٰ وابتغوا الیه الوسیلة (پ: ۶ سورة المائدة رکوع: ۱۰ آیت: ۳۵)

﴿۲﴾ قال الله تعالیٰ ما نعبدهم الا لیقربونا الی الله زلفیٰ (پ: ۲۴ سورة زمر رکوع: ۱۵ آیت: ۳)

﴿۳﴾ (وتمامه فی رسالة مقالات ص ۵ و ص ۵۵ للشیخ محمدفرید دامت برکاتهم)

﴿۴﴾ قال الحصکفی کره قوله بحق رسلک وانبیائک واولیائک اوبحق البیت لانه لاحق للخلق علی الخالق تعالیٰ وقال ابن عابدین قد یقال انه لاحق له وجوبا علی الله تعالیٰ لکن الله تعالیٰ جعل لهم حقا من فضله او یراد بالحق الحرمة والعظمة فیکون من باب الوسیلة وقد قال الله تعالیٰ وابتغوا الیه الوسیلة وقد عد من اداب الدعاء التوسل علی ما فی الحصن وجاء فی روایة اللهم انی اسالک بحق السائلین علیک وبحق ممشای الیک فانی لم اخرج اشرا ولا بطرا الحدیث (الدر المختار مع ردالمحتار ص ۲۸۱ ج۵ کتاب الحظر والاباحة فصل فی البیع)

﴿۵﴾ قال العلامة ان عابدین قوله لانه لا حق للخلق علی الخالق قد یقال انه لاحق لهم وجوبا علی الله تعالیٰ لکن الله سبحانه وتعالیٰ جعل لهم حقا من فضله او یراد بالحق الحرمة والعظمة فیکون من باب الوسیلة وقد قال الله تعالیٰ وابتغوا الیه الوسیلة وقد عد من آداب الدعاء التوسل علی ما فی الحصن الخ (ردالمحتار ص ۲۸۱ ج۵ کتاب الحظر والاباحة فصل فی البیع)



فریاد ته رسیږم نو آیا د قران او حدیث په رڼا کښې غیر الله دستګیري او فریاد رسي کولې شی؟ (۲) او که څوک داسې اووائي چه اې د الله نبي په ما باندې رحم اوکړې نو آیا غیر الله رحم کولې شي.

المستفتي: شیر زمان هولز مین کمپني تبوک سعودي عرب ۲۲ا صفر ۱۴۰۱ھ

**جواب** د قرآن او سنت په رو سره غائبانه فریاد پوره کونکي او مشکلاتو حل کونکي صرف الله تعالی دې په خوب کښې د پیغمبر علیه السلام نه اوریدلې شوي کلام حجت او دلیل نه دې. د خوب وخت د غفلت وخت دې پس چه کوم خوب والا کلام او خبرې د قرآن او سنت سره متعارض وي د هغې به یا تاویل کیږي او یا به غلط وي والتاویل المناسب في المنام المسطور ان الله تعالي یغیث بجاهی وبکثرة صلاته علي هذا الرجل. (۲) حضور ﷺ رؤف او رحیم دې خو چه کوم رحم د علم غیب تقاضا کوي نو د هغې ثبوت به صرف د الله تعالی دپاره کولې شی. ﴿۱﴾

**بنده په کولو کښې با اختیاره دې**

**سوال:** یو سړې کانړې یا بل څه څیز او غورځوي او وائي چه دا ما او غورځولو که الله تعالی؟ په دلیل کښې وائي. فمن شاء فلیؤمن ومن شآء فلیکفر، چه مونږ ته اختیار شته او که اختیار نه وي نو پدې آیت عمل نشي راتلې. ددې مسئلې حقیقت واضحه کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد دین مسعود وزیرستان........۲۱۴۱۱۹۸۲

**الجواب:** دا سړې جاهل دې دې په توکل او تعطل (بې کاره کیدلو) کښې فرق نشي کولې او نه په خلق (پیدا کولو) او کسب (کول) فرق کولې شي. دمخلوق نه دنه کیدو یقین په اسبابو باندې عدم اعتمادته وائی، فافهم ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ (وعنده مفاتح الغیب لایعلمها الا هو) (پ: ۷ سورة الانعام رکوع: ۱۳ آیت: ۵۹) وقال الله تعالیٰ ولو کنت اعلم الغیب لاستکثرت من الخیر.. الآیة (پ: ۹ سورة الاعراف ع: ۱۳ آیت: ۱۸۸)

﴿۲﴾ قال الملاعلی القاری وجمیع افعال العباد من الحرکة والسکون ای علم ای وجه یکون من الکفر والایمان والطاعة والعصیان کسبهم علی الحقیقة ای لاعلی طریق المجاز فی النسبة ولا علی سبیل الاکراه والغلبة بل باختیارهم فی فعلهم بحسب اختلاف اهوائهم ومیل انفسهم فلها ماکسبت وعلیها ما اکتسبت لاکما زعمت المعتزلة ان العبد خالق لافعاله الاختیاریة من الضرب والشتم وغیره ذالک ولا کما زعمت الجبریة القائلون بنفی الکسب والاختیار بالکلیة ... الخ (شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص: ۴۹، ۵۰ افعال العباد کسبهم وخلق الله تعالیٰ)

**نوټ:** دآیت مطلب دادې چه بنده ته په کسب کښې اختیاردې مجبورنه دې.

## تقدیر اسباب پریخودل نه لازموي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د تقدیر فیصله په ازل کښې شوې ده چه الله تعالی دلوح محفوظ نه دانسان د ژوند فیصله د غریبۍ او مالدارۍ په صورت کښې کوي نو بیا مونږ په دنیا کښې دا تکلیفونه ولې اوچتوؤ بلکه چه څه ځمونږ په تقدیر کښې وي هغه به پخپله رسیږي، وضاحت اوکړئ او مطمئن کړئ؟

المستفتي: حکم خان رسالپور نوشهره......۲۸ ذوالحجه ۱۴۰۴ھ

**جواب** الله تعالیٰ چه حکیم مطلق دې او په بندګانو د مور پلار نه هم زیات مهربان دې دا فقیری او مالداری دازل نه شوی دی لیکن دا ئې زمونږ نه پټ ساتلی دی. اومونږ ته ئې داحکم کړې دې چه تاسو د ذرائع او اسباب استعمال کړئ تاسو ته به خپل قسمت رسیږي. او مونږ ته ئې دا اجازت نه دې راکړې چه ذریعې او اسباب پریږدو اود قسمت په انتظار کښې کینو.

**نوټ:** په داسې باریکو (نازکو) اود ذهنونو نه اوچتو مسئلو کښې سمعنا واطعنا والاعمل اختیارول دصحابه کراموشان دې تحقیق پسې تلل نه. ﴿۱﴾

## تقدیر څه شې دې ؟

**سوال:** د تقدیر حقیقت حقیقت څه دې، او په څه طریقې سره تقدیر بدلیږي او د مقدر په وجې مونږ مکلف ولې یو وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: میاں محمد ملاکنډ ایجنسي......۱۹۷۸ء۱۷۱۳

**الجواب:** تقدیر د الله دارادې نه عبارت دې او د الله تعالی د ذات او صفاتو علم په حقیقت کښې ځمونږ د طاقت نه بهر دې لهذا د تقدیر حقیقت معلومولو پسې ګرځیدل وخت ضائع کول دي. په داسې نازکو او عام ذهنونو نه اوچتو مسئلو کښې سمعنا واطعنا وئیل د صحابه کرامو شان دې (۲) او تقدیر مبرم نه بدلیږی او تقدیر معلق بدلیدې شي. وهو الموفق

﴿۱﴾﴿۲﴾ عن عائشة رضی الله عنها قالت سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول من تکلم فی شئ من القدر سئل عنه یوم القیٰمة ومن لم یتکلم فیه لم یسئل عنه رواه ابن ماجة. (مشکوٰة المصابیح ص ۲۳ ج ۱ باب الایمان بالقدر الفصل الثالث)



## په تقدیر او اسبابو او محنت کښې منافات نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو طالب علم په امتحان کښې فیل شي یا تاجر ته په تجارت کښې نقصان اوشي یا یو زمیندار په پټمي کښې خاوره (مصنوعي خاوره) نه غو رځوي او د حفاظت خیال نه کوي او د پټمي نه کم پیداوار اوشي نو دا خلق وائی چه ځمونږ په قسمت کښې ئې داسې لیکلې وو که مونږ زر وارې کوشش کړې وې خوختم کیدلې نه شوه. الله تعالی نه دغه شان منظوره وه اوس سوال دادې چه آیا خدائې ددوی په تقدیر کښې ناکامی لیکلې وه؟ آیا ددې ناکامیابو اصل وجه محنت نه کول دي او که تقدیرهم داسې وو بعضې خلق وائي چه مونږ مجبو ره یو که محنت کوؤ او که نه چه خدائې څه کوي هغه به کیږي. (۲) الله احسن الرازقین (ښائسته رزق ورکونکې) دې پدې کښې څه شبه نشته خو انسان له د رزق د حاصل کولو ذریعې تلاش کول پکار دي یا لاسونه په یو بل واړوي او کیني او وائي چه څه نه کوم هغه رازق دې بغیر څه تلاش او مخنت نه به خامخا ماته روزي راکوي. (۳) د خوراک څیزونو نرخونه او په هغې کښې بره خکته تلل راتلل د معاشرې په افرادو باندې منحصر ده او که دا نرخونه روزانه الله تعالی د فرشتو په ذریعې سره زمکې والؤ ته رسوي، او د ګرانئ ارزانئ هغه پخپله اعلان کوي؟

المستفتي: غلام نبي هوتي مردان.... ۱۲۱محرم الحرام ۱۳۹۲ھ

**جواب** (۱) الله تعالی ته په ازل کښې معلومه وه چه دا سړې به محنت نه کوي نو دهغه دپاره ئې ناکامي او نقصان مقدر کړو او ډیر کرته بغیر محنت نه هم دده دپاره کامیابي وی، ځکه چه الله تعالی ته په ازل کښې معلومه وه چه دا سړې به نقل یا سفارش وغیره سبب په کار راولي ګني نو په عقلی او نقلی دلیلونو سره دا خبره ثابته ده چه انسان خالص مجبوره نه دې (۲) د رازق دا مقصد نه دې چه انسان به هیڅ کار نه کوي. لکه چه د خالق دا مطلب نه دې چه انسان دې واده نه کوي او بچي دې ورته ملاؤ شي. (۳) ګراني او ارزاني د الله تعالی د طرف نه ده. ډیر کرته د معاشرې د افرادو د خواهش خلاف بره والې خکته والې کیږي (قال رسول الله ﷺ ان الله هو المسعر ﴿۱﴾ ددې دامقصد نه دې چه دمعاشرې دافرادو دبې اعتدالو

﴿۱﴾ عن انس رضی الله عنه قال قال الناس یارسول الله غلا السعر فسعر لنا فقال ان الله هوا لمسعر القابض الباسط الرزاق وانی لأرجوا ان القی الله ولیس احد منکم یطالبنی بمظلمة فی دم ولامال واسناده علی شرط مسلم وصححه ابن حبان والترمذی (ردالمحتار ص ۲۸۳ ج ۵ کتاب الحظر والاباحة فصل فی البیع)

پدې کښې څه دخل نشته، بلکه ددې دخل (اثر) خو موجود دې لکه چه په صحت او مرض کښې د بې اعتدالو اثر موجود دې. وهوالموفق

**قاتل ته په مقدر قتل باندې سزا ولې ؟**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه مرګ د الله تعالی د طرفنه مقرر شوې وي نو که څوک بل کس قتل کړي نو قاتل ته د هغې سزا ولې ور کولې کیږي؟

المستفتي: محمد قاسم متعلم دارالعلوم حقانیه.....۱۹ رجب۱۴۰۴ھ

**جواب** چونکه الله تعالی دا مقرر کړې چه دا قاتل به دا سړې په قصد اوارادې سره قتلوي نو ده ته به ددې اختیار او ارادې په دې فعل باندې سزا ورکولې کیږي لکه چه الله تعالی د یو طالب علم متعلق مقرر کړې وي چه دې به ارادةً کوشش نه کوي نو ممتحن به ئې فیل کوي یا لکه د مستفتي دناپوهئ او بې علمئ د وجې نه الله تعالی دده دپاره تپوس کول مقرر کړې او مفتي هم جواب ورکوی. وهوالموفق

**د معدن السرور رسالې (تالیف مولانا شمس الحق افغانی) بهاولپور تصدیق او تصویب**

عرض! دا رساله معدن السرور فتوي بهاولپور چه د علامه شمس الحق افغاني ده مجلس اهل السنت والجماعت شائع کړې نو بنده په مقدس جناب کښې عرض کونکې دې چه تصدیق او تصویب سره د مهر لګولو نه اوکړې ډیر مهرباني به وي. المستفتي :اهل سنت والجماعت پاکستان

**جواب** ددې ټولو جوابو سره څمونږ پوره اتفاق دې د حضرت مولانا شمس الحق افغاني صاحب رائې څمونږ رائې ده. نجدیه او سلفیه فرقې د دلیلونو په رنړا کښې په بدفهمئ او غلط فهمئ کښې مبتلا دې. فقط از (حضرت مولانا مفتي محمد فرید عفي عنه (شیخ الحدیث دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

**په کلمه طیبه کښې زیاتوالې او د شیعه ګانو عقیده**

**سوال:** حضرات علمائې کرامو او د ملت مشرانو ته عرض دې چه د نهم او لسم جمات د دینیات په نصاب کښې دوه کلمې راغلې دي (۱) لااله الا الله محمدرسول الله.. را هنمائي اساتذه ص ۲۷ جمات نهم و دهم وزارت تعلیم حکومت پاکستان (۲) لا اله الا الله محمدرسول الله علی ولی الله وصی



رسول الله وخلیفة بلا فصل. همدارنګې په صفحه ۳۶ ئې هره یوه د اسلام کلمه ګرځولې ده ددې حکم څه دې وضاحت ئې اوکړئ؟

المستفتي: محمد توصیف الرحمان عزیز الله جامع مسجد ګنبد والي جهلم شهر. ۱۵|۱۲\۱۹۷۲

**الجواب:** ښکاره خبره ده چه حضرت علي رضي الله عنه وصي کیدل یا خلیفه بلا فصل کیدل دروغ دي او د شیعه ګانو بې ثبوته دعوی ده البته کفر نه دې فسق او بدعت دې ﴿۱﴾ نو چه څنګه په زنا او سود سره په اولنئ کلمه کښې څه خرابي نه راځي البته په تابعدارئ او وفا دارئ کښې نقصان راځي نو دغه شان پدې دویمه کلمه کښې په مخصوص الفاظو او وفادارئ کښې نقصان راځي خو په وفادارئ او تابعدارئ یعني د ایمان په کمال کښې نقصان راځي او دا سړې فاسق او بدعتي دې ده پاک او ناپاک په ملاوټ او یو ځائې والي سره پاک هم ناپاکه کیږي. وهوالموفق

**د الله نه د علم، حکمت او قدرت نفي کول کفر دې**

**سوال:** (۱) لوقال احد لاحد من الذکر اوالمرءة الله جل جلاله خلقک ذکرا بغیر علم یعنی ولم یعلم والمناسب ان یخلقک امراءة اوقال خلقک امراءة بغیرعلم والمناسب ان یخلقک ذکرا هذا مفهوم الکلام. ماالحکم لقائل هذا الکلام؟

(۲) ولوقال احدا لدعاء الابلق شر من الله یعنی السحر والجادو اقوی من الله ماالحکم لقائل هذا الکلام؟ المستفتی: محمدصادق صابر هزاره.... ۲۴-جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**جواب:** هذا الشخص یصیر بهذه الالفاظ کافرا بالله لانه نفی عن الله تعالیٰ العلم ﴿۲﴾ وقال الله تعالیٰ ان الله بکل شئ علیم الآیة﴿۳﴾ ولانه نفی عن الله تعالیٰ حکمة وهوعلیم حکیم کما قال الله تعالیٰ انک انت العلیم الحکیم. الایة﴿۴﴾

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین اقول نعم نقل فی البزازیة عن الخلاصة ان الرافضی اذا کان یسب الشیخین ویلعنهما فهو کافر وان کان یفضل علیاً علیهما فهو مبتدع (ردالمحتار ص ۳۲۱ ج ۳ مطلب مهم فی حکم سب الشیخین) وفی الهندیة وان کان یفضل علیا کرم الله وجهه علی ابی بکر رضی الله عنه لایکون کافراً الا انه مبتدع والمعتزلی مبتدع الا اذاقال باستحالة الرؤیة فحینئذ هو کافر. خلاصه (هندیه ص ۲۶۴ ج ۲ منها ما یتعلق بالانبیاء علیهم الصلاة والسلام)

﴿۲﴾ وفی الهندیة یکفر اذا وصف الله تعالیٰ بما لایلیق به...... اونسبه الی الجهل او العجز او النقص ویجوز ان یفعل الله تعالیٰ فعلا لاحکمة فیه الخ. (عالمگیری ص۲۵۸ ج ۲ فصل فی موجبات الکفر)

﴿۳﴾ (پ: ۱۰ سورة الانفال رکوع: ۶ آیت: ۷۵)

﴿۴﴾ (پ: ۱ سورة البقرة رکوع: ۵ آیت: ۳۲)

(۲) ان الله خالق كل شئ من الخير والشر ومريد كل شئ من الخير والشر وودع فى كل شئ خواص متفاوتة بعضها اقوٰى من بعض آخرفان كان قصد هٰذا القائل تفاوت التاثير فلاحرج عليه وان كان قصده تنقيص كلام الله تعالىٰ فهو كافر ﴿۱﴾ فقط

**ددې اسلام نه خو كفر ښه دې ددې كلماتو حكم**

**سوال:** يو سړې د ښځې خاوند په مينځ كښې د اختلاف اچولو كوشش اوكړو نو ښځې ورته خيرې شروع كړې خاوند ورته اووئيلې چه خيرې مه كوه اسلام ددېنه منع كړې ده بلكه د هدايت دعاګانې كوه نو ښځې ئې د خولې نه دا الفاظ ويستل چه د دداسې اسلام نه كفر ښه دې كفر ښه دې. نو په دې الفاظو سره ښځه كافره شوه او كه نه ؟او نكاح باقي پاتې شوه اوكه نه؟

المستفتي: محبوب الرحمان....... ۱۲/۱۱/۱۹۷۴

**جواب** په ظاهره د ښځې مراد دادې چه دداسې اسلام نه چه په هغې كښې دظالم دپاره بددعا (خيرې) منع وى كفرښه دې لهذا دا خبره اګرچه غلطه ده ليكن كفريه نه ده، پس په دې صورت كښې تجديد د نكاح كول احوط دى ضرورى اوفرض نه دى. ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال ابن عابدين و كذا لو اسنده الى امارة عادية يجعل الله تعالىٰ......... والشمس والقمر بحسبان اى سيرهما بحسبان واستدلالى بسير النجوم وحركة الافلاک على الحوادث بقضاء الله تعالىٰ وقدره وهو جائز كاستدلال الطبيب بالنبض على الصحة والمرض ولو لم يعتقد بقضاء الله تعالىٰ او ادعى علم الغيب بنفسه يكفر. (ردالمحتار ص۳۲۵ ج۳ مطلب فى دعوى علم الغيب)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين انه لايكفر بشتم دين مسلم اى لايحكم بكفره لامكان التاويل ......... اقول وعلى هذا ينبغى ان يكفر من شتم دين مسلم ولكن يمكن التاويل بان مراده اخلاق الرديئة ومعاملة القبيحة لا حقيقية دين الاسلام فينبغى ان لايكفر حينئذ واقره فى نور العين......... واما امره بتجديد النكاح فهو لا شک فيه احتياطاً خصوصا فى حق الهمج الارذال الذين يشتمون بهٰذا الكلمة فانهم لا يخطر على بالهم هٰذا المعنى الخ (ردالمحتار ص۳۱۶ ج۳ مطلب فى حكم من شتم دين مسلم)



**قبر ته سجده د عبادت كول مكروه دي**

**سوال:** عالمان ددين په دې مسئله كښې څه فرمائى چه قبرته يا قبرته نزدې سجده كول څنګه دى شرك دې يا كبيره ګناه ده؟ د قرآن اوسنت په رڼا كښې جواب راكړئ.

المستفتى: مولوى نورالحق باره بازار خيبرايجنسى ۱۶ ربيع الثانى ۱۴۱۱ھ

**جواب** قبرته نزدې سجده كول مكروه تحريمى دى. ﴿۱﴾ اوقبرته سجده د عبادت كول شرك دى. اوقبرته سجده دتعظيم كول حرام دى.

والفرق بينهما في كون الساجد معتقدا لكون المسجود له مسلطا علي الساجد علما وقدرة او غير معتقد لهذا. كما في الهندية ص ۳۶۸ ج۵ من سجد للسلطان علي وجه التحية اوقبل الارض بين يديه لا يكفر ولاكن يأثم وارتكابه الكبيرة وهوالمختار وقال الفقيه ابوجعفر رحمه الله وان سجد للسلطان بنية العبادة اولم تحضره النية فقد كفر كذا في جواهر الاخلاطي ﴿۲﴾

**شريعت پريږده.. دا الفاظ دَ كفر دى**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائي چه د يو سړي نه دهغه خور د جينئ رشته او غوښتله نو هغه سړي (زيد) په دې شرائطو منظوره كړه چه واده وغيره به شرعي طريقه باندې وي ګانې بجانې او ډولونه به پكښې نه وي نو د زيد او رونړو او خور اووې چه د شريعت خبرې پريږده په ودونو كښې خو دا رسمونه او رواجونه وي.چه شرائط ئې اونه منل،نو زيد بل ځائې كښې رشته اوكړه او هغوي ئې شرطونه اومنل نو اوس چه د زيد رونړو او خور دا الفاظ استعمال كړي دي چه شريعت پريږده.ددې حكم څه دې؟او ددوې دنكاح به څه كيږي؟

المستفتى: محمد اقبال مدرسه كنز العلوم ګجرات مظفر ګړه ۱۷ مئ ۱۹۸۳ء

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدين وتكره فى اماكن ......... ومقبرة...... لان اصل عبادة الاصنام اتخاذ قبور الصالحين مساجد وقيل لانه تشبه باليهود وعليه مشى فى الخانية ولا بأس بالصلاة فيها اذا كان فيها موضع اعد للصلاة وليس فيه قبر ولانجاسة كما فى الخانية ولا قبلته الى قبر حلية. (ردالمحتار ص۲۷۹ ج۱ مطلب تكره الصلاة فى الكنيسة)

﴿۲﴾ (هنديه ص۳۶۸ ج۵ الباب الثامن والعشرون فى ملاقات الملوک والتواضع لهم الخ)

**الجواب:** په دې شرط که لیکلي شوې خبرې رشتیا او ثابتې وي نو په دغه کسانو چه د شریعت ردئې کړې ایمان او نکاح تازه کول ضروري دي د کفر د کلمو په وئیلو سره نه نکاح باقي پاتې کیږي او نه حقوق. یدل علیه ما في الهندیة و اذا قال الرجل لغیره حکم الشرع فی هذه الحادثة کذا فقال ذالک الغیر (من برسم کارمی کنم نه بشرع) یکفر عند بعض المشائخ (هندیة ص ۲۹۹ جلد۲) والله اعلم﴿۱﴾

**د نور اوبشر مسئله. دَ علم کلی، اختیار کلي او حاضرناظر عقیدو وضاحت**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمایئ چه حضور علیه السلام بشر هم دي اونورهم مګر لِبا ساً (ظاهراً) بَشر او حقیقتاً نوردې (۲) دده د پاره د کائنات د ابتداء نه نه جهنم او جنت ته داخلیدلو پورې علم کلي حاصل دې او هغه مختار کل او حاضرناظردي که دا عقیدې غلطې وي نو ددې سړي څه حکم دې؟

المستفتي: حافظ افسر ګنډي خانخیل لکي مروت...... ۱۰ ستمبر ۱۹۹۰

**جواب** کوم سړې چه پیغمبر صلی الله علیه وسلم بشر او سید البشر منی او پیغمبر صلی الله علیه وسلم د پاره ټول هغه څیزونه مني چه د نبي علیه السلام د شان سره مناسب وي وهو الاستغراق العرفی کما فی اتینٰه کل شئ سبباً (۲) او اوتیت من کل شیئ الایة ﴿۳﴾ او د مختارکل دا معني کوي چه کومه د عربئ معني ده، په ټولو مخلوقاتو کښې بزرګ ترین او د ټولو امورو د مشاهدې نه دا مراد وي چه پیغمبر علیه السلام د الله تعالی په ذات او صفاتو کښې مستغرق اوفنا دې او دالله تعالی په حکم بعضې مناسب کائنات طرف ته هم نظر کوی. (۴) نو دا سړې مشرک نه دې ګینی مشرک به وي (۵) (**نوټ**): دا خلق (بریلیان) په عشقِ رسول صلی الله علیه وسلم کښې بې اعتدالئ په شرک مبتلاء (اخته) کړې دي. وهو الموفق

﴿۱﴾ عالمګیری ص ۲۷۲ جلد ۲ موجبات الکفر انواع)

﴿۲﴾ (پ: ۱۶ سورة الکهف رکوع: ۱ آیت: ۸۴)

﴿۳﴾ (پ: ۱۹ سورة النمل رکوع: ۱۷ آیت: ۲۳)

﴿۴﴾ قال الله تعالیٰ ولا یحیطون بشئ من علمه الا بما شاء...... اه (پ: ۳ سورة البقره رکوع: ۲ آیت: ۲۵۵)

﴿۵﴾ وعنده مفاتح الغیب لایعلمها الا هو ویعلم ما فی البر والبحر وماتسقط من ورقة الا یعلمها. الآیة (پ: ۷ سورة الانعام رکوع: ۱۳ آیت: ۵۹)



**ستا په سبق دې اسمانی تندر اوغورځیږی.. دا الفاظ د کفرنه دی**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د زید لس کلنې بچې قران مجید په ناظره وائی د زید ښځه هنده، په غصه کښې راغله په کنځلو کښې ئې ورته د الفاظ هم استعمال کړل چه ستا په سبق دې تندر پریوځی،، یعنی ستاپه سبق دې آسمانی بجلی راوغورزیږی. نو ددې الفاظو استعمالولو سره څه فرق پریوځی. او کفاره ئې څه ده؟ اوپه نکاح څه فرق پریو ځې که نه؟

المستفتي: متعلم جامعه حقانیه... ۴ ستمبر ۱۹۸۲

**جواب** دا جاهلانه غصه ده په دیکښې کفریه یا شرکیه یا قسمیه الفاظ نشته نو کفاره هم نه لازمیږي. ﴿۱﴾

**قران سره به مې جماع کړې وی وئیلو سره د کفر لازمیدل**

**سوال:** یو سړې دا الفاظ وئیلې دی که ما دا بد کار اوکړو نونعوذ بالله د قران سره چه مې جماع کړې دي بیاهغه کارهم اوشو اوس هغه سړې غواړي چه ما دا کفریه الفاظ وئیلې دي اوس به ماته کوم عذاب راکولې شي. او توبه ئې کړې ده خو دا سړې به اوس کافر وی یانه، اوکفاره به ورکوی یا نه؟

المستفتی: عبدالمالک نریاب کوهاټ..... ۲۷ شوال ۱۴۰۱

**جواب** داد قسم معامله ده لکه، ان فعلت کذا فانا یهودي لکون جماع المصحف تو هینا و کفرا، بس کله چه هغه سړې بد کار اوکړو نو خا نث شو او که ددې سړي عقیده داوه چه په دې صورت کښې بدکارکولو والا کافر کیږي نو دا سړې کافر هم شو کما في الهندیه وغیره (۲) ګني نه کافر کیږي بهرحال دا سړې دې توبه او استغفار اوکړي اوایمان دې تازه کړي او احتیاطاً د کفاره هم ورکړي، وهوالموفق

﴿۱﴾ وفی الهندیة وماکان خطأ من الالفاظ ولا یوجب الکفر فقائله مؤمن علی حاله ولا یؤمر بتجدید النکاح والرجوع عن ذالک کذا فی المحیط (فتاویٰ هندیه ص۲۸۳ ج۲ قبیل الباب العاشر فی البغاة)

﴿۲﴾ ولوقال ان فعل کذا فهو یهودی اونصرانی او مجوسی او بریٔ من الاسلام او کافر او یعبد من دون الله او یعبد الصلیب اونحو ذالک مما یکون اعتقاده کفرا فهو یمین استحسانا کذا فی البدائع حتی لوفعل ذالک الفعل یلزمه الکفارة وهل یصیر کافرا اختلف المشائخ فیه قال شمس الائمة السرخسی رحمة الله علیه والمختار للفتویٰ انه ان کان عنده انه یکفر متی اتی بهٰذا الشرط ومع هٰذا اتی یصیر کافرا لرضاه بالکفر...... وان کان عنده انه اذا اتی بهٰذا الشرط لا یصیر کافرا لایکفر الخ (عالمګیری ص۵۴ جلد۲ الباب الثانی فیما یکون یمینا وما لایکون یمینا)

**د کافر د جهنم په همیشګئ باندې د اعتراض جواب**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د دوزخ دپاره فنا شته که نشته؟ که دیو سړي دا عقیده وي چه یو سړي ټول عمر مثلاً ۲۰ کاله کفر اوکړو هغه ته الله تعالی څنګه همیشه عذاب ورکوي دا خو ظلم دې سزا د جرم مطابق پکار وي. یو عالم وئیلي دي چه آخره کښې به کافر هم جنت ته لاړشي آیا داعقیدې داهل سنت والجماعت دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا قاري عبدالله بنوں..... ۲۲صفر ۱۴۰۳ھ

**جواب** د اهل سنت والجماعت دا عقیده ده چه. دوزخ به همیشه دپاره وي او کفار به هم همیشه دپاره په هغې کښې وي الله تعالی د کافرانو متعلق د خالدین فیها ابداً ﴿۱﴾ الفاظ استعمال کړي دي. چه د کافرانو متعلق په دوزخ کښې همیشه پاتې کیدو باندې دلالت کوي. دارنګې الله تعالی فرمائي في العذاب هم خالدون ﴿۲﴾ چه په همیشوالی باندې دلالت کوي. او دا قول هم کلما نضجت جلودهم الایة ﴿۳﴾ په دې مقصد باندې دلالت کوي چه دا کافران به د اور سره عادت کیږي نه بلکه بې شمیره کلونه په عذاب تیریدو باندې به هم د اول داخلیدو پشان وي.

ویدل علیه ما اخرجه الطبرانی وجعل لهم الابد وما اخرجه ایضا خلود بلاموت وما اخرج الشیخان یا اهل النار لاموت وکذا حدیث ذبح الموت. واما ما روی عن ابی هریرة رضی الله عنه وابن مسعود رضی الله عنه وغیرما" لیاتین علی جهنم زمان لیس فیها احد فقال البغوی ان ثبت فمعناه ان لا یبقی فیها احد من اهل الایمان کذا فی التفسیر المظهری ص۵۵ سورة هود.

پس دې عقیدې ساتلو والا عالم ددین د ضروریاتو نه منکر دي او داسې عالم د کافرانو او اهل زیغ خلقو امام ګڼړل پکار دي. اودویمه مسئله داده چه د قران مجید دایت، لو ردوا لعادوا الی ما نهوا، الایه ﴿۴﴾ نه هم دا معلومیږي چه په کفرباندې خاتمه دهغه سړي کیږي چه دهغه متعلق الله تعالی ته معلومه ده که دې همیشه ژوندي وي نو کافر به وي نو بس کفرهم

﴿۱﴾ قال العلامه محمد عبدالعزیز الفرهاری باقیتان لا تفنیان ولا یفنیٰ اهلها ای دائمتان لا یطرء ای لا یعرض علیهما علم مستمر لا دائماً ولا زمانا یعتد به لقوله تعالیٰ فی حق الفریقین ای اهل الجنة والنار خالدین فیها ابداً ای فی الجنة او فی النار الخ (النبراس شرح شرح العقائد ص ۲۲۲ الجنة حق والنار حق)
(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



همیشه شوا وسزائې هم همیشه شوه دارنګې حکومت چه یو جرم باندې سزا مقرر کړې نو په دغه جرم باندې اقدام ددغې سزا التزام دي. فافهم وهو الموفق

**یا رسول الله او یا محمد وئیل شرک دي که نه؟**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یا رسول الله یا محمد وئیل شرک دي که نه؟

المستفتي: سید هارون علي شاه تاروجبه پشاور ۲رمضان المبارک ۱۴۰۱ھ

**جواب** کوم سړې چه پیغمبر علیه السلام حاضر ناظر او عالم الغیب ګڼړي هغه د قرآن او حدیث او آثارو (د تابیعینو او صحابو اقوال) او د فقهاؤ دعبارتونو په بناء باندې کافر او مشرک دې البته د خوند یا محبت دپاره ندا کولو ته شرک وئیل جاهل یا متجاهل دي. دارنګې په صلاة او سلام کښې آواز کول جائز دی کله چه د ملائکو د رسولو په عقیدې باندې وی ﴿۲﴾ وهو الموفق

**غیرارادی طورباندې ذهن کښې د الله تعالی د وجود باره کښې خیالات راتلل کفرنه دي**

**سوال:** ماته په مونځ کښې د الله تعالی د وجود متعلق مختلف خیالات راځي په ورکوالي مې د چانه اوریدلي وؤ چه الله تعالی نور دي نو اکثر د خدائې تعالی د وجود متعلق یوه د نور د کرښې پشان تصویر ذهن ته راځي یو څو میاشتې مخکښې مې په اسمان کښې شنې، سرې اوزیړې وریځې پشان کرښې لیدلي وې اوس راته هغه په مونځ کښې مخې ته راځي او کله کله څه تصویر هم په خیال کښې راځي براه کرم دې باره کښې تسلی راکړئ چه په کفر کښې مبتلا نه شم.

المستفتي: کفایت احمد سي تي ټیچر نوشهره زیارت کاکا صاحب ۷/۱۱/۰۱/۱۹۸۹ء

(بقیه حاشیه) ﴿۲﴾ (پ:۶ سورة المائده آیت:۸۰) ﴿۳﴾ پ:۴ سورة النساء رکوع:۵ آیت:۵۶) ﴿۴﴾ (پ:۷ سورة الانعام رکوع:۸ آیت:۲۸)

﴿۱﴾ علامه مفتی اعظم محمد فرید صاحب دامت برکاتهم فرمائی چه غیرالله ته نداء په پنځه قسمه ده.(۱) د پیغمبرو غیره کشف اوشی او نداء اوکړی نو دا جائزده.(۲) اودې عقیدې سره چه فرشتې ئې ورته رسوی صرف صلاة او سلام کښې جائزده.(۳) اودې خیال سره چه ممکن ده چه الله تعالی به ئې ورته اورسوی داموهم د شرک دي.(۴) اود عشق او محبت په وجه د حاضر او مخاطب په شان نداء کول نه شرک دې اونه موهم د شرک دي بلکه معمول او معروف ده.(۵) اود علم غیب اوعلم کلی اعتقاد سره شرک جلی دي. اود اهل شرک او اهل بدع د شعارنه اجتناب ضروری دي.(مقالات ص۲۰ لفقیه العصر مولانا مفتی محمد فرید مجددی)

**الجواب**: داخيالات راتلل نه شرک دي نه ګناه ده﴿۱﴾ بلکه څنګه چه پيدائشي ړوند ديوسړي په باره کښې په خيالاتو کښې مبتلا وي نه هم داسې ئې بيا هم چه ستا په دماغو کښې کوم خيالات تصويرونه انوارات وغيره راځي د هغې متعلق په زړه کښې دا عقيده اوساته چه دا خدائې نه دي. وهوالموفق

## د امام اعظم ابو حنيفه او علم غيب

**سوال**: دامام اعظم په نزد يو نبي يا ولي له علم غيب کُلي ثابت دي يا نه؟

المستفتي: محمد اکرم هوتي مردان...... ۲۵جولائي ۱۹۷۹

**جواب** په تفسير مدارک کښې ﴿۲﴾ د سورة لقمان په آخره کښې د امام ابو حنيفه رحمه الله نه نقل دي چه د مفا تيح الغيب علم نه نبي او رسول ته ورکړې شوې او نه مقربې فرشتې ته نو اوليائې کرامو ته د علمِ غيبِ کلي حاصليدل به دکوم ځائې نه ثابت شي.

## د وحي او کشف په ذريعې سره معلومات علم غيب نه دي

**سوال**: کتاب الايمان الفصل الاول عن عمر بن الخطاب قال بينما نحن عند رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات يوم اذ طلع ...... الخ ثم قرء ان الله عنده علم الساعة الخ فکيف يخفى عليه ذالک والاقطاب السبعة من امة الشريفة يعلمونها وهم دون الغوث فکيف بالغوث فکيف لسيد الاولين والآخرين کلمة العلياء (ابريز ص۱۰۵ علوم خمسه) بل ځائې کښې دى: کيف يخفي امرالخمس عليه والواحد من اهل التصرف من امة الشريفة لا يمکنه التصرف الا بمعرفة هذه الخمس، (ابريز ص ۱۴۱ مطبوعه مصر) مشکوٰة کښې دي چه په بدر کښې پيغمبر عليه السلام فرمائيلي وو چه

﴿۱﴾ وفى الهندية من خطر بقلبه ما يوجب الکفر ان تکلم به وهو کاره لذالک فذالک محض الايمان (عالمگيرى ص۲۸۳ ج ۲ قبيل الباب العاشر فى البغاة)

وقال الحصکفى فلا تصح ردة مجنون ومعتوه وموسوس قال ابن عابدين ولکن موسوس له او اليه اى تلقى اليه الوسوسة وقال الليث الوسوسة حديث النفس (الدر المختار مع رد المحتار ص۲۱۲ ج ۳ مطلب ما يشک فى انه ردة لا يحکم بها)

﴿۲﴾ قال صاحب المدارک ............ عن ابى حنيفة لا يعلم هذه العلوم الخمس الا الله. (تفسير مدارک پ: ۲۱ سورة لقمان آيت: ۳۴)



صباله به دلته فلانکې سړې مري او دلته فلانکې نو ددې نه دا معلوميږي چه پيغمبر عليه السلام ته معلومه وه چه صباله به څه کيږي، يعني باى ارض تموت والا علم ورته الله تعالى ورکړې وو، دارنګې په مناقب اهل بيت کښې تلد فاطمة ان شاء الله غلاماً او په عرائس البيان او تاريخ الخلفاء کښې دصديق اکبر حضرت عائشې رضي الله عنها ته دهغې د خورخبر ورکول کومه چه دخپلې مورپه خيټه کښې وه وغيره، نو آيا دې واقعاتو سره هغه دپاره علم غيب نه ثابتيږي؟ پس عرض دادې چه ددې دلائلو به مونږ څه جواب ورکوو؟ وضاحت سره دا مسئله بيان کړئ.

المستفتي: مولانا غلام يحي پنډي ګهيپ.... ۲ ستمبر ۱۹۷۵

**جواب** چه کله د قران ﴿۱﴾ او حديثونو ﴿۲﴾ او آثارو او د متکلمينو او فقهاؤ عبارتونو ﴿۳﴾ نه دا خبره ثابت ده چه الله تعالى د ټولو څيزونو علم چاته هم نه دې ورکړې نو د صوفياؤ وغيره د کتابونو (چه هغه محفوظ هم نه دى او نه ئې الله تعالى د حفاظت وعده کړې) عبارتونه يا خو پکښې د ځان نه څه وردننه شوي او يا پکښې غلطي ده البته د جزئياتو خبر ورکول په وحي او کشف سره دا د رواياتو او واقعاتو نه ثابته ده کما اقره الخصم ايضاً فقط

﴿۱﴾ قال الله تعالىٰ لو کنت اعلم الغيب لاستکثرت من الخير الآية. (پ: ۹ سورة الاعراف آيت: ۱۸۸)

﴿۲﴾ وعن ابن عمر رضى الله عنهما ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال مفاتيح الغيب خمس لا يعلمها الا الله ولا يعلم ما تغيض الارحام الا الله ما يعلم ما فى غدٍ الا الله ولا يعلم متى يأتى المطر الا الله ولا تدرى نفس باى ارض تموت الا الله ولا يعلم متى تقوم الساعة الا الله (صحيح البخارى ص۱۰۹۷ جلد۲ کتاب الرد على الجهميه باب قول الله عالم الغيب)

﴿۳﴾ قال ابن عابدين واما ما وقع لبعض الخواص کالانبياء والاولياء بالوحى او الالهام فهو باعلام من الله تعالىٰ فليس مما نحن فيه........... وحاصله ان دعوىٰ علم الغيب معارضة لنص القرآن فيکفربها الا اذا اسند ذالک صريحا او دلالة الىٰ سبب من الله تعالىٰ کوحى او الهام وکذا لو اسنده الى امارة عادية بجعل الله تعالىٰ الخ. (رد المحتار على الدرالمختار ص ۳۲۵ جلد۳ مطلب فى دعوىٰ علم الغيب)

﴿۴﴾ وفى الخانية رجل تزوج امرءة بغير شهود فقال الرجل والمرأة خدائے را ويا پيغامبر مرا گواه کرديم قالوا يکون کفرا لانه اعتقد ان رسول الله صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب وهو ما کان يعلم الغيب حين کان فى الاحياء فکيف بعد الموت (فتاوىٰ قاضيخان على الهندية ص ۵۷۶ ج ۳ باب مايکون کفرا من المسلم وما لايکون.

### علم غیب لغوي انبیاؤ ته د ضرورت په اندازه ورکړې شوې وو

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه پیغمبر علیه السلام ته علم غیب حاصل وو که نه؟

المستفتي: سراج احمد پیر پیائي نوشهره.

**جواب:** د علم غیب دوه معنې دي یو علم ما فوق الاسباب ٠یعني بغیر د اسبابو نه علم لرل) او د اشرعي او اصطلاحي معنٰی ده، دویم دا چه علم په هغه څیزونو چه د حواسو او عقل نه او چت وي او دیته غیب لغوي وائی علم غیب په اولنۍ معنې سره د الله تعالی سره مختص دې ځکه چه د ممکن د ټولو کارونو ذات او صفات دالله تعالی ورکړه ده. وما لکم من نعمة فمن الله (۱) او دویم قسم انبیاء علیهم السلام ته ورکړې شوې خو په قدر د ضرورت نه دا چه ټول په ټوله یدل علیه القرآن والاحادیث:

قال الله تعالیٰ و لو کنت اعلم الغیب لا ستکثرت من الخیر ﴿۲﴾ وقال الخضر علیه السلام فی السفینة انی اعلم جمیع الخلق فی علم الخالق کالنقرة بالنسبة الی البحر و لفظ الحدیث مسطور فی البخاری فی قصة موسیٰ علیه السلام ﴿۳﴾ فقط

### په ځنګل کښې د پیدا شوی انسان د ایمان مسئله

**سوال:** یو سړې په ځنګل کښې پیدا شوې او هلته لوئې شو او مړ شو، د هدایت او راهنمائۍ څه ذریعه هغه ته نه وه رسیدلې لکه چه د افریقې او چین د بعضې علاقو حالت دې نو آیا داسړې به شرعي طورسره د ایمان او اسلام مکلف دې؟

المستفتي: پروین شاه F ABERTECO HONG KONG ۱۲|۱۰۱۱۹۸۶

﴿۱﴾ (پ: ۱۴ سورة النحل رکوع: ۱۲ آیت: ۵۲)
﴿۲﴾ (پ: ۹ سورة الاعراف ایت: ۱۸۸) وایضاً قال الله تعالیٰ وعنده مفاتیح الغیب لایعلمها الاهو. (پ: ۷ سورة الانعام رکوع: ۱۳ آیت: ۵۹)
﴿۳﴾ حدثنا ابی بن کعب عن النبی ﷺ...... فلما رکبا فی السفینة جاء عصفور فوقع علی حرف السفینة فنقر فی البحر نقرة او نقرتین قال له الخضر یا موسیٰ ما نقص علمی وعلمک من علم وعلمک من علم الله الا مثل ما نقص هذا العصفور بمنقارة من البحر الخ (صحیح البخاری ص ۳۸۲ ج ۱ باب حدیث الخضر مع موسیٰ علیه السلام)



**الجواب:** حضور ﷺ تر قیامته پورې ټولو انسانانو طرفته رالیږلې شوې دې نو وما کنا معذبین حتي نبعث رسولا الآیة (۱) سره دا ځنګلي خلق دلیل او حجت نشي نیولې باقي پاتې شو ددې رسول ﷺ تعلیمات رسیدل نو دغې خلقو ته د علماؤ په ذریعې سره د تعلیماتو علم شوې دې او که دا اومنلې شي چه بعضې ته خو دا تعلیم نه دې رسیدلې نو هغوې به صرف د هغې احکاماتو مکلف ګڼرلې شي چه دهغه د رسول ﷺ د قائم مقام (عقل) نه هم معلوم کیدلې شي (۲) لکه د الله تعالی وجود وغیره، هو الموفق

### د زنکدن ایمان

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د زنکدن په وخت مسلمان کافر کیدیشي اویا کافر مسلمان کیدیشي؟ تفصیل تشریح سره اوکړئ.

المستفتي: سیف الرحمان ایم، اې بي ایډ بونیر...... ۹|۱۰۱۱۹۷۷

**جواب:** د زنکدن په وخت کښې ایمان راوړل نا منظور دي (رد المحتار ص ۲۸۹ ج۳، (۳) وقال رسول الله ﷺ ان الله یقبل توبة العبد مالم یغرغر ﴿۴﴾ او په دغه وخت کښې کفر او انکار متصور نه دې لانه یشاهد ما کان یو من به با لغیب، او ظاهراً که ترینه څه کلمات اووتل نو هغه به د سختۍ د وجهې نه معاف وي، فقط

﴿۱﴾ (پ: ۱۵ سورة بنی اسرائیل رکوع: ۲ آیت: ۱۵)
﴿۲﴾ قال العلامه ملا علی قاری والصحیح ما علیه عامة اهل العلم فان الایمان هو التصدیق مطلقا فمن اخبر بخبر فصدقة صح ان یقال آمن به وآمن له ولان الصحابة کانوا یقبلون ایمان عوام الامصار التی فتحوها من العجم تحت السیف او الموافقة بعضهم بعضا وتجویز حملهم ایاهم علی الاستدلال لا سیما فی بعض الاحوال وهذا الخلاف فیمن نشأ شا هق الجبل ولم یتفکر فی العالم ولا فی الصانع عزوجل اصلاً فامامن نشاء فی بلاد المسلمین وسبح الله تعالیٰ عند روية صنائعة فهو خارج عن حد التقلید فقد قیل لاعرابی بم عرفت الله؟ فقال البعرة تدل علی البعیر واثار الاقدام تدل المسیر فهذا الایوان العلوی والمرکزی السفلی الا یدلان علی الصانع الخبیر الخ (شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۴۵ ایمان المقلد جائز)
﴿۳﴾ قال ابن عابدین واما ایمان الیاس فمذهب اهل الحق انه لا ینفع عند الغرغرة ولا عند معاینة عذاب الاستصال لقوله تعالیٰ فلم یک ینفعهم ایمانهم لما رأو باسنا ولذا اجمعوا علی کفر فرعون الخ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۳۱۷ ج ۳ مطلب توبة الیاس وایمان الیاس)
﴿۴﴾ وعن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ ان الله یقبل توبه العبد مالم یغرغر رواه الترمذی وابن ماجه. (مشکواة المصابیح ص ۲۰۴ ج ۱ باب الاستغفار والتوبة الفصل الثانی)

## د المهند علي المفند مسائل

**سوال:** الحمد لوليه والصلاة على نبيه اما بعد فانا اصدق واشهد ان المسائل التى اشتمل عليها المهند على المفند هى المسائل الصحيحة والعقائد الحقة التى اجمعت عليها الامة المسلمة فى القرون السابقة واتفقت عليها العلماء الديوبندية وجميع اهل السنة والجماعة والذى ينكر هٰذه المسائل ويخالفها لا سيما مسئلة حيوٰة النبى ﷺ فهو مبتدع وخارج عن مسلك الديوبندية وعن مذهب اهل السنة والجماعة والاقتداء به ليس بصحيح اعاذنا الله منه وسائر المسلمين كافة وآخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمين (محمد رمضان عفى عنه)

يا معشر العلماء والفضلاء للعلوم الدينية ما قولكم فى ما قال الشيخ محمد رمضان نعمانى فى حق المهند على المفند هل هو صحيح وموافق للكتاب والسنة النبوية و اسلاف العلماء الديوبندية والذى قال الفاضل المحقق النعمانى فى مسئلة حياة النبى ﷺ هل هو ايضا صحيح ام لا ؟

المستفتي:قاري غلام قادراحمد پور شرقيه
ضلع بهاولپور ۲۹جمادي الثاني ۱۴۰۴

**جواب:** المسائل التى اشتمل على المهند هى المسائل الصحيحة لكن من اعتقد ان النبى ﷺ حى فى قبره بالحياة الجسمانية والروحانية فلا نخرجه من زمرة اهل السنة والجماعة باختلافه فيما هو من النظريات وان كان الحق هو مالم يقل به من الحياة الدنيوية بعد الموت الموعود. وهوالموفق

## د شرک نه بچکيدو د پاره په عوامو باندې د عقيدو پيژندل فرض عين دي

**سوال:**شرک هغه ګناه ده چه رب کريم هغه نه بخښي اوس که څمونږ بې تعليمه خلقو نه هم شرک اوشي نو د هغې به څه حکم وي حال دا چه مونږ د زړه نه مسلمانان يو؟ بينوا توجروا

المستفتي:بابر حسين العين ابو ظهبي يو، اې، اي،......۱۴۰۱ه۲۱۷۱

**جواب** په عوامو باندې دعقيدو پيژندل فرض عين دي(۱) چه د کفر او شرک نه بچ شي په عقيدو کښې دجاهل اوغيرجاهل حکم يوشان دي (۲) وهو الموفق

احاشيه په راروانه صفحه....



## د شاه اسماعيل شهيد د کتاب (صراط مستقيم) د عبارت تاويل

**سوال:** محترم حضرت مفتى صاحب! د شاه اسماعيل شهيد رحمه الله کتاب (صراط مستقيم) په صفحه نمبر ۳۶ باندې دا الفاظ درج دي(۱) د حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دي چه په مانځه کښې به ئې د لښکر د سامان سوچ کولو نو په دې قصه باندې مغروررره کيدل (د هوکه کښې پريوتل) نه دي پکار چه خپل مونځونو نه تباه کړی. (۲) د زنا د وسوسې نه په مونځ کښې دخپلې ښځې کوروالي طرفته خيال بوتلل غوره دي. او شيخ يا نورو داسې بزرګانو طرفته يا جناب رسالت مآب ﷺ وي خپل همت لګول د خپل غوائي او خر په صورت کښې دمشغوليدلو نه لوئې دي. وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: نذير ميډيکل هال بغداده مردان........ ۳۰ شعبان ۱۳۹۹ه

**الجواب:** محترم په داسې ژورو او باريکو مسئلو باندې د اهل الله نه علاوه د نورو خلقو پوهيدل ډير ګران دي اوداسې مسئلې د درميانه خلقو دپاره د متشابهاتو نه کمې نه دي او خواص خلق چه په هغوي باندې د توحيد او غيرت غلبه وي هغوي ددې د مُراد نه بې خبره نه دي. (۲) وهوالموفق

(حاشيه د تيرمخ) ﴿۱﴾ قال الملا على قارى (ومايصح الاعتقاد عليه يجب) اى يفرض فرضا عينيا بعدما يحصل علما يقينيا (شرح فقه الاكبر ص ۱۱ لملا على قارى)

وقال ابن عابدين قوله (واعلم ان تعلم العلم الخ) اى العلم الموصل الى الآخرة والاعم منه قال العلامى فى فصوله من فرائض الاسلام تعلم ما يحتاج اليه العبد فى اقامة دينه واخلاص عمله لله تعالىٰ (فرض عين) رد المحتار فى صدر درالمختار ص ۳۱ ج ۱ مقدمه)

﴿۲﴾ قال الملا على قارى اما اذا تكلم بكلمة ولم يدر انها كلمة كفر ففى فتاوىٰ قاضيخان حكاية خلاف من غير ترجيح حيث قال قيل لا يكفر لعذره بالجهل وقيل يكفر ولا يعذر بالجهل. اقول والاظهر الاول الا اذا كان من قبيل ما يعلم من الدين بالضرورة فانه حينئذ يكفر ولا يعذر بالجهل (شرح فقه الاكبر لملا على قارى ۱۶۵ مطلب يجب معرفة المكفرات لاجتنابها)

(حاشيه ددے مخ) ﴿۱﴾ قال ابن عابدين وللمحق ابن كمال باشا فتوىٰ قال فيها بعد ما ابدع فى مدحه وله مصنفات كثيرة منها فصوص حكمية وفتوحات مكيه (للعربى) بعض مسائلها مفهوم النص والمعنى و موافق للامر الالٰهى والشرع النبوى وبعضها خفى عن ادراک اهل الظاهر دون اهل الكشف والباطن ومن لم يطلع على المعنى المرام يجب عليه السكوت فى هذا المقام لقوله تعالىٰ ولا تقف ماليس لک به علم ان السمع والبصر والفواد كل اولئک كان عنه مسئولا (رد المحتار هامش الدر المختار ص ۳۲۲ ج ۳ مطلب فى حال الشيخ اكبر ابن عربى)

**په مونځ کښې د پیغمبر خیال کول او د صراط مستقیم عبارت**

**سوال:** آیا په صراط مستقیم کښې دا عبارت موجود دې چه کوم سړې ته د مونځ وخت کښې د پیغمبر علیہ السلام په خیال کښې راځي داسې دې لکه چه یو څناور ئې په خیال کښې راوستې وي.

المستفتي: حافظ عبد الرشید بغداده مردان......۱۸ رجب ۱۳۹۹ھ

**جواب:** دا عبارت په صراط مستقیم کښې پیدا نه شو البته په مونځ کښې به د الله تعالی د حضورئ تصور او خیال کوي د نور چانه، ځکه چه ددې سرایت په وجه باندې د پیغمبر علیہ السلام متعلق د الوهیت د عقیدې ګمان پیدا کیږي او د نورو په باره کښې موهوم کیږي. وهو الموفق

**هیڅ یونبی. ولی شهید او پیر حاضر ناظر اوعالم الغیب نه دي**

**سوال:** کوم سړې چه د یو نبي، ولي شهید یا پیر په باره کښې دا عقیده او ساتي چه هغه د هر ځائې کښې ویني او اوري حاضر او ناظر دي. چه کله ورته آواز اوکړو نو ځمونږ آواز اوري عالم الغیب او مشکل کشا دي نو داسې عقیدې والا سړې بد عتي او مشرک دې او که صحیح عاشق رسول او د اهل سنت والجماعت نه دې. بیان ئې کړئ؟

المستفتي: قائم دین ډهوک زمان میان والي......۲۳۱۷۱۷۸

**جواب** غیر الله (یعني د الله نه سوا بل څوک) حاضرناظر منل او په ټولو غیبو څیزونو باندې خبر منل کفر او شرک دې، ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د اکابرین دیوبند مسلک د افراط او تفریط نه پاک دې**

**سوال:** بې علمه ملیان صاحبان چه د خپلو خواهشاتو مطابق د ناجائزه رسومونو او بد عاتو تعلیم ورکوي د فاسقانو فاجرانو امامت کوي. خلقو ته د بد و کارونو نه د منع کیدو تبلیغ نه کوي دا ملیا ن د رسول الله سنتو ته نوې دین وائي، کچرته مونږ صحیح مسلک او ښایو نو په مونږ باندې دبې دینه او وهابیانو فتوې لګوي.او جاهلان خلق ځمونږ خلاف راوچتوي اګرچه مونږ صرف د دیوبند د اکابرین د مسلک پابند یو چرته د افراط تفریط

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ قل لا یعلم من فی السمٰوٰت والارض الغیب الا الله... الآیة. [illegible]:۲۰ سورة النحل رکوع:۱ آیت:۶)



قائل نه یو دا ځمونږ ایمان دې دې باره کښې مونږ ته جواب راکړئ او تسلی مو او فرمایئ؟

المستفتي: الحاج محمد رسول، محمد رحیم

بازار دره آدم خیل ضلع کوهاټ۱۹۶۹|۱|۸

**الجواب:** ځمونږ مسلک نه د نجدیانو پشان د افراط دې او نه د بدعتیانو پشان د تفریط دې بلکه مونږ په اعتدال باندې روان یو چه کله عوام د قران او حدیث په تعلیم او د اهل حق په رسالو کتلو کښې مشغول وي نو ددغې خلقونه به پخپله واوړي او چه کله عوام ګډو ډوي نو د جماتونو امامان به هم ګډوډ وي ځکه چه ددوي مسلک هغه دې چه خلق پرې خوشحاله وي.فقط

**د قیامت علم صرف الله تعالی ته حاصل دې**

**سوال:** آیا د قیامت د ثبوت دپاره د یوې خاص صدئ تعین شوې دې او که نه؟ بعضې جاهلان وائی چه په څوارلسمه صدئ کښې به قیامت راځی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مثل خان خلیل تهکال پشاور......۱۳۹۰۱۷۱۷ھ

**جواب** د قیامت علم صرف الله تعالی ته حاصل دې دالله نه سیوا دا علم چرته یو نبي، رسول او فرشتې ته نه دې ورکړې شوې. ﴿۱﴾

**د تقدیر په مسئله کښې چپ کیدل بهتر دي**

**سوال:** چه کله الله تعالی د یو انسان په تقدیر کښې دا لیکلي، چه هغه به فلانکې وژني، نو بیا هغه انسان په دې ولې ګناه ګار کیږي او هغه ته سزا ولې ورکولې کیږي؟

المستفتي: عزیز الرحمان صوابي......۲۵فروري ۱۹۷۵ھ

**الجواب:** محترم جناب د سلام نه پس! خبر شه چه د بې علمه او کم علمه خلقو

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ یسئلونک عن الساعة ایان مرسٰها. فیم انت من ذکراها. الٰی ربک منتهٰها. (پ: ۳۰ سورة النٰزعات رکوع:۲ آیت:۴۲، ۴۳، ۴۴)

دپاره په داسې نازکو مسئلو کښې پرېوتل ډېر خطرناک دي. ستا د اطمينان دپاره دومره کافي ده چه الله تعالیٰ د کوم کس دپاره دا ليکلي دي چه هغه به په خپل اختيار او ارادي سره دا ګناه وغيره کوي، نوهغه ته به عذاب ورکوی. اوچا دپاره چه ئې دا ليکلی دی چه هغه به غيرارادی اومجبورئ سره ګناه کوی نوهغه ته به عذاب نه ورکوی. د زيات اطمينان حاصلولو دپاره پخپله مونږ سره خبرې کولې شئ. وهوالموفق

**پیغمبر ﷺ مختار کل، حاضر ناظر او عالم غیب منل**

**سوال:** بعضې خلق وائي چه محمد ﷺ ته د هر څيز اختيار ورکړې شوې دې او په هر ځائي کښې حاضرناظردې اوعالم الغيب دې. نوچه کوم سړې داسې عقيده ساتي دهغه څه حکم دې؟

المستفتي: مصباح الله مردان...... ۲۱ جنوري ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا سړې مشرک او کافر دې.

قال الله تعالیٰ ليس لک من الامر شئ.﴿۱﴾ وفی البزازيه من قال ان ارواح المشائخ حاضرة تعلم يكفر (مجموعة الفتاوی ص ۳۵ جلد ۱) وفی فتاویٰ قاضی خان وهو ما كان يعلم الغيب حين كان فی الاحياء فكيف بعد الموت (علی هامش الهندية ص ۶۲۸ جلد۳) والمسئلة من الواضحات فلا حاجة الی توضيح الواضحات. وهوالموفق

**الله تعالیٰ خالق دې او مخلوق کاسب دې**

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يو سړې وائي چه والقدر خيره وشره من الله تعالیٰ او الله پخپله محي او مميت دې. نو قاتل دې د مقتول په بدله کښې قصاص نه کړې شي. ځکه چه دا قتل او د مقتول مرګ خو الله تعالیٰ واقع کوي دارنګې دقاتل دپاره په قيامت کښې سزا هم نه مني. ددې مسئلې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: زاهد حسين نور کلا تهٔ هاوس بټ خيله ملاکنډ ايجنسي

﴿۱﴾ (پ:۴ سورة آل عمران رکوع:۳ آيت:۱۲۸)



**الجواب:** په خلق او کسب کښې د زمکې او آسمان فرق دې چه د علم کلام په کتابونو کښې ليکلي شوې دي. ﴿۱﴾ بهرحال د مرګ پيدا کول او ايجاد الله تعالیٰ کوي او کسب او د اسبابو استعمال قاتل کوي. دقانون خلاف چه څوک زنځير راکاږي حکومت هغه ته سزا ورکوي اګر چه ريل ودرولو والا حکومت پخپله دې. وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری (وجميع افعال العباد من الحركة والسكون) ای علی ای وجه يكون من الكفر والايمان والطاعة والعصيان (كسبهم علی الحقيقة) ای لا علی طريق المجاز فی النسبة ......... (والله تعالیٰ خالقها) والحاصل ان الفرق بين الكسب والخلق هو ان الكسب امر لايستقل به الكاسب والخلق امر مستقل به الخالق ......... والله خلقكم وما تعملون ای وعملكم او معمولكم الخ.

(شرح الاكبر للقاری ص۴۹، ۵۰ افعال العباد كسبهم وخلق الله تعالیٰ.

# وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ
# وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ط
# إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا ﴿٨١﴾

...



# فصل
# فی کلمات الکفر

...

# فصل فی کلمات الکفر

## ټول پیران کافران او مشرکان دي ددې الفاظو حکم

**سوال:** یو سړی د ډیر خلقو په مخکښې دا الفاظ اووئیل چه ټول پیران کافران او مشرکان دي حال دادي چه مجدد الف ثاني رحمه الله په خپله رساله (مبدا و معاد کښې لیکي چه د الله جل شانه د انعاماتو او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د احساناتو نه وروستو د پیراو مرشد حق دي نو د داسې سړي په باره کښې څه حکم دي؟ چه هغه پخپله کافر شو که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي:حاجي فقیر ګل چارسده.....۱۵اکتوبر ۱۹۸۲

**الجواب:** کیدیشي ددې سړي دي ټولو . نه مراد استغراق عرفي وي یا رسمي پیران ئې مراد وي نو داسې بې باکه سړې کافر نه شي ګرځولې. ﴿۱﴾

## د پیغمبر په توهین او تکلیف خوشحالیدل کفر دي

**سوال:** یو سړې خپل خر پسې په غصه کښې چو که په لاس بهر رااوتلو او خر مخکښې زغلیدلو نو چا او درولو چه ګوره بې زبانه څناور مه وهه هغه اووئیل که دا پیغمبر وي نو هم ئې نه پریږدم او اوئې وهلو. بیا هغه سړې پوهه کړو چه ستا د ژبې نه خطرناک الفاظ وتلي دي توبه اوکړه او چرته د عالم نه تپوس اوکړه، لیکن تراوسه ئې د چا نه تپوس نه دي کړې نو دداسې سړي په شریعت کښې څه حکم دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مطیع الحق لوند خوړ مردان........۱۳صفر ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د پیغمبر په توهین او تکلیف باندې راضي کیدل کفر دي لکه څنګه چه توهین کول او تکلیف رسول کفر دي نو په دې سړي باندې ایمان تازه کول لازم دي او دې سړي له توبه کول پکار دي. ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الحصکفی وفی الدرروغیرها اذا کان فی المسئلة وجوه توجب الکفر وواحد یمنعه فعلی المفتی المیل لما یمنعه. (الدرالمختار ص ۳۱۶ جلد ۳ قبیل توبة الیأس)

﴿۲﴾ قال الحصکفی والکفر بسب نبی من الانبیاء ......لکن صرح فی آخر الشفاء بان حکمه کالمرتد و مفاده قبول التوبة ......ولفظ النتف من سب الرسول علیه السلام فانه مرتد و حکمه حکم المرتد و یفعل به ما یفعل بالمرتد انتهی. (الدرالمختار ص ۳۱۷،۳۱۹ جلد ۳ مطلب مهم فی حکم سباب الانبیاء)



## کلمه په اووایم خو ډیر کارونه به نه کوم دا د کفر کلمه نه ده

**سوال:** که یو سړې اووائی چه څه کلمه د توحید او رسالت یعني لا اله الا الله محمد رسول الله وائم لیکن بغیر د مجبورئ نه به هم په ډیرو اعمالو باندې عمل نه کوم نو داسې سړې مسلمان کیدیشي که نه؟

المستفتي:محمد نذیر پنډي ګهیپ اټک. یکم ربیع الثاني۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا یو جاهلانه او فاسقانه خبره ده په دې سره دا سړې کافر کیږی نه.لعدم انکارعن ضروریات الدین ولعدم الاستحلال والاستخفاف﴿۱﴾وهوالموفق

## په محتمل خبرو د کفر شوی نشی لګیدلې

**سوال:** د زید د کور والاؤ خاندان خلق د زید کره راغلل چه بې ډیرې خریونکې وؤ نو د زید پلار هغوي سره ډیر د ګستاخئ خبرې اوکړې چه دا خلق ډیرې خریونکي اود شریعت مطابق نه دي.په دې باندې د زید ښځې اووئیل چه اوس زمانه بدله شوې کوم کارونه چه شل کاله مخکښې وو اوس نشته ددې نه دا پته لږې چه د زید د ښځې په نزد شرعي احکامات اوس معطل شوې دي. ډیره خرئیل بې پردې ګرزیدل وغیره کارونه ناجائز پاتې نه شو نو اوس د احکام الهی پورې خندا کول، بې ادبي. مذاق او بې قدري څنګه ده. د مجدد الف ثاني رحمه الله په مکتوب ۲۶۶ جلد اول کښې دي چه څوک حرام کار ښه اوګنړي هغه د اسلام د ډلې نه اووتلو او مرتد شو؟ بینوا توجروا

المستفتي:ایم صدیق ایف. پي. ټي کالوني لاهور

**الجواب:** د زید د ښځې د دواړو الفاظو دوه مطلبه کیدیشي اول دا چه شرعي احکامات ناقابل عمل ناحق او د مصلحت نه خلاف دي دویم دا چه شرعي احکام سره ددینه چه حق دي خو عمل پرې پریخودې شوې دي. ﴿۲﴾ نو دي

﴿۱﴾ قال فی الهندیة و قول الرجل لا اصلی یتحمل اربعة اوجه احدها لا اصلی لانی صلیت والثانی لا اصلی بامرک فقد امرنی بها من هو خیر منک و الثالث لا اصلی فسقا مجانة فهذه الثلاثة لیست بکفر والرابع لا اصلی اذ لیس یجب علی الصلاة و لم اومر بها یکفر.و لو اطلق وقال لا اصلی لا یکفر لاحتمال هذه الوجوه. (فتاوی هندیه ص ۲۶۸ جلد ۲ مطلب موجبات الکفر منها ما یتعلق بالصلوة و الصوم)

﴿۲﴾ وفی الهندیة سئل الحاکم عبدالرحمن عمن قال برسم کلر کم بحکم نی هل هو کفر قال ان کان (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

احتمال سره د کفرفتوی ورکول دهیچا مذهب هم نه دي، قال العلامـــه ابـــن عابدين وفي التتارخانيه لا يكفر بالمحتمل لان الكفر نهاية في العقوبة فيستدعي نهاية في الجناية ومع الاحتمال لا نهاية انتهى ﴿۱﴾ (ردالمحتار صفحه ۲۸۵ جلد۳)

## د الله تعالی توحید مذاق دي، شریعت، مونځ روژه هیڅ څیزنه دي.. دا کفریه کلمات دی

**سوال:** که یو سړي دا عقیده وي چه توحید باري تعالی (معاذالله) یو مذاق دي او شریعت د سرمایه دارانه او جاګیردارانه نظام ملګرې دي مونځ او روژه هیڅ څیزونه نهٔ دي ځما یو مستقل دین دي د هغې په قبلولو کښې د خلقو فائده ده، نو آیا دا سړي کافر دې او که نه؟

المستفتي: مولوي رحمان الدين مسجد شا بنګل.....۹۱۱۰۱۱۹۷۸

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت دا سړي مرتد او کافر دې. ﴿۲﴾ اود اثر رسوخ مسلمانانو ته پکار دي که دې توبه اونه باسي نو چه ده له د مرتد والا سزا ورکړي یا دې ورله په حکومت هغه سزا ورکړي او ټول مسلمانان دې ده سره قطع تعلق اوکړي.

(بقیه حاشیه)مراده فساد الخلق و ترک الشرع واتباع الرسم لا ردالحکم لا یکفر کذا فی المحیط .(هندیه ص ۲۵۸ جلد ۲ الباب التاسع فی احکام المرتدین )

﴿۱﴾ ( ردالمحتار علی الدر المختار ص ۳۱۲ جلد۳مطلب ما یشک فی انه ردة لا یحکم بها )

﴿۲﴾ و فی الهندیة المرتد عرفا هو الراجع عن دین الاسلام کذا فی النهر الفائق و رکن الردة اجراء کلمة الکفر علی اللسان بعد وجود الایمان .

(هندیه ص ۲۵۳ جلد ۲ الباب التاسع فی احکام المرتدین )

قال ابن عابدین و رکنها اجراء کلمة الکفر علی اللسان هذا بالنسبة الی الظاهر الذی یحکم به الحاکم و الا فقد تکون بدونه کما لو عرض له اعتقاد باطل او نوی ان یکفر بعد حین افادة.

( ردالمحتار ص ۳۱۰ جلد ۳ باب المرتد)

و فی الهندیة سئل عن امرأة قیل لها توحید میدانی فقالت لا ان ارادت انها لا تحفظ التوحید الذی یقوله الصبیان فی المکتب لا یضرها و ان ارادت انها لا تعرف وحدانیة الله تعالی فلیست بمؤمنة ولا یصح نکاحها .(هندیه ص۲۵۷ جلد ۲ منها ما یتعلق با لایمان و الاسلام )



## د مسلمان دین او مذهب ته کنځل کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څهٔ فرمائي چه یو سړې بل مسلمان ته د دین کنځل اوکړي مثلاً ستا دین اوغیم. ستامذهب اوغیم) اودائې عادت جوړ شوې وی نو په اسلام او کفر د دغه سړی کښې څه حکم دې؟

المستفتي: امین جان کوچی بخشی پل پشاور...۱۵۱۱۱۱۹۲۹

**الجواب:** کافر نه دې او خطره ئې موجوده ده لهذا توبه او استغفار دې اوکړی قال العلامه الشامي ج ۳ص۳۹۹ ثم ان مقتضي كلامهم ايضا انه لا يكفر بشتم دين مسلم اي لا يحكم بكفره.﴿ ۱ ﴾ فقط

## صحابه کرامو رضی الله عنهم ته کنځل کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه څوک حضرت علي رضی الله عنه ته سخت کنځل کوي. هغه مسلمان پاتې کیدیشي که نه؟ او که توبه اونه باسي نو د مسلمانانو ورسره څه رویه پکار ده؟

المستفتي: صلاح الدین ناظم شبان اسلام ټیکسلا اټک..۱۲۱۱۰۱۱۹۷۵

**الجواب:** صحابه کرامو ته کنځل کول حرام دي ددې وجې نه دا سړې باغي او فاسق دې او ګواهي ئې نه قبلیږي. (کما في ردالمحتار ص۲۹۳ ج۳ دي به لکه د باغي پشان په توبه باندې مجبور ولې شي او که توبه نه اوباسی نو کم از کم ده سره دې تعلقات ختم کړې شی. ﴿۲﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾(ردالمحتار ص ۳۱۶ جلد ۳ مطلب فی حکم من شتم دین مسلم ) و قال ابن عابدین اقول و علی هذا ینبغی ان یکفر من شتم دین مسلم و لکن یمکن التأویل بان مراده اخلاق الردیئة ومعاملة القبیحة لا حقیقه دین الاسلام فینبغی ان لا یکفر حینئذٍ.( ایضاً )

﴿۲﴾ قال ابن عابدین ذکر فی شرحه علی الملتقی ایضاًانه لو علی وجه المزاح یعزر فلو بطریق الحقارة کفر لان اهانة اهل العلم کفر علی المختار فتاوی بدیعیة لکنه یشکل بما فی الخلاصة ان سب الختنین لیس بکفر اه والمراد با لختنین عثمان و علی رضی الله تعالی عنهما.(ردالمحتار ص ۲۰۳ جلد ۳ قبیل مطلب فیما لو شتم رجلاً با لفاظ متعددة )وایضاً فی ردالمحتار وسب احد من الصحابة و بغضه لا یکون کفراً لکن یضلل...... وقال ابن ملک فی شرح المجمع و ترد شهادة من یظهر سب السلف لانه یکون ظاهر الفسق ......وقال الزیلعی او یظهر سب السلف یعنی الصالحین منهم و هم الصحابة و التابعون الخ (ردالمحتار ص ۳۲۱ جلد ۳ مطلب مهم فی سب الشیخین )

## احادیثو ته د دروغو قصي وئیلو والا زندیق او ملحد دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په احادیثو باندې اعتراض کوي او صحاح سته (د حدیثو شپږ غټ کتابونو) ته دروغ قصې وائي ته ترمذی ته ګند بلا وائی. د مشکوة په باره کښې وائی چه دا د حدیثونو کتاب نه دې او وائي چه اسلام په خپل اصلي شکل کښې د بنوامیه دوخت پورې پاتې شوې وو اوس پکښې تبدیلي راغلې د قرآن نه علاوه هیڅ هم په اصل شکل کښې نشته د حسنینو (حضرت حسن رضی الله عنه او حضرت حسین رضی الله عنه) د صحابیت هم قائل نه دې وائي چه په اسلام کښې حضرت علي رضی الله عنه دا اختلافات اچولي دي. ددې سړي څه حکم دې سزا ئې څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالله نعمانی مدرسه مدنیه کریم پارک
راوی روډ لاهور ۱۵ رمضان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت دا سړې زندیق او ملحد دې دا منکر حدیث دې ده هر قسم عزت کول ددین بې عزتي او د کفر ساتنه کول او ددې زندیقانو په دور کښې به سزا څوک ورکړي خو صرف بائیکاټ (تعلقات پرېخودل) ورسره هم کافي دي. ﴿۱﴾

## یوکس په قرآن قسم اخستلو نودویم اووئیل زه قرآن نه منم. دریم اووئیل چه زه داسې اسلام په لته وهم چه په هغې کښې حق پوشی ضروری وی.نو آیا داکلمات دکفردی؟

**سوال:** علمائې دین څه فرمائي چه زید د جمات امام دې حافظ قرآن هم دې د خپلې مورسره ئې څه اختلاف شو نومور ئې قرآن اوچت کړو قسم ئې اوخوړلو چه ځه رشتني یم مګر زید اووئیل چه ځه قرآن نه منم مخکښني امام عمرو او د مور سره اختلاف اوکړو او دا الفاظ چه ځه قرآن نه منم په خلقو کښې مشهور کړل. خلقو عمرو ته اووئیل چه دا خپلو کښې دهغوي جهګړه ده پرېږده ئې. لیکن عمرو اووئیل چه په کوم اسلام کښې حق پټول ضروری وی هغه په

﴿۱﴾ قال ابن عابدین المراد بالتکذیب عدم التصدیق الذی مرای عدم الاذعان والقبول لما علم مجیئه به صلی الله علیه وسلم ضرورة ای علماضروریا لایتوقف علی نظر و استدلال ولیس المراد التصریح بانه کاذب فی کذا لان مجرد نسبة الکذب الیه صلی الله علیه وسلم کفر و ظاهر کلامه تخصیص الکفر بجحد الضروری فقط مع ان الشرط عندنا ثبوته علی وجه القطع وان لم یکن ضروریا بل قدیکون بما یکون استخفا فامن قول او فعل کما مر.
(ردالمحتار ص ۳۱۱ جلد ۳ مطلب فی منکر الاجماع)
وفی الهندیة قال رضی الله عنه سألت صدر الاسلام جمال الدین عمن قرء حدیثا من احادیث النبی صلی الله علیه وسلم فقال رجل همه روز خلشها خواند قال ان اضاف ذلک الی القاری لا الی النبی صلی الله علیه وسلم ینظر ان کان حدیثا یتعلق بالدین واحکام الشرع یکفر وان کان حدیثا لا یتعلق به لا یکفر.
(هندیه ص ۲۶۶ جلد ۲ احکام المرتدین منها ما یتعلق بالانبیاء)



لته وهم، اوس د زید او عمرو ددې الفاظو څه حکم دې آیا په دې سره کافرشول یا نه؟

المستفتي: اهالیان ډوک فیض بخش...... ۱۹۱۷۱۱۹۷۳

**الجواب:** خبره دا ده چه زید د مور په قسم باندې د اعتماد کولو نه انکار اوکړو نه داچه د قران د کلام الله کیدلو نه ئې انکار کړې دې لهذا زید حافظ صاحب کافرنه دې. البته د مور او پلار نافرماني ګناه کبیره ده. که والدین په ناجائزه ټینګ نه وي. د (لحدیث لاطاعة لمخلوق في معصیة الخالق) ﴿۱﴾ د وجې نه او عمرو د حق پټولو او خرڅولو نه بیزاري اختیار کړې د اسلام نه نه، نو دې هم کافرنه دې، دواړو طرفته د کفر فتوې ورکول غلط څیزدې ﴿۲﴾ وهو الموفق

## ددیني مسئلې توهین کولو والا باندې د کفر سخته خطره ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د سود متعلق یو مسئله باندې د علمائې کرامو مهرونه او د ستخطونه هم شته چه ددې ایتونو او حدیثونو په حوالو سره ئې سود اخستل، ورکول او د هغې لیکل یو شان جرم ګرځولې، د څه خلقو په موجود ګئ کښې زید ته دا فتوې د لوستلو د پاره ورکړې شوه، نو زید فتوې او لوستله او وروستو ئې اووئیل چه ځه په دې فتوې باندې متیازې کوم او فتوې پیش کولو باندې ئې په لزګی سره ګزارونه اوکړل، او کنځل وینا او سپورې ستغې ئې اووئیلې، د قرآن او حدیث په نزد ددې داسې سړي متعلق اخري فیصله اوکړئ؟

المستفتي: محمد اکرم قریشي واه کینټ...... شوال ۱۳۸۹

**الجواب:** په دې سړي باندې ددین د توهین د وجې نه د کفر سخته خطره ده ﴿۳﴾ که توبه ئې اونه ویستله نو سلام کلام ورسره پرېخودل ضروري دي. فقط

﴿۱﴾ عن النواس بن سمعان قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق رواه فی شرح السنة. (مشکوٰة المصابیح ص ۳۲۱ جلد ۲ کتاب الامارة الفصل الثانی)
﴿۲﴾ قال ابن عابدین و علی هذا ینبغی ان یکفر من شتم دین مسلم و لکن یمکن التأویل بان مراده اخلاق الردیئة و معاملة القبیحة لا حقیقة دین الاسلام فینبغی ان لا یکفر حینئذ. (ردالمحتار ص ۳۱۶ جلد ۳ مطلب فی حکم من شتم دین مسلم)
﴿۳﴾ قال العلامه حصکفی و فی الفتح من هزل بلفظ کفر ارتد و ان لم یعتقده للاستخفاف فهو ککفر العناد. قال ابن عابدین ثم قال و الاعتبار التعظیم المنافی للاستخفاف کفر الحنفیة بالفاظ کثیرة و افعال تصدر من المتهتکین لدلالتها علی الاستخفاف بالدین الخ. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۳۱۰ جلد ۳ باب المرتد) و فی الهندیة رجل عرض علیه خصمه فتوی الائمة فردها وقال چه بارنامه فتوی آورده قیل یکفر لانه رد حکم الشرع و کذا لو لم یقل شیئا لکن القی الفتوی علی الارض و قال این چه شرع است کفر. اذا جاء احد الخصمین الی صاحبه بفتوی الائمة فقال صاحبه لیس کما افتوا او قال لا نعمل بهذا کان علیه التعزیر. (هندیه ص ۲۷۲ جلد ۲ منها ما یعلق بالعلم و العلماء)

## داسلام اومسلمانانو خلاف نازیبا الفاظ استعمالول

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائي چه هغه داسي الفاظ اووائي! چه ټول مسلمانان اوعلمائي کرام بناؤ تي اومصنوعي مسلمانان دي په دوی کښي څوک هم صحیح اوعملي مسلمان نشته مجلس والاؤ ورته جواب ورکړو چه مونږ مسلمانان یو کم از کم په ظاهري طور سره خو مو ږیري او سرونه د شریعت مطابق دي او په اودس کښي یو اوس د ماسخوتن د مانځه نه او زګار شو نو هغه جواب ورکړو او د مسخري په طور ئي اوخندل چه اسلام او مسلماني په سر او ږیره کښي نه ده د سیکانو ږیري د ټولو نه لوئي وي بیا په یو واده کښي امام صاحب د ډول خلاف خبري اوکړي نو هغه اووئیل چه ملا ددوی خلاف کمکور اوچلولو .دایو ګستاخانه او سپک لفظ دي مطلب ئي هسي سمسي وهل او چیخچي وهل دي. نو په شریعت کښي دداسي سړي څه حکم دي مسلمان پاتي کیدي شي او که نه؟

المستفتي:محمد ګل تاج عباسي مري راولپنډي.....۲۵\۲\۱۹۲۹

**الجواب:** ددي سړي په خبرو کښي دتاویل احتمال شته چه یعنی د استغراق نه مراد استغراق عرفی دي حقیقی نه دي.او ږیره نه ساتلو سره مسلمان داسلام نه خارجیږي.اودچا داوئیل چه ږیري خو د سیکانو هم وي په هغه مونږ د کفر فتوٰی نه شو لګولي لیکن د کفر ویره پري موجود ده.او په داسي شک والا خبرو باندي ده لره توبه پکار ده او دهغه سره تعلقات پریخودل پکار دي تر څو چه ئي توبه نه وي ویستلي (في االدرالمختار لا یفتي بکفر مسلم امکن حمل کلامه علي محمل حسن وفي الدرر وغیره اذاکان في المسئلة وجوه توجب الکفر وواحد یمنعه فعلی المفتی المیل لما یمنعه فقط،﴿۱﴾

### اګرچه د پیغمبر علیہ السلام حکم وي خو د ۲۹ شعبان روژه نه ماتوم ددي الفاظو حکم

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه یو سړي وائي، اګر که د پیغمبر علیہ السلام فرمان وي چه په ۲۹ شعبان روژه مه نیسئ نو که کافرهم شم خو روژه نه ماتوم، دده څه حکم دي ؟

المستفتي:محمد زاهد مهتمم تعلیم القرآن بکوټ شریف هزاره

**الجواب:** که داسړي مغلوب الحال نه وي نو ده لره پکار دي چه نکاح او ایمان

﴿۱﴾ (الدرالمختار ص ۳۱۶ جلد ۳ قبیل مطلب توبة الیاس مقبولة دون ایمان الیأس )



تازه کړي ځکه چه په کفر باندي راضي کیدل کفر دي ﴿۱﴾ وهوالموفق

### ,,دي مُلک کښي د دهري په لاسونو اسلامی قانون مونږ نه منو.. ددي الفاظو حکم

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه دوه سړی بکر او عمرو عالمان دی او دریم سړي زید دي هغه وائي چه دا دواړه کافران دي او وائي چه ددوي په لاسونو باندي چه کوم اسلامي قانون په مُلک کښي راشي هغه مونږ نه منو ، او دا هم وائي چه دا دواړه به د دجال تابعدارانو کښي وي نو اوس زید کافر دي که مسلمان؟ دده دپاره څه حکم دي؟

المستفتي: محمد نور ولد محمد امین...مورخه۲۱\۱۹۷۲\۴\۶

**الجواب:** که دا توهین (بې عزتی) د ذاتیاتو په بنیاد نه وي ﴿ ۲﴾ نو دا زید کافر دي.﴿ ۳﴾ فقط

### که پیغمبر علیہ السلام هم د شرکت دعوت راکړي نو بیا به هم شریک نه شم. دا جاهلانه کلام دي

**سوال:** که یو سړي ته په یو اجلاس کښي د شرکت دعوت ورکړي شوي وي او هغه سړي صرف د عناد د وجي نه تر دي پوري وئیلي وي. چه د پیغمبرانو راتلل بند شوي دی خو که پیغمبر هم راشي چه فلانکي مجلس کښي شریک شه نو هم به شریک نه شم عند الشرع ددي سړي څه حکم دي؟.

المستفتي: نامعلوم...

﴿۱﴾وفی الهندیه و من یرضی بکفر نفسه فقد کفر ومن یرضی بکفر غیره فقد اختلف فیه المشائخ رحمهم الله تعالی فی کتاب التخیر فی کلمات الکفر ...... و ان رضی بکفره لیقول فی الله ما لا یلیق بصفاته یکفر و علیه الفتوی کذا فی التتار خانیه .(هندیه ص ۲۵۷ جلد ۲ الباب التاسع فی احکام المرتدین ) و فی الهندیة رجل اراد ان یضرب عبده فقال له رجل لا تضربه فقال اگر محمد مصطفی گوید مزن نهلم او قال اگرواز اسمان با نگ آید که مزن هم بزنم یلزمه الکفر .(هندیه ص ۲۶۶ جلد ۲ احکام المرتدین منها ما یتعلق با لانبیاء )

﴿۲﴾قال ابن عابدین ینبغی ان یکفر من شتم دین مسلم ولکن یکمن التأویل بان مراده اخلاقه الردیئة ومعاملة القبیحة لا حقیقة دین الاسلام فینبغی ان لا یکفر حینئذٍ .(ردالمحتار ص۳۱۶ جلد۳ قبیل طلب توبة الیاس)

﴿۳﴾و فی الهندیه و یخاف علیه الکفر اذا شتم عالماً او فقیهاً من غیر سبب و یکفر بقوله لعالم ذکر الحمار فی است علمک یرید علم الدین کذا فی البحر .(هندیه ص ۲۷۰ جلد ۲ منها ما یتعلق با لعلم و العلماء )

**الجواب:** چونکه دعوت صرف حکم ته نشي وئيلي بلکه مشورې او خوراک څښاک دپاره راغوښتلو ته هم وائي نو په داسې جاهلانه کلام باندې د کفر يا فسق فتوې ورکول د قاعدې نه خلاف دي. ﴿۱﴾ فافهم في حديث بريرة ﴿۲﴾ وهو الموفق

## بتان خرڅول په رضا بالکفر کښې داخل نه دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه آيا بتان تلاش کول او بيا هغه خرڅول په دې وعيد کښې داخل دي که نه؟ من رضي بکفر الغير يصير کافرا (قاضيخان) يا دا د تکذيب علامت دي که نه؟ او که څوک په دې صورت کښې د کفر فتوې ورکړي نو دا جائز ده؟

المستفتي: عطاء الله متعلم دار العلوم حقانيه...مورخه ١٤٠١١٦١١

**الجواب:** بتان خرڅول نه بت پرستي ده او نه التزام د بت پرستئ دې او نه په دې سره بت پرستي لازم ده. (لزوم بين هم نه دې) خو دا رضا د کفر گرځول غلط فهمي يا بد فهمي ده. ومثله اذا آجر بيتاً للمعاصي وغيرها ﴿۳﴾ فقط

## د بينډ باجې د وجې نه تلاوت بندول

**سوال:** څمونږ په جمات (مسجد) کښې د جمع نه مخکښې د تلاوت کيسټ لگيدلې وو په هغه کوڅه کښې واده وو کله چه د هغوي بينډ باجو واله راغلل نو د هغوي يو سړي په زوره جمات ته ورننه شو او تلاوت ئې بند کړو او دې نه ئې په شيطانيت سره تعبير اوکړو، نو ددې سړي متعلق شرعي حکم څه دې دا کافر شوې دې که نه؟

المستفتي: مولوي محمد سليم جامع مسجد بلال نيشنل ټاؤن راولپنډي ١٤١٩١١١٩٨٦

---

﴿۱﴾ قال الحصكفى و فى الدرر وغيرها اذا كان فى المسئلة وجوه توجب الكفر و واحد يمنعه فعلى المفتى الميل لما يمنعه. (الدر المختار ص ٣١٦ جلد٣ قبيل توبة اليأس)

﴿۲﴾ عن ابن عباس ان زوج بريرة كان عبداً يقال له مغيث كانى انظر اليه يطوف خلفها يبكى و دموعه تسيل على لحيته فقال النبى ﷺ لعباس يا عباس الا تعجب من حب مغيث بريرة و من بغض بريرة مغيثا فقال النبى ﷺ لو راجعتيه قالت يا رسول الله ﷺ تامرنى قال انما اشفع قالت فلا حاجة لى فيه. (صحيح البخارى ص ٧٩٥ جلد٢ باب شفاعة النبى ﷺ فى زوج بريرة)

﴿۳﴾ قال العلامه حصكفى و جاز اجارة بيت بسواد الكوفة اى قراها لا بغيرها على الاصح ......ليتخذ بيت نار او كنيسة او بيعة او يباع فيه الخمر و قال لا ينبغى ذلك لانه اعانة على المعصية و به قالت الثلاثة زيلعى و قال ابن عابدين هذا عنده ايضاً لان الاجارة على منفعة......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



**الجواب:** کيديشي دې سړي دگناه دکم والي په ارادې سره داکارکړې وي خو بياهم دده په دې جاهلانه خبرو او کارباندې دې کافر گڼلې نشي. ﴿۱﴾ والله اعلم

## فرښتې ته کنځل کول کفر دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يو سړې بل ته د غُصې په حالت کښې داسې اووائي چه، عزرائيل عليه السلام د فلانکي د مور سره شپه تيره کړيده او دې د هغې نه پيدا شوې دې، اوس هغه سړې ددې خبرې اقرار هم کوي شرعاً دده څه حکم دې؟

المستفتي: سائيس محمد عباس راولپنډي.........٢٢ رمضان١٤٠٥ھ

**الجواب:** دا جاهلانه او کافرانه کلام دې فرشتې ته د زنا او اولاد نسبت کول کنځل دي. ﴿۲﴾ دې سړي له ضروري ده چه د الله تعالی نه معافي اوغواړي او خپله نکاح تازه کړي. فقط

## د حافظانو د توهين والا حکم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يو سړې دا الفاظ استعمال کړي چه حفاظ کرام ټول په ټوله کونيان دي ددې وجې نه څه په خپلو بچو باندې حفظ قرآن نه کوم چه کونيان نشي ددې سړي شرعاً څه حکم دې؟ او آيا د حفاظ کرام په دې توهين سره دا سړې کافر کيږي که نه؟

المستفتي: مولوي فتح محمد خان...... ٢١٧١١٩٨٦

---

(بقيه حاشيه) البيت ولهذا يجب الاجر بمجرد التسليم ولا معصية فيه وانما المعصية بفعل المستأجر وهو مختار فينقطع نسبته عنه فصار كبيع الجارية ممن لا يستبرئها او يأتيها من دبر و بيع الغلام من لوطى و الدليل عليه انه لو آجره للسكنى جاز و هو لا بد له من عبادته فيه .اه

(الدر المختار مع رد المحتار ص٢٧٧ جلد٥ كتاب الحظر و الاباحة فصل فى البيع)

﴿۱﴾ قال العلامه حصكفى لا يفتى بكفر مسلم امكن حمل كلامه على محمل حسن ...... وفى الدرر وغيرها اذا كان فى المسئلة وجوه توجب الكفر وواحد يمنعه فعلى المفتى الميل لما يمنعه . (الدر المختار ص ٣١٦ جلد ٣ قبيل مطلب توبة اليأس)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين هو مصرح به عندنا فقالوا اذا شتم احدا من الانبياء او الملائكة كفر وقد علمت ان الكفر بشتم الانبياء كفر ردة فكذا لملائكة فان تاب فبها و الا قتل.

(رد المحتار ص ٣٢٠ جلد ٣ قبيل مطلب مهم فى حكم سب الشيخين)

**الجواب:** که ددې سرې مراد تول حافظان وې نودا کفریه کلام دې ﴿۱﴾ او که د خپل علم مطابق ئې مراد وې نو داد حفظ قرآن توهين نه دې او جاهلانه کلام دې. فقط

## ګډيدل او سندرې وئيل حلال ګڼل کفر دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه ګډيدل او سندرې وئيل حلال ګڼل دده څه حکم دې؟

المستفتي: غلام حيدر کيمل پور.

**الجواب:** ګډيدل او سندرې وئيل حلال ګڼونکې کافر دې. کما في شرح التنوير ومن يستحل الرقص قالوا يكفره هامش ردالمحتار ص۴۲۵ جلد۳ ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د ذاتي دشمنۍ په وجه باندې د امام او قران د توهين کولو حکم

**سوال:** د يو جمات امام صاحب تلاوت کولو چه يو سړې د خپلې ذاتي دشمنۍ په وجه باندې مولوي صاحب د ډيرې نه اونيولو او راښکلوئې او قرآن شريف ئې اوشلولو او پاڼې پاڼې ئې کړو، او د وهلو درز درز کښې آواز او چتيدلو سره دوه کسان راغلل او خلاصې ئې اوکړو، دداسې سړې دپاره په شريعت محمدی ﷺ کښې څه حکم دې؟

المستفتي: مولوي محمد سليمان کوهاله کوه مري... ۲رجب۱۳۸۹ھ

**الجواب:** که په دې کار باندې خفه هم نه وې نو داسړې خو يقيني طور فاسق دې او دقرآن د توهين په وجه باندې په ده د کفر خطره موجوده ده. ﴿۳﴾ قال رسول الله ﷺ كل المسلم علي المسلم حرام دمه وماله وعرضه وقال عليه الصلوة والسلام المسلم اخو المسلم لايظلمه ولايخذله ولايحقره انتهي ﴿۴﴾ رواه مسلم. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال ابن عابدين ثم قال و لاعتبار التعظيم المنافى للاستخفاف كفر الحنفيه با لفاظ كثيره و افعال تصدر من المتهتكين لـدلالتها على الاستخفاف با لدين ...... او استقبا حها كمن استقبح من آخر جعل بعض العمامة تحت حلقه او احفاء شاربه قلت و يظهر من هذا ان ما كان دليل الاستخفاف يكفر به وان لم يقصد الاستخفاف لانه لو توقف على قصده لما احتاج الى زيادة عدم الاخلال بما مر لان قصد الاستخفاف منافٍ للتصديق. (ردالمحتار ص ۳۱۱ جلد ۳ مطلب فى منكر الاجماع) قال العلامه ابن البزاز الكردرى لان حفظ القرآن فرض كفاية وتعلم ما لا بد من الفقه فرض عين. (فتاوى بزازيه موضوع على الهنديه ص۳۷۷ جلد ۶ كتاب الاستحسان)

﴿۲﴾ (الدرالمختار ص ۳۳۷ جلد ۳ مطلب فى مستحل الرقص قبيل باب البغاة)

﴿۳﴾ قال ابن عابدين فى تحقيق الايمان امور الاخلال بها اخلال بالايمان اتفاقاً كترك السجود لصنم وقتل نبى والاستخفاف به وبالمصحف والكعبه الخ (رد المحتار ص ۳۱۰ جلد ۳ قبيل مطلب فى منكر الاجماع)

﴿۴﴾ (مشكواة المصابيح ص ۴۲۲ جلد ۲ باب الشفقة والرحمة على الخلق)



## علماء راته د سيکانو پشان ښکارې او دداسې نورو الفاظو حکم

**سوال:** اهل سنت والجماعت دداسې سړې په باره کښې څه فرمائي چه دعلمائې دين په باره کښې د ګستاخانه خبرو نه علاوه دا هم وائي چه ددوې ماته د سيکانو پشان ښکارې ددې سړې په شريعت کښې څه حکم دې؟

المستفتي:........نامعلوم

**الجواب:** که دا ګستاخي د بعضې علماؤ سره وې او د ذاتياتو په بناء باندې وې نو دا فسق دې او که دعام علماؤ په حق کښې وې نو په دې باندې د کفر ويره ده ﴿۱﴾ في شرح فقه الاكبر عن الخلاصة من ابغض عالماً بغير سبب ظاهر خيف عليه الكفر ﴿۲﴾ انتهي.

## په امربالمعروف کښې دطاقت استعمالول اودعالم بې حرمتي کول

**سوال:** علمائې دين څه فرمائي چه عالم من حيث انه عالم ته کنځل کول څنګه دي او عالم په امر بالمعروف کښې طاقت استعمالولې شي او که نه؟ او عالم ته کنځل کولو سره کفر لازم کيږي او که نه؟

المستفتي: عبدالرحمان مال روډ پشاور... ۳۰،۱۱،۱۹۷۷

**الجواب:** که عالم ته کنځل کول د امربالمعروف او نهي المنکر د وجې نه وې او د دنيوي سبب د وجې نه وې نو د شرعی قواعدو په نظر سره دا سړې کافر شوې دې. ﴿۳﴾ عالم ته امر بالمعروف په ژبې باندې پکار دې ﴿۴﴾ ماخوذ از فتاوی هنديه و هدايه. فقط

﴿۱﴾ قال ابن نجيم و يخاف عليه الكفر اذا شتم عالماً او فقيهاً من غير سبب. (بحرالرائق ص ۱۲۳ جلد ۵ باب احكام المرتدين)

﴿۲﴾ (شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص ۱۷۳ فصل فى العلم والعلماء)

﴿۳﴾ و فى الهندية و يخاف عليه الكفر اذا شتم عالما او فقيهاً من غير سبب و يكفر بقوله لعالم ذكر الحمار فى است علمك يريد علم الدين. كذا فى البحر الرائق. (هنديه ص ۲۷۰ جلد ۲ منها ما يتعلق بالعلم و العلماء) و فى الخانيه رجلان بينهما خصومة فقال احدهما للاخر بيا تا بعلم رويم فقال الاخر من علم چه دانم قال ابو بكر القاضى يكفر المجيب لانه استخف با لعلم. (فتاوى خانيه موضوع على هامش الهنديه ص ۵۷۵ جلد ۳ باب ما يكون كفراً من المسلم و ما لا يكون)

﴿۴﴾ فى الهنديه ولو علم باكبر رأيه انه لو امرهم بذلك قذفوه و شتموه فتركه افضل و كذلك لو علم انهم يضربونه ولا يصبر على ذلك ويقع بينهم عداوة ويهيج منه القتال فتركه افضل ........ ويقال الامر بالمعروف باليد على الامراء وباللسان على العلماء وبالقلب لعوام الناس وهو اختيار الذندويستى كذافى الظهيرية. (هنديه ص ۳۵۳ جلد ۵ الباب السابع عشر فى الغناء ........ والامر بالمعروف كتاب الكراهية)

## ټول علماؤ فتنه باز ګرځول کفر دي

**سوال:** که چرته یو سړي دا وائي چه ځومره علماء دي ټول فتني او فسادونه جوړوي. د داسي الفاظو استعالونکی په باره کښې د اسلام څه حکم دي؟

المستفتي: نامعلوم.... ۱۸۱۹۱۱۹۷۷

**الجواب:** ټول علمائي کرام فتني والا ګرځول کفر دي ﴿۱﴾

لانه یستلزم بغض العلم واستخفاف العلم لزوماً بیناً وهو کفر کما فی شرح الفقه الاکبر لملا علی القاری ص ۱۴۰ وفی الخلاصة من ابغض عالماً من غیر سبب ظاهر خیف علیه الکفر قلت الظاهر انه یکفر لا نه اذا ابغض العالم من غیر سبب دنیوی او اخروی فیکون بغضه لعلم الشریعة ولا شک فی کفر من انکره فضلا عمن ابغضه انتهیٰ قلت وهذا اظهر جداً عند بغض الجمیع فافهم وفیه ایضا ص ۱۴۱ من قال لعالم عویلم اولعلوی علیوی ای بصیغة التصغیر فیهما للتحقیر کما قیده بقوله قاصداً به الا ستخفاف کفر انتهیٰ.﴿۲﴾

## د ږیرې والا ته (سیکهـ) سره آواز کول

**سوال:** علمائې دین دې باره کښې څه فرمائي چه یو سړی بل متشرع ږیرې والا مسلمان ته کله آواز کوي نو په سیکهـ سره ورته آواز کوي او دا ږیرې والا د هغه دوست دې نو په شریت محمدي ﷺ کښې د دې څه فیصله ده؟

المستفتي: فیض محمد راولپنډی

**الجواب:** که دا سیکهـ وغیره القابو سره راغوښتل د ږیرې د توهین په وجې باندې وي نو دا سړی کافر شو او که د خوش طبعیتئ او مشابهت په وجې وی نو فاسق دې. یدل علیه مافی ردالمحتار﴿۳﴾ص ۳۹۲ جلد ۳ ان ما کان دلیل الاستخفاف یکفر به وان لم یقصد الاستخفاف فافهم، فقط

---

﴿۱﴾ و فی الهندیه یخاف علیه الکفر اذا شتم عالماً او فقیهاً من غیر سبب ویکفر بقوله لعالم ذکر الحمار فی است علمک یرید علم الدین کذا فی البحر الرائق.
(هندیه ص ۲۷۰ جلد ۲ منها ما یتعلق با لعلم و العلماء)

﴿۲﴾ (شرح فقه الاکبر لملا علی القاری ص ۱۷۳، ۱۷۴ فصل فی العلم و العلماء)

﴿۳﴾ (ردالمحتار ص ۳۱۱ جلد ۳ قبیل مطلب فی منکر الاجماع)



## (په ږیرې والؤ کښې ډیر شیطانیت دې) د دې الفاظو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د نکاح په تقریب کښې نکاح خوان مولوي صاحب د ناوې خواته د ګواهان لیږل او غوښتل یو سړي اووئیل هغه ګواهان اولیږه چه د ستخط کولې شي اوس د ګوتې لګولو وخت نه دې نو مولوي صاحب ورته اووئیل چه اسلامي نقطه نظر مطابق به شرعي ګواهان لیږم هغه سړي اووئیل چه ږیرو والاؤ کښې ډیر شیطانیت دې د ږیرو والؤ نه دا بې ږیرې ډیر تعلیم یافته هم وي او ښه هم وي نو اوس په شریعت محمدي کښې د داسې سړي څه حکم دې؟

المستفتي: عبد القدوس کوه مري راولپنډی

**الجواب:** دې سړې براه راست د ږیرې توهین نه دې کړې بلکه د بعضې ږیرې والاؤ ئې (شیطانیت په وجه باندې) توهین کړې نو د دې وجې نه دا سړې کافر نه شو ﴿۱﴾ لیکن دومره معلومیږي چه دده په زړه کښې د ږیرې عزت نشته نو په دې وجه دده ایمان ته خامخا خطره شته﴿۲﴾ فقط.

## د شرعي فیصلې نه انکار کول کفر دي

**سوال:** که په فیصله (جرګه) کښې یو سړې د شرعي فیصلې نه انکار اوکړې نو آیا دا کفر نه دې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: سعید الله مولوي صوابی.... ۱۴ ذي قعده ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** د شرعي فیصلې نه انکار کول کفر دې البته د قاضي او فیصله کونکې د جهالت (ناپوهئ) او ظلم په وجې انکار کول کفر نه دې ﴿۳﴾ کما في شرح الفقه الاکبر من قال لاخر اذهب معی الی الشرع فقال الاخر لا اذهب حتی تاتی بالبیدق ای المحضر کفر لانه عاند الشرع.﴿۴﴾ فقط.

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین ینبغی ان یکفر من شتم دین مسلم و لکن یمکن التاویل بان مراده اخلاقه الردیئة ومعا ملته القبیحة لاحقیقه دین الاسلام فینبغی ان لایکفر حینئذٍ. (ردالمحتار ص ۳۱۶ جلد ۳ قبیل مطلب توبة الیاس)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین ان ما کان دلیل الاستخفاف یکفر به وان لم یقصد الاستخفاف.
(ردالمحتار ص ۳۱۱ جلد ۳ مطلب فی منکر الاجماع)

﴿۳﴾ فی الهندیه ولو قال آن وقت که سیم ستدی شریعت وقاضی کجا بود یکفر ایضا ومن المتاخرین من قال ان عنی به قاضی البلدة لا یکفر. (هندیه ص ۲۷۲ جلد ۲ منها ما یتعلق با لعلم والعلماء)

﴿۴﴾ (شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۷۵ فصل فی العلم و العلماء)

## چه څوک د شریعت فیصلې ته تیار نه وي دهغه حکم

**سوال:** ددوو کسانو خپل مینځ کښې اختلاف پیدا شو یو کس په تحریري طریقې سره هم او په جُمات کښې د ټولو خلقو مخې ته دا ووئیل چه په دې اختلافي مسئله کښې په شریعت فیصله اوکړه مګر هغه مخالف ئې په شریعت باندې فیصلې ته نه دې تیار نو اوس دهغه سړې د شریعت نه د تښتیدلو په نتیجه کښې څه پوزیشن پاتې شو آیا چرته د جمات امام او خطیب جوړیدلې شي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: اهالیان مسجد اشرفیه اسلام آباد.... ۱۳ ربیع الثاني ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** کوم سړې چه د شریعت فیصلې ته تیارنه وي نو هغه دددې جاهلانه او منافقانه رویې په وجه باندې دشرعی منصب (امامت او خطابت) اهل نه دې،

قال الله تبارک وتعالیٰ واذا قیل لهم تعالوا الی ما انزل الله والی الرسول قالوا حسبنا ما وجدنا علیه آباء نا (الآیة سورة مائده) ﴿۱﴾ وقال فلا وربک لا یؤمنون حتی یحکموک فیما شجر بینهم ثم لا یجدوا فی انفسهم حرجا مما قضیت ویسلموا تسلیماً. النساء ﴿۲﴾. وفی الهندیه ص ۲۹۸،۲۹۹ جلد ۲ رجل قال لخصمه اذهب معی الی الشرع او قال بالفارسیه با من بشرع برو وقال خصمه بیاده بیارتا بروم بے جبر نروم یکفر لا نه عاند الشرع وقال بعد اسطرمن بر سم کار کنم نه بشرع یکفر ﴿۳﴾. وفی رد المحتار ص ۳۹۲ جلد ۳ وبالجمله فقد ضم الی التصدیق بالقلب اوبالقلب واللسان فی تحقیق ایمان امور الا خلال بها اخلال بالایمان اتفاقاً کترک السجود للصنم ......... وکذا مخالفة... او... انکار ما اجمع علیه الخ ﴿۴﴾

ددې اياتونو او عبارتونو نه معلومه شوه چه شرعي فيصلې ته نه تياريدو والا او ددې نه علاوه رسمونو او قانون طرفته مائل کيدو والا سړې کافر دې کله چه شريعت نا مکمله يا بې فائدې ګڼړې. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (پ: ۷ سورة مائده رکوع: ۴ آیت: ۱۰۴)
﴿۲﴾ (پ: ۵ سورة النساء رکوع: ۶ آیت: ۶۴)
﴿۳﴾ (هندیه ص ۲۷۱، ۲۷۲ منها ما یتعلق با لعلم والعلماء)
﴿۴﴾ (ردالمحتار ص ۳۱۰ جلد ۳ قبیل مطلب فی منکر الاجماع)



## خدائې تعالی ته د کنځلو والا ملګرتیا کونکې هم کافران دی

**سوال:** زید خدائې ته کنځل اوکړل نو دهغه اوښې (د خور خاوند) هغه لره او وهلو ددینه وروستو یو بل اوښې ئې راغې هغه وهلو والا ئې اووهلو وئیل ئې چه تا زید ولې وهلې دې داسې کنځل خو خدائې ته هر څوک کوی هغه داسې الفاظ استعمال کړې وو چه الله تعالی ما وړې ساتي دهغه داسې داسې اوکړم، اوس په شریعت دهغه څه حکم دې.

المستفتي: شمس الدین ملتان شهر... ۲۰ جولائې ۱۹۷۹

**الجواب:** زید او دهغه ملګرتیا کولو والا ټول کافران دي ددوي نکاحونه ختم شویدي په دوي باندې د تجدید اسلام (اسلام تازه کولو) نه پس تجدید نکاح ضروري ده. لانهم صرحوا بکفر من سب الله تعالی ﴿۱﴾ کما فی شرح الفقه الاکبر ولانه اعترض علی الله تعالی لفوات الماکل کما ان الشیطان اعترض علی الله تعالی لفوات الجاه والخلافة. ﴿۲﴾ فقط

## خدائې او رسول ته د کنځلو کولو والا توبه اود ایمان تجدید

**سوال:** زید په کورنئ کښې په جذ باتو کښې نا څا په د خدائې او رسول په باره کښې داسې نازیبا الفاظ استعمال کړل چه د هغې لیکل هم ځه مناسب نه ګڼړم لیکن زید سمدستي جمات ته لاړلو دوه رکعته نفل ئې اوکړل تجدید ایمان ئې اوکړو او ډیر په ژړائې معافي اوغوښتله نو مقامي کسانو ئې د خدائې متعلق وئیلې شوو الفاظونه د توبې قبلیدو اعتماد اوکړو لیکن د رسول متعلق د توبې نه قبلیدو نه ئې انکار اوکړو او ښځه ئې ورله مطلقه اوګرځوله نو تاسو شرعي حیثیت واضح کړئ. مهرباني به وي؟

المستفتي: مولوي عبدالمتین ډاګئ مردان.......... ۱۹ شوال ۱۴۰۵ھ

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری ان الرضا بکفر غیره انما یکون کفراً اذا کان یستجیزه ویستحسنه .......... وقد عثرنا علی روایة ابی حنیفه رحمه الله ان الرضاء بکفر الغیر کفر من غیر تفصیل.
(شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۸۰ فصل فی الکفر صریحاً و کنایةً)
﴿۲﴾ وفی الهندیه: قال ابو حفص رحمه الله تعالی من نسب الله تعالی الی الجور فقد کفر و بعد اسطر رجل قال یا خدای روزی بر من فراخ کن یا با زر کانی من رونده کن یا بر من جور مکن قال ابو نصر الدبوسی رحمه الله تعالی یصیر کافراً با لله کذا فی فتاوی قاضیخان.
(هندیه ص ۲۵۹، ۲۶۰ جلد ۲ منها ما یتعلق بذات الله تعالی و صفاته)

**الجواب:** الله تعالی یا رسول الله ﷺ ته کنځل کول کفر او ارتداد دي خود اهل تحقیق علماؤ په نزد توبه ئي قبوله ده کما في الدرالمختار ﴿۱﴾ نو بس په دې کنځلو واله باندې ضروري دي چه توبه اوباسي او تجدید ایمان او تجدید نکاح اوکړي په دې کښې حلاله وغیره نه وي. والله اعلم

## په مرتد او کافر کښې فرق اود دواړو توبه او استغفار

**سوال:** په مرتد او کافر کښې څه فرق دې اوکه دا دواړه رشتني زړه سره توبه او استغفار اوکړي نو آیا دا سړې په دائره اسلام (اسلامي حلقه کښې) شامل دي او مسلمان کیدیشي؟

المستفتي: روشن ګل صوابي مردان.....۱۱۱۱۱۹۲۹

**الجواب:** مرتد هغه سړي ته وئیلې شي چه د اسلام مذهب پریږدي او کافر هغه سړي دې چه د دین د ضروري خبرو نه منکر وي ﴿۲﴾ نو هر مرتد کافر وي او هر کافر مرتد نه وي او دواړو دپاره توبه او استغفار کافي دي. ﴿۳﴾ فقط

## د کافر په مرګ باندې اِنَّالله وئیل

**سوال:** آیا د کافر د مرګ په وخت کښې انا لله وانا الیه راجعون وئیل صحیح دي که نه؟

المستفتي: یو د خدائې بنده...۱۲ ربع الثاني ۱۴۰۳ه

**الجواب:** د کافر رشته دار مرګ هم مصیبت دې نو په هغې هم استرجاع (یعني انالله...) وئیل جائز دي. ﴿۴﴾:

﴿۱﴾ قال الحصکفی والکافر بسب نبی من الانبیاء فانه یقتل حدا و لا تقبل توبته مطلقا و لو سب الله تعالی قبلت ...... لکن صرح فی آخر الشفاء بان حکمه کالمرتد و مفاده قبول التوبة.
(الدرالمختار ص ۳۱۷،۳۱۹ جلد ۳ مطلب مهم فی حکم ساب الانبیاء)

﴿۲﴾ قال الحصکفی باب المرتد هو الراجع عن دین الاسلام ورکنها اجراء الکفر علی اللسان .......... والکفر شرعاً تکذیبه ﷺ فی شئی مما جاء به من الدین ضرورة. (الدرالمختار ص ۳۰۹،۳۱۱ جلد ۳ باب المرتد)

﴿۳﴾ قال الحصکفی وکل مسلم ارتد فتوبته مقبولة و بعد اسطر و مفاده قبول التوبة کما لا یخفی.
(الدرالمختار ص ۳۱۷،۳۱۹ جلد ۳ مطلب مهم فی حکم سباب الانبیاء)

﴿۴﴾ عن ام سلمة قالت قال رسول الله ﷺ اذا اصابت احدکم مصیبة فلیقل انا لله و انا الیه راجعون اللهم عندک احتسب مصیبتی فاجرنی فیها و ابدل بها خیراً منها. (ابو داؤد ص ۸۹ جلد ۲ باب فی الاسترجاع)



## کوم سړي چه د معراج نه انکار اوکړي نود هغه څه حکم دې؟

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین د هغه سړی باره کښې چه هغه ربیرې والوته منافق وائی اود هغه عقیده داده چه د حضور ﷺ معراج په خوب کښې شوې دې، حضرت عیسٰی علیه السلام وفات شوې دې، سیرت النبی ﷺ جلسه کول د ابوجهل سنت دی حضرت اویس قرنی جاهل وو. حضور ﷺ آسمان ته د بللو څه ضرورت وو. خدائې هرځائې موجود دې. مونځ ورکونکی په غوړونو کانړۀ دی وغیره وغیره. د داسې سړی څه حکم دې؟

المستفتی: عبدالله صدر کیمل پور

**الجواب:** که مستفی ربنتیا وی نو دا سړې کافر دې:

فی الهندیه ومن انکر المعراج ینظر ان انکر الاسراء من مکة الیٰ بیت المقدس فهو کافر وان انکر المعراج من بیت المقدس لایکفر ﴿۱﴾ ص ۸۸ جلد ۱ والبحر ص ۳۴۹ جلد ۱ ﴿۲﴾ فقط

(یعني هندیه کښی دی چه د معراج نه منکر باره کښې په کتلې شی که هغه د اسراء من مکة الی بیت المقدس نه انکار کوی نو کافر به وی او که د بیت المقدس نه آسمانونو ته د تلو نه انکار کوی نو کافر به نه وی.)

## د دهري په عذاب قبرباندې اعتراض

**سوال:** دلته زمونږ په علاقه کښې یو دهری کمیونسټ لاندې قسم خرافات خوروی: (۱) چه مسلمان مرګ بوځل منی اوکه دوه ځل؟ که یو ځل ئې منی نو یو مرګ خو په عالم دنیا کښې دې او ستاسو د نظرئې مطابق خو په قبر کښې سوال اوجواب دې نو د غه حیات ځنګه دې، روح عود کوی که نه، حیات مکمل دې یا نه، که جواب په نفی کښې دې نو سوال کول ځنګه صحیح شو. او که حیات مکمل دې نو بیا مرګ دوه ځل شو که بیا مرګ نشته نو ژوندي به په قبر کښې ناست وی وغیره وغیره، اودا وائی چه که مجرم مړی ته عذاب ورکړې کیږی نو په دوه دوه نیم ګزه قبر کښې دا لوئې لوئې ګرزونه وغیره ځنګه ځائې کیدې شی؟

المستفتی: حاجی غلام محمد تور ورسک بونیر سوات ۲۹ اشوال ۱۴۰۴ه

﴿۱﴾ هندیه ص ۸۴ جلد ۱ (الفصل الثالث فی بیان من یصلح اماماً لغیره)

﴿۲﴾ (بحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

**الجواب:** واضحه دي وی چه د دنیوی مرګ نه پس دعام مړو روحونه ژوندی وی او په اجسادو کښې یوقسم حیات ایخودې شی.﴿۱﴾ په روح یا جسم ته د ثواب یا عذاب مسئله اودغسې نورې مسئلې حل شوې او چونکه د قبرنه مراد عالم برزخ دې، اود قبر دکیفیاتو د ادراك نه بنده عاجزدې، اودا وهل او کینول وغیره تعبیرات د افهام او تفهیم دپاره دی، لهٰذا دا اجمالا منل اود تفصیل علم الله تعالٰی ته سپارل ضروری دی.فقط

## د حجیت حدیث منکر کافر دې

**سوال:** د منکرحدیث څه حکم دې؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتی: عبدالرحیم طوروی مردان

**الجواب:** د حجیت حدیث منکرکافردې.﴿۲﴾ البته یوحدیث د مسلمه اصولو لاندې پریخودل معروف اومتعامل دی اود صحابه کرامو رضي الله عنهم ثابت سنت ختمونکې او بدعت سیئه جاری کونکې مبتدع او ملحد دې.

## کفریه عقائد لرونکی، دده معاون اود کتابونو ضبط کولو حکم

**سوال:** یوسړې اعلانیه او تحریری طورباندې لاندې عقائد لری.(۱) چه د حضور ﷺ جسمانی معراج یوه تاریخی قصئ ده، چه دا دعیسٰی علیه السلام د ژوندی پورته کولو په نمونه کښې دځانه جوړه کړې شوې ده، دحضرت جبرئیل علیه السلام هیڅ وجود نشته قرآن مجید دالله تعالی اود نبی کریم ﷺ په شریکه ژبه کښې دې چه ددې اصول او قواعد دائمی او ابدی نه دی د وحی انداز شاعرانه تخیل دې، حضور ﷺ که هرڅرته ګرځیدو نه، نو تاریخی واقعات به نه معلومیدل

﴿۱﴾ قال العلامه قاری و اعلم ان اهل الحق اتفقوا علی ان الله تعالی یخلق فی المیت نوع حیاة فی القبر قدر ما یتألم او یتلذذ، و لکن اختلفوا فی انه اهل یعاد الروح الیه؟ والمنقول عن ابی حنیفه رحمه الله التوقف الا ان کلامه هنا یدل علی اعادة الروح اذ جواب الملکین فعل اختیاری فلا یتصور بدون الروح وقیل قدیتصور الا تری ان النائم یخرج روحه ویکون روحه متصلاً بجسده حتی یتألم فی المنام ویتنعم؟ وقد روی عنه علیه الصلواة و السلام انه سئل کیف یوجع اللحم فی القبور ولم یکن فیه الروح فقال ﷺ کما یوجع سنک و لیس فیه الروح الخ (شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۰۱ ضغطة القبر وعذابه حق)

﴿۲﴾ قال الله تعالی و ما ینطق عن الهوی. ان هو الا وحی یوحی. الآیة. وفی الهندیه من قرأ حدیثا من احادیث النبی ﷺ فقال رجل همه روز خلشها خواند قال ان اضاف ذلک الی القاری لا الی النبی ﷺ ینظر ان کان حدیثا یتعلق بالدین واحکام الشرع یکفر. (هندیه ص ۲۶۶ جلد۲ منها ما یتعلق بالانبیاء علیهم الصلاة والسلام)



نو قرآنی واقعات به قطعاً پوهه کښې نه راتلل، دحضور ﷺ د نوم مبارك لیکلو په وخت احترام ضروری نه دې، په انګریزئ په سوونو ځل اسم مبارك ذکر کړه خویوځل هم (the holy) یا روستو د نوم مبارك نه (peace be upon him) لیکلو تکلیف مه کوه، د منکرین ختم نبوت دمسلمان کیدو دې سرکاری طورباندې اعلان اوکړې شی.(۲) دداسې سړی باره کښې څه حکم دې چه هغه داسې کسانوته د قومی خزانې نه ډیر مالی امداد ورکړی اود ناپاکو عقیدو د خورولو او اشاعت دپاره باقاعده یومنظم اداره جوړه کړی چه هغې سره عملی معاونت ثابت شی، او دهغه د خرافاتو یعنی مطبوعاتو ضبط کولونه مخ اړوی، دمنکرین ختم نبوت طرفداری کوی او د مرزائیت عقیدو مشهورولو دپاره د قومی بجټ نه په لکهونو روپئ ورکوی د عائلی قوانینو او خاندانی منصوبه بندئ په ذریعه فحاشی او بدو اخلاقو خورولو دپاره سامان اسباب تیاروی.(۳) د مذکوره عقائدو مشهورولو او خورولو دپاره که یوکتاب په کومه ژبه کښې شائع شوې وی نودهغې باره کښې د کلام پاك فیصله څۀ ده؟ په دې باره کښې فتوٰی راکړئ؟

المستفتی: رانا ظفرالله ډاکخانه الجامه ضلع ساهیوال ...۱۹۶۹ء/۱/۹

**الجواب:** (۱) چونکه دا سړې د ضروریاتو ددین نه منکردې.﴿۱﴾ لهٰذا دا سړې بې شکه او بې شبهې کافردې.(۲) داسې فرد او افراد مداهن یا منافق یا زندیقان دی.(۳) داسې کتاب نه ضبط کول د کفر تابعداری ده.فقط

## د ږیرې توهین کونکې کافردې

**سوال:** د ږیرې د توهین او بې عزتی کونکی څه حکم دې؟ اود کنځل کونکی څه حکم دې؟

المستفتی: سیدمحمد پنډ بیګوال اسلام آباد...۲۳ اشوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د ږیرې توهین او بې عزتی کونکې کافردې.د انبیاؤ سنتو پورې استهزاء او سنتو لره سپك ګڼړلوسره سړې کافرکیږی.

لما فی ردالمحتار ص ۳۹۲ جلد۳ اوا ستقباحها کمن اسقبح من آخر ......الی ان قال ان ما کان دلیل الاستخفاف یکفر به وان لم یقصد الاستخفاف﴿۲﴾

﴿۱﴾ قال الحصکفی والکفر شرعاً تکذیبه ﷺ فی شئی مما جاء به من الدین ضرورة. (الدرالمختار ص ۳۱۱ جلد ۳ باب المرتد)

﴿۲﴾ (ردالمحتار ص ۳۱۱ جلد ۳ مطلب فی منکر الاجماع)

﴿۳﴾ عن عبدالله بن مسعود قال قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله کفر متفق علیه. (مشکواة المصابیح ص ۴۱۱ جلد۲ باب حفظ اللسان والغیبةو الشتم الفصل الاول)

## د آذان او مؤذن د توهین حکم

**سوال:** یو سړی په جمات کښې آذان کولو نو یوې ښځې اووئیل چیلې چغې وهی. لهٰذا ددې دپاره شرعی حکم راکړئ؟

المستفتی: خلیل الرحمٰن هزاره

**الجواب:** اذان ددین د شعائرونه دې، دې پورې استهزاء کول کفردې.﴿۱﴾ او غیر شعائرو پورې استهزاء کول کفرنه دې، اوکه د آواز قباحت ئې مقصود وی نو فسق دې.﴿۲﴾

**یدل علی الاول مافی ردالمحتار ص ۲۸۴ جلد۳ اواستقباحها کمن استقبح من آخر جعل بعض العمامة تحت حلقه اواحفاء شاربه﴿۳﴾اه وما الثانی فلقوله تعالیٰ لایسخر قوم من قوم الآیه.﴿۴﴾**

## د فقهې او اجتهاد نه د منکرحکم

**سوال:** د فقهې نه د منکرڅه حکم دې؟ بعضې حضرات ورته کافر او مرتد او بعضې ورته مسلمان وائی لهٰذا دده باره کښې وضاحت سره شرعی حکم واضحه کړئ چه خلق ئې په حقیقت باندې خبرشی؟

المستفتی: مرادالحق ناصر پوره پشاور.....۱۳رجب ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د فقهې د منکرنه مراد که غیرمقلد وی نودا انکار کفرنه دې البته د اهل تقلید د امامت اهل نه دې، اوکه ددې نه مراد منکراجتهاد اود ائمه کرامو توهین کونکې وی نوپه ظاهر ده ته مسلمان وئیل صحیح او مناسب نه دی.﴿۵﴾

## د آذان په دعا کښې ،،وارزقنا شفاعته،، نه ویونکې کافرنه دې

**سوال:** بعضې خلق د آذان نه روسته دعا کښې وارزقنا شفاعته،، وئیلو ته بدعت

﴿۱﴾ وفی الهندیه فی التخیر موذن اذن فقال رجل این بانگ غوغا است یکفر ان قال علی وجه الانکار. (هندیه ص ۲۶۹ جلد ۲ منها ما یتعلق با لصلواة والصوم)

﴿۲﴾ قال ابن نجیم ویکفر بالاستهزاء با لاذان لابالموذن. (بحرالرائق ص ۱۲۲ جلد۵ احکام المرتدین)

﴿۳﴾ ردالمحتار ص ۳۱۱ جلد۳ باب المرتد قبیل مطلب فی منکر الاجماع)

﴿۴﴾ قال الله تعالی لا یسخر قوم من قوم.(پ: ۲۶ سورة الحجرات رکوع: ۱۳ آیت: ۱۱)

﴿۵﴾ وفی الهندیه رجل قال قیاس ابی حنیفة رحمه الله تعالی حق نیسبت یکفر کذافی التتارخانیه. (عالمگیری ص ۲۷۱ جلد ۲ موجبات الکفر منها ما یتعلق بالعلم والعلماء)



حسنه وائی، اودا وائی چه دې الفاظو لره ددعا نه کټ کونکې دحضور ﷺ د درجاتو اود شفاعت منکرکیږی لهٰذا دې سره سړې کافرکیږی آیا دا صحیح دی؟

المستفتی: فضل واحد سالارزی باجوړ.....۲۳ا رمضان ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** دا جاهلانه خبره ده.﴿۱﴾ فقط

## ختم قرآن باندې ملیانو ته څه ورکول او دوی ته کافر ویونکی باندی په خپله د کفر خطره ده

**سوال:** ﴿۱﴾ زمونږ په کلی کښې یو سړی قبر پوخ کړواو ختم قرآن دپاره ئې مولایان صاحبان راوستل اود ختم نه روسته ئې هغوی ته څه رقم ورکړو آیا دا اجرت اخستل جائزدی؟﴿۲﴾ ما دغه ملیانو ته اووئیل چه تاسو حرام اوخوړل دا ناجائزدی په جواب کښې راته یو مولوی صاحب اووئیل چه دا حلال دی مونږ به ئې خورو ته څه ملا خونه ئې. ماپه جواب کښې اووئیل چه حرامو ته حلال وئیل کفردې په تاسو باندې ښځې طلاق شوې آیا دا مولیان صاحبان په دې حکم کښې راغلل یا نه؟﴿۳﴾ ما دغه مولیانو صاحبانو ته اووئیل چه په تاسو پسې مونځ نه کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد یونس ختك ضلع وتحصیل مردان ساولهیر۲۲ ا شوال ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** ﴿۱﴾ په داسې قسم ختم باندې اجرت اخستل او ورکول مختلف فیه دی اوپه فتاوی هندیه کښې ئې جواز ته اصح وئیلی دی.

**حیث ذکر فیها واختلفوا فی الاستیجار علی قراءة القرآن علی القبر مدة معلومة قال بعضهم لا یجوز وقال بعضهم یجوز وهو المختار و کذا فی السراج الوهاج﴿۲﴾الهندیه ص ۳۶۱ جلد۴)**

البته زمونږ اکابرو محرم ته ترجیح ورکړې ده.﴿۲﴾ دا طعام او روپئ اولاً هدیه دی اوحلال دی اوکه ددوی اجرت اخستل ناجائز اومنلې شی نودا حرام قطعی نه دی چه ددې مستحل کافرشی.﴿۳﴾ په داسې بې علمه سړی باندې په داسې فتوی ورکولو کښې په خپله د کافرکیدو خطره ده.﴿۳﴾ په دې امام پسې مونځ صحیح دې دا سړې بدعتی نه دې البته سلفیه خلق مبتدعین دی. وهوالموفق

﴿۱﴾ ددې الفاظو دعانه کټ کولو سره هیڅ نه کیږی اونه دا الفاظ دعاکښې شاملولو سره څه قباحت لازمیږی. دا شریعت سره متصادم نه دی. اونه ددې الفاظوپه کټ کولو سره د شفاعت دمنکرفتوی ورکولې شی البته که څوك هسې د شفاعت نه انکار اوکړی نوهغه کافردې. لما قال العلامه ابن نجیم ولا تجوز الصلاة خلف من ینکر شفاعة النبی ﷺ او ینکر الکرام الکاتبین او ینکر الرؤیة لانه کافر. (بحرالرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة.)(ازمرتب)

﴿۲﴾ فتاوی هندیه ص ۴۴۹ جلدمطلب الاستئجار علی الطاعات )

﴿۳﴾ قال ابن عابدین ،،تنبیه،، فی البحر والاصل من اعتقد الحرام حلالا فان کان حراما لغیره کما ل الغیر لا یکفروان کان لعینه فان کان دلیله قطعیا کفرو الا فلا. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۱۱ جلد ۳ مطلب فی منکر الاجماع باب المرتد)

## د بزرګانو په خبروکښې غلو کول

**سوال:** محترم مفتی صاحب! بعضې خلقو د بزرګانو په خبروکښې غلو کوی او وائی چه هرکه الله الله ګوید الله شود تعالی الله،، ددې څه حکم دې؟ بینواوتوجروا

المستفتی: رحمن الدین عفی عنه هائی سکول شیرینګل دیربالا ۲۳| ذیقعده ۱۳۹۶ھ

**الجواب:** ددې سړی دا کلام جاهلانه او مشرکانه کلام دې دده دپاره ضروری ده چه ددې کلام نه واپس شی او اصرار اونه کړی اومقابل له پکاردی چه افهام او تفهیم اوکړی.وهوالموفق

## یامحمد لیکل نه شرعی مطلوب دی نه ممنوع شرعی دی

**سوال:** یا الله سره د یا محمد لیکلومتعلق څۀ حکم دې آیا ،،یا،، حرف ندا حاضر ناظر د پاره ده چه محمد ﷺ سره لیکل ممنوع دی ددې د لیکلو وضاحت اوکړئ؟

المستفتی: هدایت خان بټ خیله ملاکنډ ایجنسی.... ۱۱|نومبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** یا الله سره یا محمد لیکل نه شرعی مطلوب دی اونه ممنوع شرعی دی البته غیرالله حاضرناظر منل یا عالم الغیب منل کفرجلی دې اوپه دې لحاظ سره موهم الفاظونه اجتناب مطلوب شرعی دی.《۱》وهوالموفق

## نداء لغیرالله ,, یاحق چاریار،،

**سوال:** ماقولکم اهل العلم رحمکم الله تبارک وتعالیٰ فی رجل اصابته مصیبة فاستغاث من الخلفاء الراشدین وناداهم حیث قال "یا حق چاریار"فهل تجوزهذه الاستغاثة والنداء علی عقیدة انهم من عبادالله الافضلین ویعلمهم الله تعالیٰ رجلا مصاباناديائم ینصرونه بامداد الله تبارک وتعالیٰ ایاهم فی ازالة النوائب ودفع المصائب لان التاثیر لله العزیز الغالب وما هؤلاء اولو االکراماة الا کامل الا وسائل المواهب حل المتاعب وسائر

---

《۱》شیخ محمدفرید مفتی اعظم پاکستان فرمائی:غیرالله ته غائبانه نداکول په پنځه قسمه دی: (۱) چه نبی وغیره ته کشف اوشی اونداء اوکړی دا جائزدی. (۲) دې عقیدې سره چه فرشتې ئې هغوی ته رسوی صرف په صلاة سلام کښې جائزدې. (۳) اوپه دې خیال چه ممکن ده چه الله تعالی ئې هغوی ته اورسوی دا موهم د شرك دې. (۴) دعشق اومحبت په وجه دحاضر اومخاطب په شان دا نه شرك دې اونه موهم د شرك، بلکه معمول اومعروف دې. (۵) دعلم غیب اوعلم کلی اعتقاد سره داشرك جلی دې.اود اهل شرك او اهل بدعډ شعار نه اجتناب ضروری دې.(مقالات ص ۲۰ غیرالله ته غائبانه نداء کول) (ازمرتب)



المشاکل کما ورد الشرع بالنداء لاولی الکرامات فی الفلاة حین اصابته نائبة من النائباة عباد الله اعینونی ام لا بل انما هذا اشراک بالله وما ورد من النداء فی الصلاة امر منصوصی فی مورد خاص للرجال الاقارب بالغیب اوالملئکة فلا سبیل للقیاس فلا یتعدی غیره من حادثات الناس فلیفد ناسائر الکرام نظرهم الله العلام کما نصروا الله تعالیٰ بالرد علی الواقعین فی ورطاة البدعاة والضلالاة والاثام مستدلین بما رأو فی الاجواف للوصول الی الاهداف مؤولین لصحاح الاحادیث ونصوص مجید الکتاب بالجواب الصریح الصواب وحررردالجواب تحت الاسطار لیکون داعیا لدعاء برکاتهم فی حیاتهم ومما تهم مرور الدهور والاعصار والسلام علیکم وعلی من لدیکم یا هؤالاء الاحرار.

المستفتی: مولوی خلیل الله باغ کیمپ نمبر۴
تحصیل مسلم باغ ضلع ژوب ۱۹۸۶ء|۹|۷

**جواب:** النداء الی غیرالله اذاکان علی وجه اعتقاد انه یعلم الغیب ویقدر علی النفع و الاضرار فشرک جلی .بخلاف نداء التشهد علی اعتقاد ان الملائکة یبلغون الصلاة والسلام وبخلاف عبادالله اعینونی فانه لم یثبت عند اهل الفن وعلی تقدیر الثبوت ارید منهم الکاتبون دون الارواح ودون الجن ودون رجال الغیب فان الاخیر من الاوهام .والاولین من المحتملات لکن الاحتمال لا یدفع الشرک کما عند النکاح باشهاد الله ورسوله《۱》 فافهم. وللبسط موضع آخر .وهوالموفق

## د پنج تن پاك د پنځو بتانوسره تشبیه ورکول

**سوال:** یوخطیب دخپل تقریر په دوران کښې د پنج تن پاك چه ددې نه مراد حضور ﷺ، حضرت علی رضی الله عنه، حضرت فاطمه رضی الله عنها، حضرت حسین رضی الله عنه او حضرت حسن رضی الله عنه دی،ددوی تشبیه ئې پنځو بتانوسره ورکړه چه دهغې نومونه ئې ګتوسره اوشمارل،چه وداً، سواعاً، یغوث، یعوق، نسراً_ آیا دې کلماتوسره دا خطیب مرتد شوې خونه دې؟ آیا داسې سړې د امامت اهل دې؟ جواب راکړئ.

المستفتی: محمداصغرخان صاحب..... ۱۹۷۲ء|۹|۲

---

《۱》رجل تزوج امرأة بشهادة الله ورسوله کان باطلاً لقوله علیه السلام لا نکاح الا بشهود وکل نکاح یکون بشهادة الله وبعضهم جعلوا ذلک کفراً لانه یعتقد ان الرسول علیه السلام یعلم الغیب وهو کفر. (فتاویٰ خانیه موضوع علیٰ هامش الهندیه ص ۳۳۴ جلد ۱ فصل فی شرائط النکاح)

**الجواب:** که دې خطیب صاحب دا وئیلي وي چه شیعه ګانو دا پنج تن پاک معبودان جوړ کړي دي لکه څنګه چه د نوح علیه السلام قوم ود، سواع، یغوث، یعوق، او نسر چه صالحان وو.(رواه البخاری) اویا انبیاء وو.(رواه ابن کثیرفی تفسیره) دوی لره ئې معبودان جوړ کړي وو نوپه دې کښې هیڅ نفاق یا ارتداد یا بطلان دعمل نشته.﴿۱﴾ وهوالموفق

## د زلیخا باره کښې د توهین الفاظ استعمالولو حکم

**سوال:** که څوک د زلیخا باره کښې دا الفاظ استعمال کړي چه دا زناکاره او بدکاره ښځه وه نو دغه سړي څه حکم دې آیا دې الفاظوسره دا سړې کافر کیږي نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: قاري بشیراحمد واپډا اکیډمي تربیله پروجیکټ هزاره۱۹/رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** چونکه قرآن اوحدیث کښې د امرأة العزیز باره کښې نه دا بیان شته چه دهغې نوم زلیخا وو اونه دا ذکرشته چه دا دحضرت یوسف علیه السلام په نکاح کښې راغلې وه، لهٰذا صرف د اسرائیلیاتو په وجه داسې بې دینه او فاحش سړې ته مونږ داسلام نه خارج نه شو وئیلې.﴿۲﴾ خصوصاً کله چه د غلبهٔ حال په وجه د حلت اوحرمت نه ذهن خالي شوې وي.وهوالموفق

## په یوغیرنبي باندې د نبي یا رسول وغیره اطلاق کول

**سوال:** لفظ نبي غیرنبي دپاره استعمالول شرعاً څنګه دي او ظل نبوت، بروزي نبوت، غیر تشریعي نبوت، مجازي نبوت وغیره اصطلاحات دغیر دپاره استعمالول څنګه دي؟

المستفتي: صوفي انورخالد جهنګ.....رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا اطلاقات ناجائزدي البته د رسالت او رسول باره کښې توسع راغلې ده لیکن د فتنې بندولو دپاره سختي ضروري ده.﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی واعلم انه لا یفتی بکفر مسلم امکن حمل کلامه علی محمل حسن.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۳۱۶ جلد ۳ قبیل مطلب توبة الیاس باب المرتد )
﴿۲﴾ قال العلامه حصکفی واعلم انه لا یفتی بکفر مسلم امکن حمل کلامه علی محمل حسن او کان فی کفره خلاف و لو کان ذلک روایة ضعیفة.(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۱۶ جلد ۳ قبیل مطلب توبة الیاس باب المرتد )
﴿۳﴾ قال العلامه سید احمد الطحطاوی فی هذا لمقام ان تقول امنت بالله و بجمیع ما جاء من عند الله علی ما اراد الله تعالی به و بجمیع الانبیاء والرسل حتی لا یعقد نیه من لیس نبیا او عکسه .(الطحطاوی علی المراقی ص۶ خطبه)



## د یوعالم باره کښې دا وئیل چه .. شیطان هم عالم وو..

**سوال:** علمائې دین څه فرمائي دهغه سړي باره کښې چه هغه د یوعالم باره کښې دا اووائي چه شیطان هم عالم وو هغه هم علم کړې وو.آیا دا وئیل درست دي؟ دویمه داچه آیا شیطان د فرشتو استاذ وو؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتي: قاضي حبیب السلام پیرسباق نوښهره...۴ذیقعده ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** شیطان عارف وو، عابد وو،طاؤس الملائکه وو لیکن د فرشتو استاذ نه وو﴿۱﴾ په معتبرو کتابونو کښې دا نشته.پس کوم عالم یا عارف چه بې عمله وي. متکبره وي. دهغه باره کښې دا نسبت کول د اعتراض قابل نه دي ګینې قابل د اعتراض به وي.وهوالموفق

## د مهدیت دعوٰی کونکي سړي حکم

**سوال:** د آرائین قوم یوسړي نن صبا د امام مهدي کیدو دعوٰی کړې ده.نبه په ښکاره اعلان کوي او زما مخامخ ئې هم دا دعوٰی کړې.ده دداسې سړي په شریعت محمدي صلی الله علیه وسلم کښې څه حکم دې؟

المستفتي: مولوي تاج محمود ضلع مظفرګړه لیه کروړ...۱۹۷۲ء|۷|۳۰

**الجواب:** د صحیح احادیثو نه ثابته ده چه د امام مهدي نوم به محمد وي اود پلار نوم به ئې عبدالله وي او سیدآل رسول به وي او بادشاه به وي.(هذه الروایات فی الترمذی وابی داؤد) ﴿۱﴾ اوشاید چه په دې سړي کښې ددې علاماتو نه یوهم موجود نه وي،لهٰذا دداسې پاګل سړي نه ځان ساتل پکاردي کله چه فتنې پورې خبره نه وي رسیدلې.وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامه عمادالدین ابن کثیر کان من اشدهم ای اشد الملائکة اجتهادًا و اکثرهم علماً، کان من اشراف الملائکة من ذوالاجنحة الاربعة کان من اشرف الملائکة و اکرمهم قبیلةً و کان خازنا علی الجنان کان له سلطان السماء الدنیا و کان له سلطان الارض وکان یسوس ما بین السماء والارض فعصی فمسخه الله شیطانا رجیما کان ابلیس رئیس ملائکة سماء الدنیا. (تفسیر ابن کثیر ص ۷۵ جلد ۱ سجود الملائکة لادم)
﴿۲﴾ عن عبدالله قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا تذهب الدنیا حتی یملک العرب رجل من اهل بیتی یواطئی اسمه اسمی .( جامع الترمذی ص۴۶ جلد ۲ باب ما جاء فی المهدی ابواب الفتن )عن عبدالله عن النبی صلی الله علیه وسلم قال لولم یبق من الدنیا الا یوم قال زائدة لطوّل الله ذالک الیوم حتی یبعث رجلا منی او من اهل بیتی یواطئی اسمه اسمی و اسم ابیه اسم ابی زاد فی حدیث فطر یملأ الارض قسطًا و عدلاً کما ملئت ظلماً وجورًا وقال فی حدیث سفیان لا تذهب اولا تنقضی الدنیا حتی یملک العرب رجل من اهل بیتی یواطئی اسمه اسمی قال ابوداؤد لفظ عمر و ابی بکر بمعنی سفیان. (سنن ابی داؤد ص ۲۳۹ جلد ۲ باب فی ذکر المهدی کتاب الفتن)

## پیغمبران بیایئند هم (شفاعت) تسلیم نه کنم.. ددي کلماتو حکم

**سوال:** چه فرمائند علماء دین درین مسئله که سه چار نفر سفید ریش ویک عالم بطور جرگه پیش شخصے از جانب آخر که درمیان هر دو قدرے رنجش بود آمده بودند. برائے عذر ومعذرت که اورامعاف کن مابطور جرگه نزد تو آمدیم. او در جواب گفت که شما تو شما هستید اگر پیغمبران علیهم السلام بیائند هم تسلم نه کنم (العیاذ بالله) پس ازروئے شرع شریف آن شخصے بایں لفظ بے ادبی گفتن مسلمان مانده یانه؟ وازاسلام بیرون شده است یا نه. ویا کدام تعزیر برائے او لازم است؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: عبدالله نادان شهید نوشهره پشاور .... ۸|۹|۱۹۶۹ء

**جواب:** عدم تسلیم مشورت وشفاعت پیغبر علیه الصلاة والسلام نه کفر ست ونه گناه ست بلکه جائز است بدلیل حدیث صحیح رواه البخاری قال النبی ﷺ (بریره رضی الله عنها) لوراجعتیه فقالت یا رسول الله تامرنی قال انما اشفع قالت لا حاجة لی فیه﴿۱﴾. (بحواله مشکواة باب خیا رالامة) فقط

**نوٹ:** این حکم دروقت اراده علم اهانت ست ورنه تجدید ایمان ونکاح بعد از توبه لازم است.

## د عیسیٰ علیه السلام کلمه وئیل ارتداد اود سنت رسول توهین کفردي

**سوال:** یوسړی د ګواهانو په مخکښي اووئیل (۱) چه زه دحضرت عیسیٰ علیه السلام کلمه وائم. (۲) انبیاء علیهم السلام ټول د ګنده نطفي نه پیدا دی. (نعوذبالله) (۳) مسلمانان چه کومه ختنه (سنت) کوی دا د امریکي او برطانيي د ډاکټرانو په خیال کښي صحیح نه دی په دي وجه دا کول نه دی پکار، ځکه چه دي سره د متیازو جراثیم ځی، بیماری خوریږی،

﴿۱﴾ عن ابن عباس ان زوجَ بریرة کان عبداً یقال له مغیث کانی انظر الیه یطوف خلفها یبکی ودموعه تسیل علی لحیته فقال النبی ﷺ لعباس یا عباس الا تعجب من حب مغیثٍ بریرة ومن بغض بریرة مغیثا فقال النبی ﷺ لو راجعتیه قالت یا رسول الله ﷺ تأمرنی قال انما اشفع قالت فلا حاجة لی فیه.
(صحیح البخاری ص ۷۹۵ جلد ۲ باب خیار الامة تحت العبد کتاب الطلاق)



اوهم په دي وجه مسلمانان بیماریږی آیا دا د سنت رسول ﷺ توهین نه دي؟

المستفتی: مولوی عزیزالرحمٰن صاحب خطیب پنډی ۲۹ ذیقعده ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** دا سړي مرتد او سابی دي د اصرار په صورت کښي به حکومت دهٔ ته سزائي موت ورکوی ځکه چه د عُرف عام په وجه د بل پیغمبر کلمه وئیل دهغه ددین خپلولو اعلان دي او مذهب اسلام پریخودل اود نصاراؤ مذهب اختیارول ارتداد دي، دغسي بعضي حقائق بي شکه اوبي شبهي استخفاف وی اود انبیاء علیهم السلام استخفاف کفردي، مثلاً که جج یا لوئي افسر وغیره ته څوك اووائی چه ستا پلار خپل آله تناسل ستا د مور په فلانی ځائي.....﴿۱﴾ دغسي چه کله دغیرمشهور سنت تخفیف کفردي نود ختنه په شان سنت چه شعائرو ددین څني دي دابه څنګه کفرنه وی.

**کما فی العالمگیری ص ۲۶۵ جلد ۲ (منهاما یتعلق بالانبیاء علیهم الصلاة والسلام) ولو قال این چه رسم است سبلت بست کردن ودستار بزیر کلو اور دن (ترجمه بالعربیه: ما هذه العادة تقصیر الشارب وارخاء الطیلسان تحت الرقبة) فان قال ذلک علی سبیل الطعن فی سنة رسول الله ﷺ فقد کفر کذا فی المحیط.**

## سوشلسټ سړی ته ترک موالات ضروری دی

**سوال:** څوك چه د سوشلزم حمایت کوی نوهغه سره ترك موالات جائزدي یانه؟

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** واضحه دي وی چه سوشلزم اسلامی معیشت سره متصادم دي په دي کښي عملی طورسره توافق ناممکن دي پس څوك چه په سوشلزم باندي یقین ساتی نوهغه په حقیقت کښي د اسلامی نظام موجب ترقئ باندي یقین نه ساتی داسي سړی سره ترك مولات کول جائز بلکه عند القدرت ضروری دي.﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ فی الهندیه من لم یقر ببعض الانبیاء علیهم الصلاة والسلام اولم یرض بسنة من سنن المرسلین فقد کفر .......سئل عمن ینسب الی الانبیاء الفواحش کعزمهم علی الزنی ونحوه الذی یقوله الحشویة فی یوسف علیه السلام قال یکفر لانه شتم لهم واستخفاف بهم.
(هندیه ص ۲۶۳ جلد ۲ منها ما یتعلق بالانبیاء علیهم الصلاة والسلام)

﴿۲﴾ عن ابی امامه قال قال رسول الله ﷺ من احب لله وابغض لله واعطی لله ومنع لله فقد استکمل الایمان رواه ابوداؤد والترمذی. (مشکواة المصابیح ص ۱۴ جلد ۱ کتاب الایمان)

## اسلامی نظام ته د فرسوده ویلو حکم او بې دینه سړی سره سیاسی جوړتوړ

**سوال:** که څوک مسلمان اود عقل وهوش والا سړي اعلان اوکړی چه اسلامی نظام فرسوده دي نود اسلامی شریعت په رڼاکښې هغه باندې کوم حد لګیدلې شی؟ دغسې بې دینه سیاسی پارټی یا داسې سړی سره سیاسی تعاون او سیاسی جوړ توړ جائزدې یا نه؟

المستفتی: ډاکټرعبدالمنان ایم بی بی ایس جنرل هسپتال سمندری ۱۹۷۲ء|۱۱|۱۶

**الجواب:** الله تعالی اسلامی نظام لره رحمت، نعمت اوموجب دفلاح او ترقئ ګرځولي دي،لهٰذا دي ته فرسوده نظام اوموجب د تنزل وئیل کذب او استخفاف دي اودا ویونکې مرتد او واجب القتل دي اوسیاسی جوړ توړ چه هرکله حقیقی حربیانو سره جائزدې نوحکمی حربیانو سره به په طریقه اولی جائزوی.(۱)

یدل علی کونه مرتداً ما فی ردالمحتار ماکان دلیل الاستخفاف یکفر به وان لم یقصد الاستخفاف ﴿۲﴾.وهوالموفق

## د روسی ایجنټ او دهری قسم خلقو حکم

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې بعضې دهری قسم خلق د روس ایجنټان او تنخواه داردی،اود خلقو دګمراه کولو کوشش کوی، دوی سره بائیکاټ جائزدې یا نه؟ حالانکه مونږ ددوی د پوهه کولو کوشش هم کړې دې.

المستفتی: صوفی اسماعیل وزیرستان .....۱۴۰۴ء|۵|۳

**الجواب:** که دا خبره رښتیاوی نودې خلقوسره د روسیانو په شان سلوك، مقاتله او ترك موالات ضروری دي.

قال الله تعالیٰ ومن یتولهم منکم فانه منهم (سورة مائده)﴿۳﴾.وهوالموفق

﴿۱﴾قال ابن عابدین(قوله و مفاده جواز الاستعانة با لکافر عند الحاجة)ذکر فی الفتح ان فی سنده ضعفا وان جماعةقالوا لا یجوز لحدیث مسلم انه علیه السلام خرج الی بدر فلحقه رجل مشرک فقال ارجع فلن استعین بمشرک الحدیث وروی رجلان ثم قال وقال الشافعی رده علیه الصلاة والسلام المشرک والمشرکین کان فی غزوة بدر ثم انه علیه الصلاة والسلام استعان فی غزوة خیبر بیهود من بنی قینقاع و فی غزوة حنین بصفوان بن امیه و هو مشرک فالردان کان لاجل مخیرًا بین الاستعانة وعدمها الخ (ردالمحتار علی الدرالمختار ص ۲۵۷ جلد ۳ مطلب فی الاستعانة بمشرک)

﴿۲﴾ ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۱۱ جلد ۳ قبیل مطلب فی منکر الاجماع)

﴿۳﴾(پ: ۶ سورة مائده ع : ۱۲ آیت : ۵۰)



## د سوشلزم د معتقد حکم

**سوال:** د سوشلزم د معتقد څه حکم دې؟

المستفتی: احسان الدین مظهرشمسی خان ضلعدیرملاکنډ ډویژن

**الجواب:** دکوم کس په نزد چه سوشلزم موجب د ترقئ او اسلامی نظام موجب د تنزل وی فرسوده نظام وی، نودغه سړی پخپله خپل ځان داسلام نه خارج کړې دي علماء به دۀ ته څنګه مسلمان وائی.(۱) البته کوم سړي چه د قومیت د ویرې په وجه دهغه مدد کړې دي نوهغه منافق دي کافرنه دي.وهوالموفق

## د سوشلزم باره کښې د ۱۱۵ علماؤ فتوٰی

**سوال:** په خدمت کښې دجناب شیخ الحدیث مولانا صاحب اود جناب مفتی صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه خټك عرض دادې چه مونږ د کراچئ په جنګ اخبارکښې د سوشلزم خلاف د یوسل پنځلس (۱۱۵) علمائې کرامو فتوٰی اوکتله،چه په هغې کښې سوشلزم اودهغوی سره مدد کوونکې کافرګرځولی شوی دی، دهغوی سره تعاون کول اوچنده ورکول ئې داسلام نړولو مترادف ګرځولی دی لهٰذا عرض دادې چه ددې فتوې باره کښې ستاسوصاحبانو څه رائې ده؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمدنذیرخان کهنه ډیر دیرملاکنډ ډویژن .....۱۳۸۹ء

**الجواب:** سوشلزم کفردې اود کافرانو ایجادکړې دي البته که څوک سړې ددې داسې تشریح اوکړی چه اسلامی اصولوسره متصادم نه وی نوهغې ته به کفر نه شی وئیلې.(۲) فقط

﴿۱﴾ قال العلامه علی قاری و کذا لو قال هذا زمان الکفر لا زمان کسب الاسلام ای کفر ان اراد انه ینبغی فی هذا ازمان کسب الکفر لا کسب الاسلام . بخلاف ما اذا اراد ان هذا زمان غلبة اهل الکفر و الجهل و ضعف کسب الاسلام والعلم .(شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۸۱ فصل فی الکفر صریحا و کنایة)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین الکفر شئی عظیم فلا اجعل المومن کافرا متی وجدت روایة انه لا یکفر و فی الخلاصة وغیرها اذا کان فی المسئلة وجوه توجب التکفیر ووجه واحد یمنعه فعلی المفتی ان یمیل الی الوجه الذی یمنع التکفیر تحسینا للظن با لمسلم زاد فی البزازیة الا اذا صرح بارادة موجب الکفر فلا ینفعه التاویل وفی التتارخانیه لا یکفر بالمحتمل لان الکفر نهایة فی العقوبة فیستدعی نهایة فی الجنایة و مع الاحتمال لا نهایة والذی تحرر انه لا یفتی بکفر مسلم امکن حمل کلامه علی محمل حسن او کان فی کفره اختلاف ولو روایة ضعیفة فعلی هذا فاکثر الفاظ التکفیر المذکورة لایفتی با لتکفیر فیها ولقد الزمت نفسی ان لا افتی بشئی منها . کلام البحر با ختصار. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۱۲ جلد ۳ مطلب ما یشک فی انه ردة لا یحکم بها)

## اسلامی اصولوسره غیرمتصادم مشرح سوشلزم ته به کفرنه شی وئیلی

**سوال:** د سوشلزم باره کښې چه ۱۱۳ علماء کرامو کومه د کفر فتویٰ ورکړې ده جناب مولانا مفتی محمود صاحب اکثرپه خپلو تقریرونو کښې فرمائی چه فتویٰ ورکونکو عالمانو کښې ۱۱۰ خومونږ عالمان هم نه منو، خو معلومیږی چه دري منی، نوبیا مونږپه کوم قول باندې عمل اوکړو اوپه کوم نه؟

المستفتی: طارق محمود مشن هسپتال ټیکسلا ...۱۷ جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** سوشلزم د کافرانو ایجادکړې نظام دې لهٰذا دا اسلام خلاف کیدل او کفر کیدل یو واضحه حقیقت دې لیکن که څوك د سوشلزم داسې تشریح اوکړی چه هغه اسلامی اصولوسره متصادم نه وی نوهغې ته به کفرنه وئیلي کیږی. ﴿۱﴾ فقط

## اسلام او سوشلزم متضاد نظامونه دی

**سوال:** څه فرمائی علمائي دین د دې مسئلې باره کښې چه د اسلام او سوشلزم په منځ کښې تضاد شته یا نه؟ که شته نود توافق څه صورت راوتلې شی او که نه؟

المستفتی: سیف الرحمٰن پشاور یونیورسټی .... ۱۹۶۹ء|۲|۹

**الجواب:** کوم عالمان چه بصیرت والادی دهغوی په نزد اسلام او سوشلزم کښې داسې تضاد دې ﴿۲﴾ چه دهغې لرې کول عملی طورسره ناممکن دی اګرچه زبانی طورسره آسان دی. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامه حصكفي واعلم انه لا يفتى بكفر مسلم امكن حمل كلامه على محمل حسن او كان فى كفره خلاف ولو كان ذلك رواية ضعيفة كما حرره فى البحر و عزاه فى الاشباه الى الصغرى وفى الدرر وغيرها اذا كان فى المسئلة وجوه توجب الكفر وواحد يمنعه فعلى المفتى الميل لما يمنعه ثم لو نيته ذلك فمسلم و الا لم ينفعه حمل المفتى على خلافه .(الدر المختار على هامش ردالمحتار ص ۳۱۶ جلد ۳ باب المرتد قبيل مطلب توبة اليأس مقبوله)

﴿۲﴾ (۱) داسلام او سوشلزم د تضاد مختصرخاکه

د اشتراکیت اوسوشلزم تصور بنیادی طورباندې ماده پرستانه تصوردې ددې په مقابله کښې داسلام تصور د ماده پرستئ نه بغاوت او الهامی طریقه خپلول دی.(۲) اشتراکیت د ماده قدامت اود الله تعالی نه انکار باندې مبنی دې او اسلام د وجود باری تعالی قدامت باری تعالی او توحید باری تعالی باندې مبنی دی.(۳) اشتراکیت څه مستقل اصول یا اقدار او اخلاق نه لری بلکه داهم طبقاتی پیداواردې ددې په مقابله کښې اسلام اخلاقی نقطه نظر باندې نظرکول دی.(۴) اشتراکیت دښه اوبد پیژندلو دپاره عقل معیار جوړکړې دې او اسلام دښه او بد معلومولو دپاره شریعت معیارجوړکړې دې، ځکه چه عقل د ماحول او احوالو نه متاثر کیږی.(۵) اشتراکیت د فرد اجتماع او معاشرې داسې جزو جوړ کړو، چه ددې انفرادی حیثیت ختم شو، او اسلام انفرادی او اجتماعی دواړو فکری تبدیلئ نه اجتماعی تبدیلی جوړوی.

[بقیه حاشیه په راروانه صفحه]



## سوشلزم زنده باد او شریعت مرده باد.. ددې نعرو حکم

**سوال:** د سوشلزم زنده باد نعرې لګونکو او علماؤ ته کنځل او بد رد وئیلو والؤ دغسې د شریعت مرده باد نعرې لګونکو څه حکم دې؟

المستفتی: ثناء الله جان کټوزئ پشاور

**الجواب:** چاچه شریعت مرده باد نعره وهلې وی دغسې دچا په نزدچه شریعت فرسوده او ناقابل ترقی نظام وی نوهغه بې شکه او بې شبهې داسلام نه خارج دی د شریعت توهین کفردې.﴿۱﴾ وهوالموفق

[بقیه حاشیه].....(۶) اشتراکیت په جبر اوقوت اوپه خون ریز انقلاب باندې یقین ساتی او وائی چه داجتماع تبدیلئ سره افراد پخپله بدلیږی او اسلام د انسان داصلاح دپاره ابتداء د عمل اوعقیدې صحیح کول ضروری ګڼړی. اود افرادو فکری تبدیلئ سره اجتماعی تبدیلی راولی.(۷) اشتراکیت ریاست اوقانون ته دظلم او استحصال آله وائی حالانکه اسلام اجتماعی ژوند دپاره ریاست اوقانون ضروری ګڼړی، او دواړه د اسلام تابع کوی.(۸) په اشتراکیت کښې نه معاشرتی مساوات شته اونه معاشرتی جمهوریت، ددې په مقابله کښې اسلام دحقیقی اومعاشرتی مساوات اوحقوقو حفاظت اود فرائضو اداکولو درس ورکوی.(۹) په اشتراکیت کښې طبقاتی تصادم یواهم حقیقت دې حالانکه اسلام د مؤدت، محبت، اخوت، مساوات، عفت اوعصمت، خپل منځ کښې تعاون، اجتماعی تحفظ اود اجتماعی تکافل او تضامن درس ورکوی. چه ددې بنیاد په امربالمعروف اونهی عن المنکرباندې دې.(۱۰) اشتراکیت د پیداوار وسائل د ریاست په تحویل کښې راولی په دې کښې د جبر تصور دې. د یوې طبقې مکمل استحصال دې، اوحکمران طبقه ددې د آمریت او استحصال بدترینه نمونه وی، حالانکه اسلام د انفرادی ملکیت حق ورکوی، د آزادئ د جدوجهد اود صرف اوخرچ اجازت ورکوی، خود شریعت په حدودو کښې، چه په دې سره حقوق الله او حقوق العباد پائمال نه شی.(۱۱) اشتراکیت د اختلافی درجاتو نه انکارکوی، اوپه دې بنیاد باندې انسان د جدوجهد اوعمل هغه محرك دې چه د معاشرې د ارتقاء ذریعه وی، په دې باندې جمود او تعطل راولی، حالانکه اسلام دمعیشت حق علی السویه ټولوته ورکوی، لیکن د مدارجو د اختلاف باوجود د احتکار او اکتناز نه انکارکوی. دا یوڅو ظاهری تضادات کوم چه د احقر مطالعې نه حاصل شو، په دې باندې اکابرینو تحقیقی کتابونه لیکلی دی هغه دې مطالعه کړې شی. خلاصه داچه:

آن خدا نانے دهد جانے دهد.........این خدا نانے دهد جانے برد (ازمرتب محمد وهاب منګلوری)

﴿۱﴾ قال ابن عابدين ان ما كان دليل الاستخفاف يكفر به وان لم يقصد الاستخفاف لانه لو توقف على قصده لما احتاج الى زيادة عدم الاخلال بما مر لان قصد الاستخفاف مناف للتصديق .(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۱۱ جلد ۳ قبيل مطلب فى منكر الاجماع)

## د سوشلزم مددګارانو سره معاشرتی مقاطعه ضروری ده

**سوال:** که یو سړي په پیپل پارټئ کښې وی او دهغه عقیده داوی چه اسلام حق دین دي او د اسلامی قانون نه هم منکرنه وی لیکن د پارټئ په وجه بهټو سره وی، او سوشلزم هم ښه نه منی، نو آیا دا سړي کافردي یا مسلمان، او داسې سړی سره تعلقات ساتل څنګه دی؟ جواب راکړئ.

المستفتی: محمد رکازالدین دیر ...... ۱۹۷۷ء | ۹ | ۵

**الجواب:** واضحه دي وی چه سوشلزم کافرانه اود اسلام معاشی نظام سره متصادم نظام د ي، پس دا د ترقئ موجب منل او اسلام لره د زمانې دپاره ناسازګار منلو والا کافردي. ﴿ ۱ ﴾ اود کوم سړی چه دا عقیده وی او په دي پارټئ کښې داخل وی نو دا سړي د اهل باطل مددګار اود اهل حق دمخالفت په وجه منافق دي کافرنه دي، او په اهل اسلام باندې ضروری ده چه دواړه قسم خلقو سره معاشرتی بائیکاټ اوکړی. وهو الموفق

## د خط اوکتابت په ذریعه د مرزائیت ثبوت

**سوال:** زید ډیره موده په ربوه کښې اوسیدلي دي او مرزائیانو سره ئې تعلقات جوړ کړی دی ملازمت ئې هم کړې دي او مرزایانو سره ئې په خط اوکتابت کښې دا ظاهره کړې ده چه زه مرزائی یم، مثلاً ده په خپل لاس لیکلی شوی خط کښې دا وئیلی دی چه که زه مړشم نو زما قبر به په ربوه کښې وی، اود مرزایانو دطرفه ئې تصدیق هم شوې دي چه ستا د رور رکنیت فارم وصول شوې دي اود خوشحالئ اظهارئې کړې دي، او دعا ئې هم کړې ده چه الله تعالی دې دا علاقه احمدیت سره روښانه ساتی، اوهغه دا تاویل کوی چه په دې خطونو کښې د احمدیت نه مراد محمدیت دې نو ددې حالاتو او تاویل په لحاظ سره ددې سړی په احمدیت کښې د کیدلو څه شك باقی پاتې کیدې شی؟

المستفتی: ډاکټر عبدالجلیل کرم ایجنسی ...... ۲۰ جنوری ۱۹۷۵ء

﴿۱﴾ قال العلامه علی قاری و کذا لو قال هذا زمان الکفر لا زمان کسب الاسلام ای کفر ان اراد انه ینبغی فی هذا ازمان کسب الکفر لا کسب الاسلام. بخلاف ما اذا اراد ان هذا زمان غلبة اهل الکفر و الجهل و ضعف کسب الاسلام والعلم.

(شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۸۱ فصل فی الکفر صریحا و کنایة)



**الجواب:** که دغه سړې توبه نه وی کړې نو دهٔ ته به احمدی او مرزائی وئیلې شی البته د توبې او براءت نه پس هغه ته مرزائی وئیل به ناجائز او حرام وی. فقط

## د رفع عیسٰی الی السمآء منکر کافردي

**سوال:** څوك چه دا وائی چه عیسٰی علیه السلام وفات شوې دي اوس به دوباره دنیا ته نه راځی او د بل رفعه الله دا معنٰی کوی چه الله تعالی دهغه درجې اوچتې کړی دی نو دداسې سړی امامت جائزدې؟

المستفتی: عبدالحکیم راهی راولپنډی .... ۱۵ | رمضان ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** دا سړې مرتد او کافردې، دهٔ پسې اقتداء کول باطل دی. ﴿ ۱ ﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامه ملاعلی قاری و خروج الدجال و یاجوج و ماجوج و طلوع الشمس من مغربها و نزول عیسیٰ علیه السلام من السماء کما قال الله تعالیٰ و انه ای عیسیٰ لعلم للساعة ای علامة القیامة و قال الله تعالیٰ و ان من اهل الکتب الا لیؤمنن به قبل موته ای قبل موت عیسیٰ علیه السلام بعد نزوله عند قیام الساعة ...... حق کائن ای ثابت و امر قویم.

(شرح فقه الاکبر ص ۱۱۳ خروج الدجال و سائر اشراط الساعة حق)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# اَلَآ اِنَّ
# حِزْبَ اللّٰهِ
# هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ؏ (۲۲)

...



# کتاب الفرق
## باب
## فی الفرق الباطله

...

# کتاب الفرق

## باب فی الفرق الباطله

### د موجوده دور عیسائیان اهل کتاب نه دی

**سوال:** څه فرمائی علمائ دین دې مسئلې باره کښې چه په جولائی ۱۹۷۹ء یوه عیسائی رساله ,,کلام حق،، د ګجرانوالې نه شائع شوې وه، چه په خداوند مسیح باندې دکلام د نزول مسئله د مسیحیانو په ایمان کښې شامل نه ده، مسیحی بالکل نه منی چه په هغه باندې څه انجیل یا کلام نازل شوې وو، دغسې د مسیحیانو دعوی بالکل دا نه ده، چه په خداوند مسیح باندې انجیل په ارامی، یونانی یا په بله ژبه کښې نازل شوې دې، داسوال غلط دې. وکلف اې سنګهه بحواله کلام حق جولائی ۱۹۷۹ء ص ۱۲، سوال دادې چه آیا موجوده دور عیسائیان به اهل کتاب وی یا نه؟

المستفتی: اسلامی مشن سنت نګر لاهور..... یکم جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا عیسائیان اهل کتاب نه دی بلکه د موجوده زمانې اکثر عیسائیان اهل کتاب نه دی څکه چه د پیغمبر علیه السلام په زمانه کښې چه دهغوی کومې غلطې عقیدې وې دا موجوده عیسائیان دهغې نه هم منحرف دی او دخپل طرف چه دوی هرکله د کتاب منکردی نو اهل کتاب څنګه کیدې شی. فقط

### د ذکری فرقې خود ساخته خانه کعبه ورانول ضروری دی

**سوال:** غیرمسلم ذکری فرقې توهین او انکار رسالت ختم الانبیاء علیهم السلام، اود انکار صلاة خمسه نه علاوه کوه مراد باندې یوه مصنوعی کعبه او حوض کوثر جوړکړې دې ددې مصنوعی کعبې ورانول په حکومت پاکستان یا مسلمانانو باندې فرض عین دی یا فرض کفایه؟ اګرچه حکومت دا کارنه کوی وضاحت اوکړئ؟

المستفتی: عبدالرحمن دارالعلوم تندواله یار حیدآباد سندھ ۲ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دمسلمانانو دا پاکستانی حکومت دمستحسن اقدام نه کوی او که اهل



اسلام ددې د ورانولو اراده اوکړی نود مسلمانانو حکومت مرتدینو او کافرانو سره کیږی، الله تعالی دې اسلامی حکومت قائم کړی، چه د کعبه یمانیه په شان دا کعبه هم ورانه کړی اویا د ورانونکو مدداوکړی.

### د موجوده دور شیعه ګان کافران دی

**سوال:** څه فرمائی مفتیان د شرعې په دې باره کښې چه هغه کوم عقائد دی چه دهغې په وجه شیعه ګانو ته کافران وئیلې شی اوآیا ټول شیعه ګان کافران دی یادچا عقائد چه دکفروی اوکوم شیعه ګان چه دتقیه په وجه باندې دکفریه عقائدونه منکردی هغوی سره د مجالست ومناکحت وغیره څه حکم دې؟

المستفتی: مزمل حسین تحصیل وضلع خوشاب ...... ۱۹۹۰ء/۱۲/۲

**الجواب:** چونکه د موجوده دورشیعه ګان دصدیق اکبر ؓ صحبت اود عائشې ؓ د براءة نه منکردی اود الله تعالی د بداء اوپه قرآن پاک کښې دکمی بیشئ او امامت په نبوت باندې کلاً یا بعضاً قائل دی لهٰذا ددوی په کافرکیدو کښې شك نشته. (۱) اوکوم خلق چه دضروریات دین نه منکرنه دی نوهغه کافرنه دی داسې شیعه ګانو سره نکاح حرام ده. والله اعلم

### اهل تشیع کافران دی که مسلمانان؟ او شیعه ښځې سره نکاح

**سوال:** څه فرمائی علمائ دین په دې مسئله کښې چه شیعه ګان کافران دی یا مسلمانان؟ اوآیا د سنی مسلمان شیعه ښځې سره یا د شیعه سړی سنی ښځې سره نکاح جائزده؟

المستفتی: جهان دوران کرك کوهاټ...... ۲۱ شوال ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** پاکستانی شیعه ګان اکثر طورسره کافران دی څکه چه دوی د ضروریات دین مثلاً د محمد ﷺ د نبوت، دصدیق اکبر ؓ دصحبت، د عائشه صدیقه ؓ د براءة نه انکاری دی اوچونکه داخلق د اسلام ددعوې باوجود ددې ضروریاتونه منکردی لهٰذا ددې کفرپه وجه دوی سره د مسلمانې ښځې نکاح ناجائزده، البته چونکه داخلق د اهل کتاب نه اهون دی لهٰذا

---

(۱) قال ابن عابدین نعم لا شک فی تکفیر من قذف السیدة عائشة رضی الله عنها او انکر صحبة الصدیق او اعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی او نحو ذلک من الکفر الصریح المخالف للقرآن. (ردالمحتار ص ۳۲۱ جلد ۳ مطلب فی حکم سب الشیخین)

شیعه ښځې سره دمسلمان نکاح ظاهراً جائزده.﴿۱﴾ فلیراجع الیٰ ردالمحتار ص۳۹۸ جلد ۳ فقط

## د شیعه ګانو حکم او (۷۲) فرقې

**سوال:** (۱) د شیعه ګانو متعلق څۀ حکم دې؟ (۲) د ۷۲ فرقونه څه مراد دې؟ بینوا توجروا المستفتی: عبدالخالق امان کوټ منګوره سوات

**الجواب:** (۱) د کفر دارومدار د ضروریات دین نه په انکارباندې دې پس کوم شیعه ګان چه حضرت علی رضی الله عنه اله یا پیغمبر منی، یا د عائشې رضی الله عنها قاذف وی یایو امام دپاره علم کلی ثابتوی نوهغه کافران دی ګینی مبتدع او فاسق دی.﴿۲﴾ (۲) د ۷۲ فرقو باره کښې دې واضحه وی چه دا فرقې به داسلام په مدعی خلقو کښې جوړیږی.﴿۳﴾ او جوړې شوی دی اوپه ظاهره دا عدد په مستقبل قریب کښې مراد دې، اګرچه مطلق هم درست دې ځکه چه دا فرقې د عقائدوپه اعتبارسره دی بعضې نورې په بعضې عقائدو کښې جدانه دی. فافهم وهوالموفق

## فرقه اثنا عشریه او انکار د ختم نبوت

**سوال:** د شیعه ګانو مشهوره فرقه چه هغوی ائمه اثنا عشریه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په شان مامورمن الله، مفترض الطاعة او معصوم ګڼړی او دا خپله بنیادی عقیده ګڼړی او دې ته اصول ددین وائی، نوآیا ددې عقیدې په وجه جعفری اثناعشریه د ختم نبوت نه منکردی یا نه، په دې سلسله کښې د شاه ولی الله رحمه الله علیه

﴿۱﴾ قال ابن عابدین علی انهم لیسوا بادنی حالاً من اهل الکتب بل هم مقرون با شرف الکتب الخ (ردالمحتار ص ۳۱۴ جلد ۲ فصل فی المحرکات مطلب مهم فی وطء السراری اللاتی ......)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین و بهذا ظهر ان الرافضی ان کان ممن یعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی او کان ینکر صحبة الصدیق او یقذف السیدة الصدیقه فهو کافر لمخالفة القواطع المعلومة من الدین با لضرورة بخلاف ما اذا کان یفضل علیا او یسب الصحابه فانه مبتدع لاکافر الخ (ردالمحتار ص ۳۱۴ جلد ۲ فصل فی المحرمات مطلب مهم فی وطء السراری اللاتی ......)

﴿۳﴾ عن عبدالله بن عمرو قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لیاتین علی امتی کما اتی علی بنی اسرائیل حلو النعل بالنعل حتی ان کان منهم من اتی امه علانیه لکان فی امتی من یصنع ذلک و ان بنی اسرائیل تفرقت علی ثنتین و سبعین ملة و تفترق امتی علی ثلث و سبعین ملة کلهم فی النار الا ملة واحدة قالوا من هی یا رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ماانا علیه و اصحابی رواه الترمذی و فی روایة احمد و ابی داؤد عن معاویة ثنتان و سبعون فی النار وواحدة فی الجنة وهی الجماعة وانه سیخرج فی امتی اقوام تتجاریٰ بهم تلک الا هواء کما یتجاریٰ الکلب لصاحبه لا یبقیٰ منه عرق و لا مفصل الا دخله. (مشکواة المصابیح ص ۳۰ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتب والسنة)



المسوٰی شرح موطاء،،مطبوعه دهلی جلد دوم ص۱۱۰ باندې هم نظراوساتلې شی.

**"من قال ان النبی صلی الله علیه وسلم خاتم النبوة ولکن معنی هذا الکلام انه لا یجوز ان یسمی بعده احد بالنبی واما معنی النبوة وهو کون الانسان مبعوثا من الله تعالیٰ الی الخلق مفترض الطاعة معصوماً من الذنوب فیما یری فهو موجود فی الا ئمه بعده فذالک هو الزندیق وقد اتفق جماهیر المتأخرین من الحنفیة والشافعیه علی قتل من یجری هذه االمجری.**

المستفتی: امیرزاده خان سواتی جامعه انوارالقرآن آدم ټاون نارتهه کراچی ۱۸ مئ ۱۹۸۳ء

**الجواب:** دافرقه خپل کفر اوانکاردختم نبوت په بعید تاویلاتوپټوی دا زنادقه دی. والزندیق هوهذا عنداهل التحقیق کما فی ردالمحتار ص۴۱۰ جلد۳.﴿۱﴾

## د کتاب ,,استخلاف یزید،، مصنف د شیعه طرفدار دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دهغه سړی باره کښې چه هغه په خپل کتاب کښې دا خبرې لیکلی دی: (۱) د خدائې رحمت ئې دستګیری اوکړله، امت د صدیق اکبر په بیعت باندې متفق شو، که بالفرض دوی باندې امت متفق شوې نه وې، اوبیعت دخلافت دپاره دوی توره اوچته کړې وې نودا به هم یقیناً ملوکیت وو. (استخلاف یزید ص۵۳۴)

(۲) دحضرت علی رضی الله عنه باره کښې لیکی: که بالفرض داسې شوې وې یعنی شیعان د علی ددوی نافرمانی کولې، نود حضرت علی رضی الله عنه په شان کښې به هیڅ کمی نه راتله، اود قوم بدبختی او بدنصیبی به وه چه هغوی د امام برحق خلیفه راشد د اطاعت نه مخ واړولو، حضرت موسیٰ کلیم الله که د قوم د نافرمانئ نه تنګ راتلوسره دعا غواړی چه ربی انی لا املك الا نفسی واخی" نو تاسو اووایئ چه دهغوی په نبوت کښې څه فرق راغې. (استخلاف یزید)

(۳) دحضرت معاویه رضی الله عنه باره کښې لیکی: دویم ځیز چه دحضرت معاویه رضی الله عنه عهد خلافت ئې د خلافت د لارې نه اړولې دې هغه بیت المال دې،

﴿۱﴾ قال ابن عابدین الذندیق فی لسان العرب یطلق علی من ینفی الباری ...... واما فی اصطلاح الشرع فالفرق اظهر لاعتبار هم فیه ابطان الکفر والاعتراف بنبوة نبینا صلی الله علیه وسلم علی مافی شرح المقاصد لکن القید الثانی فی الزندیق الاسلامی بخلاف غیره الخ

(ردالمحتار ص۳۲۴ جلد ۳ کتاب المرتد مطلب الفرق بین الزندیق والمنافق والدهری)

دحضرت معاویه ؓ په زمانه کښې یعنی په عهد حکومت کښې بیت المال د خلفائي راشدینو په طریقه باندې نه وو. (حواله بالا ص ۲۳۴) (۴) دحضرت معاویه ؓ په حکامو کښې د اکل اموال او قتل نفس داسې ناخوښه صورتونه هم دي چه هغه عبدالرحمٰن بن عبدرب الکعبه باطل او ناحقه ګرځوي،، ص ۲۳۷. (۵) د محدثینو په دې باندې اتفاق دې چه دحضرت معاویه ؓ په فضیلت کښې د حدیثو په ټوله ذخیره کښې یو روایت هم صحیح نه دې. ص ۱۱۸، آیا داسې سړې اهل سنت کیدې شي او د اهل سنت د امامت حقداردې؟

**الجواب:** دا مؤلف د شیعه ګانو طرفدار معلومیږي دځ د غیرمستند تاریخي روایاتو په وجه مسلمه اصول عدالت د صحابه کرامو ؓ (۱) نظر اندازکړې دي، او مستند حدیثي روایات ئې د اتباع هوئ په وجه خود ساخته ګرځولي دي، پس داسې نیم شیعه یا شیعه پرور سړې د اهل سنت والجماعت د امامت او خطابت اهل نه دې. وهو الموفق

## د شیعه ګانو مالونه پټول

**سوال:** دلته بعضي خلقو وئیلي دي چه د شیعه ګانو مالونه په غلا اخستل جائز دي او وائي چه مونږ دا فتویٰ د دارالعلوم حقانیه نه راخستې ده لیکن هغوی سره څه تحریري ثبوت نشته او شیعه ګان وائي چه دا ناجائزدي زمونږ او ستاسو په مینځ کښې معاهده ده مهرباني اوکړئ اود مسئلې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** چونکه شیعه ګان په بعضي اسلام کښې داخل دي اود بعضي اسلام نه خارج دي لیکن حربي نه دی لهذا ددوی مال اخستل ناجائزدي: قال رسول الله ﷺ لا یحل مال امرءٍ مسلم الاعن طیب قلبه ﴿۲﴾ انتهٰی۔ اود ذمي او مصالح او مستامن مال په غصب سره اخستل غدر اوحرام دي. بې شکه که حربي محض وي نو په دې کښې هیڅ باك نشته. ﴿۳﴾ فقط

﴿۱﴾قال ابن عابدین و سب احد من الصحابة وبغضه لا یکون کفراً لکن یضلل ...... و قال ابن ملک فی شرح المجمع و تردشهادة من یظهر سب السلف لانه یکون ظاهر الفسق ...... وقال الزیلعی او یظهر سب السلف یعنی الصالحین منهم و هم الصحابة والتابعون الخ ( ردالمحتار ص ۳۲۱ جلد ۳ مطلب مهم فی حکم سب الشیخین ).
﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۲۵۵ جلد ۱ باب الغصب والعاریة )
﴿۳﴾ قال ابن عابدین والغصب فی دارالحرب سبب یفید الملک لانه استیلاء علی مال مباحٍ غیر معصومٍ فصار کالا دانة . ( ردالمحتار ص ۲۷۱ جلد ۳ باب المستأمن )



## د یو شیعه د یو څو سوالونو جوابونه

**سوال:** زما یو شیعه دوست زما نه یو څو سوالونه اوکړل که دهغې جوابونه راکړې شي نو مطمئن کیدو سره به شکرګذاره یم. سوالات دادي:

(۱) دحضرت علي ؓ په موجودګئ کښې نورو صحابؤ خپل ځان خنګه خلیفه اوګنړلو؟

(۲) په مشاورت کښې دعلي ؓ په مقابل نورو صحابؤ څنګه خپل ځآن د علي ؓ په موجودګئ کښې دخلافت اهل ګنړلو؟ (۳) د غدیرخم په خطبه کښې نبي کریم ﷺ د حضرت علي ؓ په شان کښې دا اوفرمائیل چه دعلي ؓ ماسره داسې محبت دې څنګه چه د موسیٰ علیه السلام هارون علیه السلام سره وو، فرق صرف دادې چه زما نه پس څوك نبي نشته،، ددې باوجود علي ؓ د نورو برابر ګنړلې کیږي. (۴) د علي ؓ په موجودګئ کښې ادنیٰ روایات ولې اخستلې شی، چه ددې په وجه دعبادت طریقه په دواړو فرقو کښې مختلف ده دلته چه کله ما د ادنیٰ او اعلیٰ تشریح اوغوښته نوزمونږ دوست اووئیل چه دحدیث په معامله کښې غلام باندې ولې اعتماد کولې شي حالانکه دحضرت علي ؓ اولاد وغیره نه ولې تپوس اونه کړې شي؟

المستفتي: نصیراحمد صدیقي جده سعودي عرب ۱۹۸۵ء|۶|۳۰

**الجواب:** (۱) (۲) په صحابه کرامو ؓ باندې چه دچا اعتماد وي، هغوی دا سوال غلط او بې فائدې ګڼړي خصوصاً چه حضرت علي ؓ نه دانتخاب دپاره جنګیدلې وو، اونه چا اکثریت نامزدکړې وو، (۳) د غدیرخم په موقع باندې حضور ﷺ اوفرمائیل: اللهم من کنت مولاہ فعلی مولاہ رواہ احمد. ﴿۱﴾ اولفظ د ،،مولیٰ،، ډیرې معانې دي:

و منها المحبوب و هوالمراد ههنا دون الامامة والا لاشار الانصارالی امامته دون کون الامام منهم ولصار علی امیرا فی حیاته لعدم التقیید بما بعد الموت ولما امر رسول الله ﷺ با لکتاب حیث قال رسول الله ﷺ فانی اخاف ان یتمنی متمن ویقول قائل انا ولا ویأبی الله والمومنون الا ابا بکر ( رواہ مسلم ) ﴿۲﴾ وحدیث الاترضی ان تکون منی بمنزلة هارون من موسیٰ ﴿۳﴾ معناہ التسلیه عند التخلف من تبوک.

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ص ۵۶۴ جلد ۲ باب مناقب علی ابن ابی طالب رضی الله عنه )
﴿۲﴾ ( مشکواة المصابیح ص ۵۵۵ جلد ۲ باب مناقب ابی بکر رضی الله عنه )
﴿۳﴾ مشکواة المصابیح ص ۵۶۳ جلد ۲ باب مناقب علی ابن ابی طالب رضی الله عنه )

(۴) د نورو صحابه کرامو ﷺ دلیل ادنی ګرځول (۱) جهالت او الحاد دي.

**نوټ:** ددي سوالاتو متعلق اردو او عربئ کښي ډیر تالیفات موجود دی هغه د شیعه ګانو سره مناظره کونکو نه طلب کړئ.

## فرقه آغاخانیه بې شکه او بې شبهې کافر اود اسلام نه خارج دی

**سوال:** څه فرمائی مفتیان د شرع متین په دې مسئله کښي چه آغاخانی فرقه د آغاخان فاؤنډیشن تنظیم په نوم سره د تعمیر په نوم باندي مختلف مقاماتو کښي ډیر رقمونه خرچ کوی، چه ددې په وجه د ضعیف مسلمانانو عقائد خرابیږی اود آغاخانیت نه متاثره کیږی نو آیا مسلمانانو دپاره په دې کښي شمولیت، ملازمت او ددې نه مالی فوائد حاصلول جائزدی ددې تنظیم مقصد د مسلمانانو خلاف سیاسی او مذهبی برتری حاصلول اود آغاخانیت تبلیغ کول دی تفصیلی جواب راکړئ؟

المستفتی: قاری سعید الرحمٰن ګلګت ....۱۹ اکتوبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** فرقه آغاخانیه د ضروریات دین نه د انکار په وجه بې شکه او بې شبهې کافر اود اسلام نه خارج دی. (۲) دوی سره موالات (دوستانه تعلقات) حرام منصوصی دی. لقوله تعالٰی:

**لا یتخذ المؤمنون الکافرین اولیاء من دون المؤمنین ومن یفعل ذلک فلیس من الله فی شئ الا ان تتقوا منهم تقاة. الآیه(۳)**

دې فرقو د اقلیت کیدو په وجه اود مذهبی دلائلو نه د محروم کیدو په وجه نه د سیاسی تحریك همت لرلو، او نه ئې د کفریاتو د دعوت ورکولو اراده لرله، موجوده دور کښي دا فرقې د خپل زیات مال دولت په وجه د تنظیمونو په دامونو کښي بې علمه او کم علمه خلق راګیرول غواړی او په دې مکرو فریب سره سیاسی عروج او دعوت کښي د کامیابئ اراده لری پس په دې بنیاد باندې ددوی په تنظیمونو کښي څه حصه اخستل اسلام دشمنی او مداهنت دي. (۴) وهو الموفق

(۱) (عن عمر بن الخطاب قال سمعت رسول الله ﷺ یقول سألت ربی عن اختلاف اصحابی من بعدی فاوحیٰ الی یامحمد ان اصحابک عندی بمنزلة النجوم فی السماء بعضها اقوی من بعض ولکل نور فمن اخذ شئی مماهم علیه من اختلافهم فهو عندی علی هدی قال وقال رسول الله ﷺ اصحابی کالنجوم فبایهم اقتدیتم اهتدیتم. رواه رزین. (مشکواة المصابیح ص ۵۵۴ جلد ۲ باب مناقب الصحابة)

(۲) قال العلامه ابن نجیم والکفر شرعا تکذیب محمد صلی الله علیه وسلم فی شئی مما یثبت عنه ادعاؤه ضرورة. (البحر الرائق ص ۱۱۹، ج۵، باب احکام المرتدین)

(۳) (پ:۳ سوره آل عمران ع:۱۱ آیت:۲۸)

(۴) قال الله تعالی یا ایها الذین آمنو لا تتخذوا عدوی و عدوکم اولیاء تلقون الیهم با لمودة وقد کفروا بما جاء کم من الحق. الایه (پ:۲۸ سورة الممتحنة ع:۱ آیت:۱)



## د اسماعیلیه آغاخانیه فرقې کفریات

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین په دې مسئله کښي چه زمونږ په علاقه کښي یوه فرقه ده چه هغې ته اسماعیلیه وائی چه د پرنس کریم آغاخان متبعین دی داخلق د مسلمان کیدو دعویدار دی سره ددې چه ددوی عقائد دادی:

(۱) دا هل سنت مخالفت کوی دمسجد په ځائې ئې د (جماعت خانه) په نوم سره عبادت خانې جوړې کړې دی چه هلته خپل وضع کړی مخصوص عبادات کوی.

(۲) دعامو مسلمانانو په شان مونځونه نه کوی او څه چه هم کوی هغه سحر، مازیګر او ماښام پورې محدود وی.

(۳) تراوسه پورې په دوی کښي د یو کس نه هم دبیت الله حج کول ثابت نه دی.

(۴) زکوٰة داسلامی اصولو مطابق نه اداکوی بلکه هره میاشت د امیر اوغریب نه د زکاتی په نوم چنده جمع کوی یو خاص وخت کښي ئې بمبئ ته لیږی چه دا دآغاخان د پلار نیکه ښاردې.

(۵) د روژې پابند نه دی یعنی نه ئې ساتی، مهربانی او کړئ ددې سوالونو جوابونه اولیکئ؟

المستفتی: (مولانا) عبیدالله چترالی (شهید)

متعلم دارالعلوم حقانیه اکوړه خټك .....۸/۶/۱۹۷۲ء

**الجواب:** په فرقه آغاخانیه کښي ډیر کفریات موجود دی مثلاً د آغاخان د تصویر عبادت کول او په آغاخان کښي خدائی حلول منل وغیره چه دا مستفتی نه دی ذکر کړې لهٰذا ددوی سره به د مسلمانانو په شان سلوك نه شی کولې (۱) د زیات وضاحت دپاره بوادر النوادر ص ۷۳۷ تا ۷۴۱ جلد ۲ مطالعه او کړئ. فقط

(۱) قال الحصکفی و ینبغی ان یلازم الصغار فیما یکون بینه و بین المسلم فی کل شئی و علیه فیمنع من القعود حال قیام المسلم عنده بحر ویحرم تعظیمه و تکره مصافحته ولا یبدأ بسلام الا لحاجة ولا یزاد فی الجواب علی و علیک و یضیق علیه فی المرور و یجعل علی داره علامة وقال ابن عابدین و ان تعظیماً له فان کان یمیل قلبه الی الاسلام فلا بأس به.
(الدر المختار مع ردالمحتار ص ۳۰۰ جلد ۳ مطلب فی تمیز اهل الذمة فی الملبس)

## د آغاخان فاونډیشن نه مالی امداد اخستل حرام دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین چه زمونږ په چترال علاقه کښې اسماعیلیه خلق اوسیږی چه دوی د مونځ، روژې، زکوٰة او حج منکردی آغا خان مقتدا ګڼړی نن صبا دوی یو فاونډیشن قائم کړې دې چه دوی د پلونو، سړکونو، لارو او د اوبو د ټیوب ویلونو وغیره تعمیر کوی آیا دوی نه دا رقم اخستل جائزدی؟

المستفتی: قاضی عبدالرؤف، مولانا عبدالحلیم وغیره باشندګان چترال ۱۸|۲|۱۹۸۶ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه د آغاخانیانو وغیره نه دا امداد حاصلول حرام دی دا دعوامو د تاثر، مداهنت او طرفدارئ کامیابه حربه ده.《۱》

## لاهوری جماعت د کفر اواسلام په مینځ کښې معلق نه دې کافردی

**سوال:** څۀ فرمائی علمائې دین په دې مسئله کښې چه د کوم کس دا عقیده وی چه مرزائیانو لاهوری جماعت د کفر او اسلام په منځ کښې معلق دې دوی نه د نبوت د مدعی نه بالکل براءت ښکاره کوی چه د دوی افرادو ته مسلمان اووئیلې شی نه دده د نبوت صفا اقرار کوی چه تکفیر ئې اوکړی شی دداسې سړی متعلق د شریعت په روسره څۀ فیصله ده؟

المستفتی: عبدالکریم پتافی ډیره اسماعیل خان ۲ ارمضان المبارک ۱۳۸۹ء

**الجواب:** چونکه دټول لاهوری جماعت عقیده ده چه عیسیٰ علیه السلام د یوسف نجار ځوې دې اود پلار نه بغیرنه دې پیدا شوې.(صرح به محمد علی لاهوری فی تفسیر بیان القرآن ص۳۱۳ جلد۱) دا د یومتواتر، قطعی الثبوت او قطعی الدلالت حقیقت《۲》نه انکاردې چه دا بې شکه اوبې شبهې کفردې.《۳》

فی الدر المختار ص ۶۸۴ جلد۳ المراد بالتکذیب عدم التصدیق الذی مر انتهی

---

《۱》قال الله تعالیٰ لا یتخذ المؤمنون الکافرین اولیاء من دون المؤمنین ومن یفعل ذلک فلیس من الله فی شئی الا ان تتقوا منهم تقاه. الآیة

《۲》قال الله تعالیٰ قالت ربی انی یکون لی ولد ولم یمسسنی بشر ۰ قال کذلک الله یخلق ما یشاء. الایه (پ: ۳ سورة ال عمران: ع: ۱۳ آیت: ۴۷)

《۳》قال الحصکفی (الکفر) شرعاً تکذیبه ﷺ فی شئی مما جاء به من الدین ضرورة قال ابن عابدین قوله تکذیبه ﷺ الخ المراد بالتکذیب عدم التصدیق الذی مر ای عدم الاذعان والقبول لما علم مجیئه به ﷺ ضرورة ای علما ضروریا لا یتوقف علی نظر و استدلال. (الدر المختار مع ردالمحتار ص ۳۱۱ جلد ۳ باب المرتد مطلب فی منکر الاجماع)



پس دا د کفر او اسلام په مینځ کښې معلق ګڼړل بې شك اوبې شبهې اعتزال دې بلکه دې سړی باندې د کفر ویره موجود ده، ځکه چه د ضروریاتو د دین نه د منکر کفر اجماعی امردې او داسړې اودده جماعت ددې نه منکرکافرنه ګڼړی اود اجماع نه مخالفت کړی.

ولنعم ماقال العلامة الخیالی ان التأویل فی ماثبت بالضرورة لا یدفع الکفرا و کما قال فلیراجع

اوکومو اکابر علماؤ چه لاهوری جماعت ته کافرنه دی وئیلې، اودوی ته کافر وئیلو والوته ئې مسلمان وئیلی دی نوشاید چه هغه وخت هغوی ته د لاهوری جماعت متعلق دا تحقیق نه وو رسیدلې، چه دا جماعت د عیسیٰ علیه السلام په پلار قائل دی ګینی دې اکابرو به ضرورددې حکم نه رجوع کړې وې.فقط

فقیه النفس مفتی اعظم (محمد فرید عفی عنه)

شیخ الحدیث دار العلوم حقانیه اکوړه خټك نوشهره

## مرزا قادیانی لره د کافرانه عقیدو باوجود کافر نه ګڼړلو والاحکم

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین اومفتیان د شرع متین په دې باره کښې چه مرزا غلام احمد قادیانی چه دې د نبوت حقیقی ددعوې وغیره په وجه د پوره اسلامی ملت په نزد کافر اومرتد دې که څوك سړې یا جماعت غلام احمد قادیانی کافرنه ګڼړی بلکه مسیح موعود، مهدی معهود، مامور من الله، ملهم، مجدد، محدث، امام زمان، ظل بروزی طورباندې جزوی نبی منی، دغسې دحضرت عیسیٰ علیه السلام د رفع الی السماء قائل نه وی بلکه د وفات مسیح قائل وی لکه څنګه چه د لاهوری پارټئ عقیده ده نوددغه سړی یا جماعت څه حکم دې، که د پورتنو عقائدو په وجه دغه سړې یا جماعت کافر اود اسلام نه خارج دې نو که څوك سړې یا جماعت پورتنی عقائد لرلو والا سړې یا جماعت کافرنه ګڼړی، نوپه دې وجه کافرته دکافر نه ویونکی څه حکم دې؟

المستفتی: پیرمبارك شاه ناظم جمعیة العلماء اسلام مردان ... ۱۹۶۹ء|۹|۷

**الجواب:** کافر لره مجدد منل او دهغه کفریاتو لره ددین تجدید منل بې شکه او بې شبهې کفردې، لهٰذا د لاهوری پارټئ په کافر کیدو کښې هیڅ مسلمان له تردد نه ذې پکار، لاهوری پارټی د حیات عیسیٰ علیه السلام نه منکردی، اوپه ټولو معجزو کښې تحریفات کوی او عیسیٰ علیه السلام د یوسف نجار ځوې ګڼړی. اوګورئ بیان القرآن مصنفه محمد علی لاهوری《۱》نوباوجود ددې چه څوك سړې

---

《۱》(تفسیر بیان القران لمحمد علی لاهوری ص ۳۱۳ جلد ۱)

یا جماعت دوی لره کافرنه ګڼړی نوهغه داسلام نه خارج دی ﴿۱﴾ هغه پسې اقتداء کول، هغه سره نکاح کول، په هغه باندې جنازه کول غیرمشروع دی. والدلیل علی مامر انهم انکروا مما ثبت بالضرورة وبالاجماع و هو کفر و علم تکفیر الکافر یستلزم استحسان کفره لزوماً بیناً وهوایضاً کفر. فقط

## مرزا قادیانی سره „ علیه اللعنت„ ویل

**سوال:** څۀ فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه په بهشتی زیور کښې ئې لیکلی دی چه دچا نوم اخستلوسره کافرویل یا لعنت لیږل لویه ګناه ده البته دچا نوم اخستلوسره چه الله تعالی او رسول کریم ﷺ لعنت کړې دې یا ئې دهغه د کافرکیدو خبر ورکړې دې هغه ته کافر ملعون ویل ګناه نه ده، ددې عبارت نه معلومه شوه چه مرزا قادیانی ته کافر اوملعون ویل او علیه اللعنت ویل جائزدی؟

المستفتی: شاه ګئ نهاك دره ضلع دیر.... ۲۳جولائی ۱۹۷۳ء

**الجواب:** محترم المقام السلام علیکم نه پس عرض دې چه دلعنت نه مراد دالله تعالی د رحمت نه همیشه دپاره لرې کیدل وی چه ددې لازمه معنی خلود فی النارده اوددې سزا مستحق هغه سړې وی چه دهغه خاتمه په کفرباندې وی او مونږ ماسوا دهغه کسانو نه چه دهغوی متعلق الله تعالی اودهغه رسول ﷺ دکافرکیدو خبر ورکړې وی لکه ابلیس، فرعون، ابولهب وغیره، دبل چا باره کښې دا فیصله نه شو کولې، ﴿۲﴾ چه ددوی خاتمه په کفرباندې شوې ده اوکه نه، مختصرداچه مونږ د منصوص کافرانو متعلق دا فیصله کولې شو چه هغوی عندالله کافردی اود اصولی کافرمتعلق دا فیصله نه شوکولې چه هغوی عندالشرع کافردی، ډیروخته یوسړې عندالشرع کافر وی لیکن عندالله هغه توبه ویستونکې مړشوې وی، اود مرزا غلام احمدقادیانی متعلق به مونږ د ملعون عندالشرع اوکافر عندالشرع اعتقاد ساتو لیکن د کافر اوملعون عندالله فیصله نه شو کولې

﴿۱﴾ قال العلامه ابن البزاز الکردری ان شاتمه کافر و حکمه القتل و من شک فی عذابه و کفره کفر قال الله تعالیٰ فیه ملعونین اینما ثقفوا اخذوا و قتلوا تقتیلاً سنة الله . الایه. (الفتاویٰ البزازیه ص ۳۲۲ جلد ۶ موضوع علی هامش الهندیه الثانی فیما یکون کفراً من المسلم)

﴿۲﴾ قال ابن البزاز الکردری اللعن علی الشخص وان کان فاسقا لا یجوز بخلاف اللعن علی الجنس کقوله تعالیٰ ان لعنة الله علی الظالمین و قوله علیه السلام لعن الله فی الخمر عشرة الخ (فتاویٰ بزازیه علی هامش الهندیه ص ۳۴۴ جلد ۶ الحادی عشر فیما یکون خطاء)



## مرزائی خلق اهل کتاب نه دی مرتد دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین چه مرزائیانو ته اهل کتاب وئیلې شو، او مرزائی ښځه د یوې عیسائنړې ښځې حیثیت لری؟ بیاکله چه یوه مرزائی ښځه ګونګئ ده اوپه دې صورت کښې هغه مذهبی عقائدو باندې پوهیږی هم نه، په دې صورت کښې نکاح کیدې شی؟

المستفتی: نامعلوم........... ۱۹۹۸ء/۸/ ۲۲

**الجواب:** مرزائی خلق مرتد دی، نه اهل کتاب دی اونه اهل اسلام دی، مرتد سره نکاح درست نه ده که هغه ښځه وی که سړې. ﴿۲﴾ اوګونګئ نه د اشاراتوپه ذریعه معلومات کیدې شی اوکه اشاروسره معلومات نه شی کیدې، نوهغې ته مرزائی وئیل غلط دی صرف د نسب په وجه مذهب متعین کیدې نه شی.

والمسئلة من الواضحات فلا حاجة الی نقل العبارات . وهو الموفق

## د غلط فهمئ په وجه قادیانی ته دمسلمان وئیلو حکم

**سوال:** که یوکس د غلط فهمئ په وجه مرزا غلام احمد قادیانی ته اعلی مسلمان وائی او اووائی چه په ده باندې دکفر فتوٰی غلطه ده ځکه چه په حدیث کښې راغلی دی ,,من صلی صلواتنا واستقبل قبلتنا ..الخ، بیا هغه سره سوشل او سماجی بائیکاټ اوکړې شو اود پورتنۍ عقیدې نه ئې رجوع اوکړه نوآیا دا به تجدید د نکاح کوی یا نه؟ اودا اعلان به کوی یا نه؟

المستفتی: قاری یوسف ډهانال سنګهـ شیخوپوره

**الجواب:** چونکه دا سړې د غلط فهمئ په وجه مرزا لره مسلمان ګڼړونکې وو لهٰذا په ده باندې تجدید دنکاح ضروری نه ده اګرچه بهتر او احوط دی. ﴿۲﴾ البته که هغه ددې عقیدې اظهار علی الاعلان کړې وی نو براءت به هم علی الاعلان کوی. ان سر فسراً وان جهر فجهراً. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامه ابن نجیم ولا ینکح مرتد او مرتدة احداً ...... ولامرتده لا یتزوج المرتلة مسلم ولا کافر ولا مرتد . (بحرالرائق ص ۲۰۹ جلد ۳ باب نکاح الکافر)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن البزاز الکردری وما کان فی کونه کفراً اختلاف یؤمر قائله بتجدید النکاح والتوبة احتیاطا وما کان خطاء لایؤمر الا بالاستغفار والرجوع عنه . (فتاویٰ بزازیه ص ۳۲۲ جلد ۶ موضوع علی هامش الهندیه مقدمه فیما یکون کفراً من المسلم و مالا)

## مرزائیانو سره تعلقات ساتل ممنوع دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین په دې مسئله کښې چه د مرزائیت فرقې کفر او ارتداد عقلاً اونقلاً د نمر په شان ښکاره او واضحه شوې دې نو په دې صورت کښې اهل اسلام فرقې لره د مرزائیت سره په شرعی حدودو کښې اوسیدو سره څومره حده پورې معاملات او برتاؤ کولې شی د مرزائیانو دعوتونه هغوی سره خوراك څکاك، کاروبار، لین دین، تردې چه دوی سره ناسته پاسته وغیره مسائلو باندې رڼا واچوئ چه زمونږ تسلی اوشی؟

المستفتی: محمد عبدالعزیز علوی ملتان...... ۱۹۷۸ء|۷|۲۲

**الجواب:** چونکه مرزائی خلق صاحب د منعه دی دپاکستان فوج او پولیس ددوی مدافعت دپاره هروخت تیاروی لهٰذا په دې خلقو به د مستامن یا ذمی احکام جاری کیږی یعنی دوی سره دنکاح او لین دین متعلق او دوی سره تعلقات قائم ساتل اګرچه څه ممنوع نه دی لیکن دخارجی عوارضو په وجه ممنوع دی.《۱》داخلق د اهل اسلام دختمولو موقعې تلاش کوی.وهوالموفق

## د مرزائیانو قادیانی او لاهوری دواړه فرقې کافر دی

**سوال:** (۱) یوسړې مرزائیانو ته کافرنه وائی ددوی یا ددوی د ملګرو حمایت یا ددوی اقتداء کښې د مونځ څه حکم دې؟ یوسړې د مرزائیانو قادیانی ډلې ته کافر وائی خو لاهوری ډلې ته کافرنه وائی.دده په اقتداء کښې د مونځ څه حکم دې؟ او ددوی سره د سیاسی اتحاد کونکو باره کښې څه حکم دې؟

المستفتی: محمد حمزه پرنس ګارډن کراچی نمبر۱

**الجواب:** (۱) په دې سړی باندې دکفر سخته خطره ده.《۲》دوی پسې اقتداء نه کول ضروری دی.(۲) په ده باندې هم د کفر سخته خطره ده داسې سیاسی اتحاد کول چه په هغې کښې مرزایان اکثریت کښې دداخلولو حیله موجود وی دا الحاد او زندقه دې.《۳》فقط

《۱》قال الحصکفی و ینبغی ان یلازم الصغار فیما یکون بینه وبین المسلم فی کل شئی و علیه فیمنع من القعود حال قیام المسلم عنده بحر و یحرم تعظیمه و تکره مصافحته ولا یبدأ بسلام الا لحاجة ولا یزاد فی الجواب علی و علیک و یضیق علیه فی المرور و یجعل علی داره علامة وقال ابن عابدین وان تعظیما له فان کان لیمیل قلبه الی الاسلام فلاباس به . (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۳۰۰ جلد ۳ مطلب فی تمیز اهل الذمة فی الملبس)

《۲》قال العلامه ابن البزاز الکردری الجاهل اذا تکلم بکلمة ولم یدرک انها کفر قال بعضهم یکفر و قیل لا الیٰ ان قال الارتداد لانه معنی یتفرد المرتد ...... ان شاتمه کافر و حکمه القتل ومن شک فی عذابه و کفره کفر قال الله تعالیٰ فیه ملعونین اینما ثقفوا اخذوا و قتلوا تقتیلا سنة الله . الایة (فتاویٰ بزازیه علی هامش الهندیه ص ۳۲۱، ۳۲۲ جلد ٦ فیما یکون کفراً من المسلم وما لایکون)

《۳》(یدل علیه ما فی رد المختار ص ۳۲۴ مطلب فی الفرق بین الذندیق و المنافق والدهری والملحد)



## مرزا غلام احمد قادیانی کافردې

**سوال:** مسټر غلام احمد قادیانی کافردې یا نه؟ که کافردې نو په څۀ وجه؟ که څوك په دې زمانه کښې مرزا غلام احمد قادیانی لره مجدد یا مسلمان منی نو هغه دې کافردې یا نه؟ مرزا لره د کافرنه منونکی جنازه کول جائزدی یا نه؟ د عامو مسلمانانو په مقبره کښې دداسې سړی دفن کول جائزدی یا نه؟ او د تعزیت څه حکم دې؟

المستفتی: ملك نعمت الله خان سکنه کمرکله بنوں ۱۸ ۱ ربیع الثانی ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** مرزا غلام احمد دځانه د نبوت د دعوې وغیره په وجه کافردې د مرزا غلام احمد په مکتوباتو باندې نظر اچولونه پس داحقیقت واضح کیږی چه هغه د ضروریات دین د ډیرونه انکار اوپه دین کښې تحریف کړې دې لهٰذا ده لره مسلمان یا مجدد منل (باوجود دهغه په کفریاتو باندې دعمل نه) کافر دې.《۱》اوپه ده باندې جنازه نه کول ضروری دی.《۲》او دهغه مسلمان رشته دار ته دتعزیت دپاره ورتلل جائزدی.《۳》اوهغه دمسلمانانو په مقبره کښې نه دفن کول ضروری دی.《۴》

یدل علیه ما فی الهندیة ص ۱۷۷ جلد ۱ و فی تعزیة الکافر با لمسلم احسن الله عزاک و غفر لمیتک و فی تعزیة الکافر بالکافر اخلف الله علیک و فی شرح الکبیر ص ۵۰۶ مات للمسم قریب کافر لیس له ولی من الکفار یغسله غسل الثوب النجس و یلفه فی خرقة ویحفر له حفرة و یلقیه فیها من غیر مراعاة السنة ........هذا کله اذا لم یکن کفره بالا ارتداد اما لو کان مرتداًیلقیه فی حفرة کالکلب دفعاً لا ذی جیفته عن الناس من غیر غسلٍ ولا تکفین ولا یدفعه الی اهل الدین الذی انتقل الیه .《۵》فقط

《۱》قال ابن عابدین قوله و تمامه فی الدرر حیث قال نقلاً عن البزاز به وقال ابن سحنون المالکی اجمع المسلمون ان شاتمه کافر و حکمه القتل ومن شک فی عذابه و کفره کفر ...... المراد بها ما قبل التوبة. (ردالمحتار ص ۳۱۷ جلد ۳ مطلب فی حکم ساب الانبیاء)

《۲》فی الهندیه الصلوة علی الجنازة ...... و شر طها اسلام المیت و طها رته. (هندیه ص ۱٦۲ جلد ۱ الفصل الخامس فی الصلوة علی المیت)

《۳》(هندیه ص ۱٦۷ جلد ۱ قبیل الفصل السابع فی الشهید)

《۴》ویکره ان یدخل الکافر فی قبر قرابته المسلم لیدفنه (بحرالرائق ص ۱۹۱ جلد ۲ فصل السلطان احق بصلاته)

《۵》(غنیة المستملی ص ۵۵۵ مسائل متفرقه)

## په قادیانی باندې لعنت لیږل

**سوال:** په یو مجلس کښې مرزا غلام احمد قادیانی باندې لعنت لیږل څنګه دی؟
المستفتی: فقیرمحمد خان........یو، کې لندن

**الجواب:** چونکه مرزا غلام احمد قادیانی د اهل شرع په نزد یعنی قانونی او اصولی کافردې منصوصی کافرنه دې.لهٰذا منصوصی کافرانو په شان لعنت به په ده باندې نه شی وئیلې،البته د تنفیر او تذلیل په طور لعنت لیږل په منع نه وی.﴿ ۱ ﴾ فقط

## د قادیانیت خلاف د قومی اسمبلئ متفقه فیصلې باره کښې د ماهنامه الحق سوالنامه

**سوال نامه:** ﴿۱﴾ د آئینی فیصلې باره کښې ستاسو تاثرات څهٔ دی؟
﴿۲﴾ آیا ددې فیصلې نه پس زمونږ ذمه داری ختمه شوې ده؟
﴿۳﴾ ملك او بیرون ملك د قادیانی فتنې سیاسی او دینی تاثرات څه دی؟
﴿۴﴾ دداسې مهلك اثراتو د تعاقب طریقهٔ کار اولائحه عمل څه کیدې شی؟
المستفتی:.......ایډیټر ماهنامه الحق اکوړه خټك

**الجواب:** ﴿۱﴾ د قومی اسمبلئ قادیانی فیصلې سره ددوی د اسلام نه خارج کیدل ټولو عوامو او تعلیم یافته طبقې باندې د رڼړا ورځ په شان واضحه شوه، دې سره ددوی خوصلې کمزورې شوې او مجبورا به دوی اوس په خپلو ارادو کښې

﴿۱﴾ قال العلامه محمد عبدالعزیز الفرهاری ان اللعن ثلثة اقسام احدها اللعن با لوصف العام الوارد فی الشرع نحو لعن الله الکفار و الیهود و هذا جائز حتی انه قد صح فی بعض الصغائر کقوله علیه الصلواة والسلام لعن الله الواشمات والمستوشمات .......... ثانیها اللعن علی الشخص المعین الذی صح موته علی الکفر باخبار الشارع کفرعون و ابی جهل و ابلیس و هو جائز ثالثها علی شخص لم یعلم موته علی الکفر و هو لا یجوز سواء کان حیا او میتا و کان بحسب الظاهر مؤمنا او کافر الجواز ان یوفق الله سبحانه الکافر للاسلام الخ
(النبراس شرح شرح العقائد ص ۳۳۲ اللعن علی یزید خلاف التحقیق)



ترمیم کوی، دې فیصلې سره ددوی د تبلیغ او اشاعت او د عوامو دهوکه کولو دامونه کافی حده پورې بیکاره او ختمیږی.
﴿۲﴾ دا مسئله اګرچه کاغذی طورباندې خوحل شوې ده لیکن عملی طور باندې تراوسه پورې حل طلب ده، ځکه چه قادیانانو تراوسه پورې نه ده منلې، په ټولو مسلمانانو باندې فرض دی چه دوی په حکومت دا فیصله عملاً نافذ کړی ګینی په دنیا او آخرت کښې د انتقام خطرات رامخې ته دی.
﴿۳﴾ ﴿۴﴾ د قادیانانو اثراتو ختمولو دپاره مناسب دی چه ددې فیصلې په هره ژبه او هرحکومت کښې اشاعت اوکړې شی، او هرمسلمان حکومت دوی له قانونی طورباندې غیرمسلم اوګرځوی او د اسلامی ملکونو مشترکه وفود غیرمسلم حکومتونه خبردار کړی او هغوی ته دمسلمانانو نه د جدا حقوق ورکولو مطالبه اوکړی.وهوالموفق

قال رسول الله ﷺ

اوصیکم بتقوی الله والسمع والطاعة
وان کان عبداً حبشیاً فانه من یعش منکم
بعدی فسیرٰی اختلافاً کثیراً فعلیکم
بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین
تمسکوا بها وعضو علیها بالنواجذ وایاکم
ومحدثات الامور فان کل محدثة بدعة
وکل بدعة ضلالة...

(الحدیث)



# باب
# فی الفرق الاسلامیه

...

# باب فى الفرق الاسلاميه

## د حزب الله پارټۍ دواړه روټړه ملحدان دي

**سوال:** يو سړي ډاکټر مسعود الدين عثماني په خپل کتاب، توحيد خالص، اولني قسط کښې ليکي بيادا د حلول عقيده د ابن سبامنلو والا نصريه کيسانيه قرامطه او باطنيه نه راغله راغله او په صوفياؤ کښې ور دننه شوه او چه دلته رااورسيده نو خپل اصل شکل ئې اختيار کړو، الخ صفحه ۳۴ او ددې کتاب په صفحه ۸۵ باندې ئې ليکلي دي چه ددويمې صدۍ (پيړۍ) نه واخلې تر څوارلسمې صدۍ پورې صوفياؤ ليکلي دي او وئيلي ئې دي دا ټول حضرات د چا چه ذکر اوکړې شو د دې الحاد علمبردار وو، او نن چه کوم دين د اسلام په نوم باندې په دنيا کښې موندلې کيږي داددې حضراتو ايجاد کړې شوې دين دې. بيا په صفحه ۱۱۲ باندې ليکي ترننه پورې څوک صوفي داسې نه دې تير شوې چه ملحد نه وي. نودداسې خبرو ليکلو او وئيلو والا څه حکم دې؟ اودوي په پارټۍ حزب الله کښې شريک کيدل څنګه دي؟

المستفتي: مولوي عبدالمقدس جلبئ صوابي.....۵محرم الحرام۱۴۰۳

**الجواب:** دحزب الله پارټي دواړه مشران ډاکټر عثمان او پروفيسر کمال ملحدان دي (۱) ددې خلقو بنيادي کار عوام او کم علمه خلق د علمائې حق نه بد ګمانه کول دی دارنګې د ديني مرکزونو باندې حملې هم کوي. ددوي ددې رويې نه معلوميږې چه دا خلق د کمونستانو او دهريانو ايجنټان دي په ټول اهل اسلام باندې ضروري ده چه څلور واړو امامانو، امام ابو حنيفه، امام مالک، امام شافعي، اوامام احمدبن حنبل ﷺ چه د قران اوحديث کوم تشريحات کړې هغه ددې ملحدينو دتشريح په وجه باندې پرې نږدې (۲) ولاحول ولاقوة الابالله،

(۱) قال ابن عابدين والملحد وهو من مال عن الشرع القويم الى جهة من جهات الكفر من الحد فى الدين حاد وعدل الخ (رد المحتار ص ۳۲۴ جلد ۳ مطلب الفرق بين الزنديق و المنافق والدهرى و الملحد)

(۲) عن عمران بن حصين قال قال رسول الله ﷺ خير امتى قرنى ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم ثم ان بعدهم قوما يشهدون ولا يستشهدون ويخونون ولا يؤتمنون وينذرون ولا يفون و يظهر فيهم السمن وفى رواية ويحلفون ولا يستحلفون متفق عليه وفى رواية لمسلم عن ابى هريرة ثم يخلف قوم يحبون السمانة. (مشكوة المصابيح ص ۵۵۴ جلد ۲ باب مناقب الصحابة الفصل الاول)



## حزب الله يوه ګمراه پارټي ده

**سوال:** علمائې دين او مفتيان کرام څه فرمائي چه نن صبا يو خاص ډله دهٔ د حزب الله په نوم چه علمائې ديوبند او لويو لويو علماؤته کافر او مشرک وئيلو کښې څه خر په نه کوئ، ددې خلقو متعلق ستاسو حضراتو څه خيال دې؟

المستفتي: دين محمد نيو سلطان روډ آدم جی نګر کراچی ۲۸ محرم الحرام ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** حزب الله پارټي يو ګمراه پارټي ده (۱) دا خلق غواړي چه په خير القرون (۲) کښې څلور واړو امامانو چه د وحى کومه تشريح کړې ده هغه پريخودې شي او په شرالقرون کښې د يو ډاکټر او پروفيسر تشريح خپله کړيشي او حال دادې چه دا بې ديني او بد ديني ده، فقط

## ددې زمانې اهل حديث اهل بخارى دي اهل حديث نه دي

**سوال:** څمونږ د بالا کوټ په علاقه کښے اهل حديث والو يو جمات جوړ کړې دې نو اوس څه اختلافي خبرې مخې ته راغلې لکه رفع اليدين، امين بالجهر، او فاتحه خلف الامام وغيره. اهل حديث خلق د بخاري شريف او مسلم شريف حديثو نه او حوالې پيش کوي او څمونږ مقامي علماء د حديث پيش کولو په پوزيشن کښې نه دي. لهذا تاسو حضرات د حديثو حوالې او دکتابونو حوالې اوليکئ او راوليږئ. چه ددوي جواب اوکړو؟

المستفتي: عبدالغفور کاغان روډ بالاکوټ ۹۱۸۱۱۹۷۸

**الجواب:** محترم المقام السلام عليكم ورحمة الله وبركاته؛ تاسو ته دې واضحه وي چه رفع اليدين، وغيره مسائل فيصله شوې مسئلې دي، تاسو علم دين حاصل کړئ اومخالفين قابو کړئ ياچرته يو مناظر د پنډۍ اوګوجرانواله نه را اوغوړئ

(۱) قال ابن عابدين و قال ابن ملک فى شرح المجمع و ترد شهادة من يظهر سب السلف لانه يكون ظاهر الفسق...... وقال الزيلعى او يظهر سب السلف يعنى الصالحين منهم و هم الصحابة والتابعون لان هذه الاشياء تدل على قصور عقله و قلة مروئته ومن لم يمتنع عن مثلها الخ (رد المحتار ص ۳۲۱ جلد ۴ مطلب مهم فى حكم سب الشيخين)

(۲) عن عمر قال قال رسول الله ﷺ اكرموا اصحابى فانهم خياركم ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم ثم يظهر الكذب حتىٰ ان الرجل الخ الحديث (مشكوة المصابيح ص ۵۵۴ جلد ۲ باب مناقب الصحابة الفصل الثانى)

اودوي چُپ کړئ صرف په فتاوؤ او رسالو سره د دوي مقابله کول ډیر ګران کار دي د موجوده زماني اهل حدیث، اهل حدیث نه دي دا اهل بخاري دي ددوي په قابو کښې راوستل آسان کار دي. وهوالموفق﴿۱﴾

## د اهل حدیثو مسلک اختیارول څه حکم لری او د اهل حدیثو اقتداء

**سوال:** د یو حنفي دپاره بغیر دلیل نه حنفیت پریخودل او د اهل حدیثو مسلک اختیارول څنګه دي چه دي پخپله نه په قران پوهیږي او نه په حدیث ﴿۲﴾ او داسې اهل حدیث چه په حنفیانو باندې جرح او اعتراضونه کوی آیا د حنفي اقتداء صحیح ده؟

المستفتي: محمد اقبال ډینټل ټیکنیشن تربت.... ۲۷ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** ائمه اربعو چه د خیر القرون خلق دي. ﴿۲﴾ د قران او حدیث وضاحت کونکي او تشریح کونکي دي. نو ددوي وضاحت او تشریح پریخودو والا او د شوکاني وغیره تشریح قبلولو والا خلق یا خواهش پرست دي او یا ډیر لوئي ججان دي ﴿۲﴾ او کوم اهل حدیث (چه په حقیقت کښې اهل هوي یا اهل بخاري دي) چه ائمه اربعه پسې کنځل کوي هغوي پسې اقداء نه دې کول پکار. ﴿۳﴾

﴿۱﴾ مفتي صاحب فرمائي! بې خبره خلق دا خیال کوي چه اهل حدیث په قال الله او قال الرسول باندې عمل کوي او مقلدین په قال ابو حنیفه او قال الشافعي باندې عمل کوي لیکن دا خیال غلط دې هر یو امام دا تصریح کړې چه حجت او دلیل صرف قران او حدیث دي. او د قرآن او حدیث په مقابله کښې ئې د رائې قبلولو سخت رد کړې دي دا امامان په اعتبار د عبارت، اشارت دلالت او اقتضاءسره د وحې شرحه کونکي دي شارعین نه دي دا ځمونږ استاذان دی خدایان نه دي د مشترک او مجمل مراد ظاهر او ښکاره کوي او تعارض لرې کوې او چه کوم حکم ظاهراً په وحې کښې موجود نه وي د هغې استنباط کوي او دې خبرو ته اهل حدیث هم محتاج دي. مناسب داده چه دا خلق یو مثال پیش کړي چه امام ابو حنیفه رحمة الله علیه د رائې په وجه باندې حدیث پریخودې وي او د بعضې خلقو په د ماغو کښې دا خیال پیدا کیږي چه دا امام ابو حنیفه أحادیث په بخاري او مسلم کښې نشته دې اوځ اهل حدیثو احادیث په بخاري او مسلم کښې شته، چه دا دواړه صحیح ترین کتابونه دي، لیکن دا خیال د اصولو نه خلاف دي ځکه چه دلیل صرف حدیث ثابته دی نه یواځې بخاري شریف، مونږ اهل حدیث یو . اهل بخاري نه یو بې شکه امام بخاري لوئې امام دې، امیر المومنین في الحدیث دې. او صحیح بخاري د کتاب الله نه پس په ټولو کتابونو کښې صحیح ترین کتاب دې لیکن دا خبره نه په قرآن کښې شته او نه په حدیث کښې او نه په خیر القرون کښې چا وئیلې ده بلکه په شرالقرون کښې بعضې امامانو وئیلې دي نو په اهل حدیثو باندې هم تعجب دې چه په دې مقوله باندې اعتماد کوي دا د اهل حدیثو سره مناسب نه دي ځمونږ د مقلدینو سره مناسب ده. (وتمامه فی المقالات ص ۱۳۳ تتمه لمفتی اعظم شیخ الحدیث مفتی محمد فرید دامت بر کاتهم) (ازمرتب)

﴿۲﴾ عن عبد الله ابن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال: خیر الناس قرنی (بقیه حاشیه پر راروانه صفحه)



## بریلیان کافران دي که نه؟

**سوال:** د بریلوي فرقې څه حکم دې کافره ده که نه؟

المستفتي: جاوید احمد چوک یادګار پېښور

**الجواب:** دا بریلوي فرقه کافران نه دي او چه کوم سړې د پیغمبرانو بشریت نه منکر وي﴿۱﴾ یا د غیر الله دپاره تسلط غیبی او علم کلی منی نو هغه کافر دې ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په مودودی او پنجپیری کښې فرق او د هغوي امامت

**سوال:** دمودودیانو او پنجپیریانو په عقیدو او اعمالو کښې څه فرق دې؟ دوي پسې اقتداء کول او ددوي عقیدې خورول جائز دي که نه؟

المستفتي: عبدالله متعلم دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک..... ۱۹۸۵ء|۳|۴

**الجواب:** مودودیان د عصمة الانبیاء، عدالت صحابه، تقلید شخصی او د مشهور تصوف منکرین دي. ﴿۳﴾ په خلاف د سلفیانو چه هغوي د توسل بالصالحین وغیره نه انکار کوي، نو که چا صحیح عقیدې والا سړې اوموندلو په هغه پسې

(بقیه حاشیه) ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم ثم اقوام تسبق شهادة احد هم یمینه و یمینه شهادته. (مختصر صحیح البخاری ص ۲۵۹ جلد ۲ کتاب الشهادات باب لا یشهد علی شهادة جور اذا اشهد)

﴿۳﴾ قال العلامه ابن عابدین و مما یزید ذلک وضوحاما صرحوا به فی کتبهم متونا و شروحاً من قولهم ولا تقبل شهادة من یظهر سب السلف...... وقال ابن ملک فی شرح المجمع وترد شهادة من یظهر سب السلف لانه یکون ظاهر الفسق...... وقال الزیلعی او یظهرسب السلف یعنی الصالحین منهم و هم الصحابة والتابعون لان هذه الاشیاء تدل علی قصور عقله و قلة مروأته الخ (ردالمحتار ص ۳۲۱ جلد ۳ مطلب مهم فی حکم سب الشیخین)

﴿۱﴾ قال العلامه الوسی فلو قال شخص أومن برسالة محمد صلی الله علیه وسلم الیٰ جمیع الخلق لکن لا ادری هل هو من البشر اومن الملائکة او من الجن اولا ادری هل هو من العرب او العجم فلا شک فی کفره لتکذیبه القران و جحده ما تلقته قرون الاسلام خلفا عن سلف و صار معلوما با لضرورة عند الخاص والعام ولا اعلم فی ذلک خلافا ...... فان جحده بعد ذلک حکمنا ه بکفره انتهیٰ. (روح المعانی ص ۱۷۸ جلد ۳ سورة آل عمران آیت: ۱۶۴)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین والذی یدعی ان له صاحبا من الجن یخبره عما سیکون والکل مذموم شرعاً محکوم علیهم و علی مصدقهم با لکفر و فی البزازیه یکفر با دعاء علم الغیب ...... و فی التتار خانیه یکفر لقوله انااعلم المسروقات او انا اخبر عن اخبار الجن ایای...... واما ما وقع لبعض الخواص کا لانبیاء والاولیاء بالوحی او الالهام فهو باعلام من الله تعالیٰ فلیس مما نحن فیه ...... وحاصله ان دعوی علم الغیب معارضة لنص القران فیکفر بها الا اذا اسند ذلک صریحا او دلالة الیٰ سبب من الله تعالیٰ کوحی او الهام (ردالمحتار ص ۳۲۵ جلد ۳ مطلب فی دعویٰ علم الغیب) (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

دي اقتداء اوکړي ګني بدعتیانو پسې هم مونځ کیږي چه کافران نه وي خو بیا هم داسې خلق امامان جوړول نه دي پکار. وهو الموفق.

## د پنجپیریانو عقیدې د فرقه سلفیه نجدیه عقیدې دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب بعضې علماء خپل نسبت حقانیه او دیوبند ته کوي ځان سره حقاني او دیوبندي لیکي او د وهابیانو او پنجپیریانو دعقیدو سخت پابندوی، په سوات دیر او کوهستان کښې داسې خلق ډیر دي، ددې خلقو متعلق مونږ ته فتوي راکړئ چه پنجپیریان څنګه خلق دي؟

المستفتي:عبدالرحیم طوروی یارحسین مردان یکم رمضان المبارک ۱۳۸۹

**الجواب:** د پنجپیریانو عقیدې د فرقه سلفیه نجدیه عقائد دي او دوي د خپلو مزعوماتو د اثبات دپاره په قرآن اوحدیث کښې لرې لرې تاویلات کوي چه هغې ته من وجه تحریف وئیل هم څه غلطه خبره نه ده. فقط

## پنچپیریان سلفیان او متشدده دی

**سوال:** نن صبا یوه فرقه ده چه پنجپیریان ورته وائي د شریعت په رنړا کښې دا خلق څنګه دي؟

المستفتي:ارشد علي پړانګ چارسده...... ۱۵۱۳۱۱۹۹۰

(بقیه حاشیه) ﴿۳﴾ په دے باندے د امت اکابر علماء کرامو مختلف کتابونه لیکلی دی. فلیراجع الیها
(۱) فتنهٔ مودودیت للشیخ محمد ذکریا مهاجر مدنی (۲) صراط مستقیم للشیخ لدھیانوی
(۳) مودودی خمینی بھائی بھائی (۴) علماء حق کی مودودی سے ناراضگی کے اسباب۔ للشیخ احمد علی لاہوری رحمۃ اللہ علیہ۔
(۵) صراط مستقیم، سبیل المؤمنین للشیخ عبدالسلام نوشہروی۔ (۶) مودودی مذہب للقاضی مظہر حسین چکوال
(۷) مودودی عقائد اور دستور للشیخ حسین احمد مدنی شیخ الحدیث بدار العلوم دیوبند
(۸) حضرت امیر معاویہ اور تاریخی حقائق بجواب خلافت ملوکیت (محمد تقی عثمانی)
﴿۱﴾ قال الحصکفی و یکفره تنزیها امامة عبد ......... و مبتدع ای صاحب بدعة و هی اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة.
(رد المحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)



**الجواب:** دا سلفیان خلق د فروعي مسئلو﴿۱﴾ په وجه باندې اهلِ اسلام ته کافران وائی ددوي د سختې روئې نه ځان ساتل پکار دي.

## د پنجپیریانو سره ترجمه کول څنګه دی؟

**سوال:** څمونږ په کلي کښې یو حاجي صاحب دخپل کلي د یو عالم نه لفظي ترجمه تړله د قران مجید وئیلې ده بیا ئې روستو دحضرت مولانا شیخ التفسیر والحدیث مولانا عبدالهادی صاحب شاه منصوري سره ترجمه قران مجید اوکړه او دارالعلوم کښې ئې څه کتابونه هم اووئیل بیا ئې روستو په پنجپیر کښې ترجمه اوکړه.اوس صرف دپنجپیر معتقد دې او د خپل کلي د قراني استاذ او دخپل کلی د قرآنی استاذ اودحضرت مولانا شیخ التفسیر والحدیث جناب عبدالهادي صاحب او دارنګې د دارالعلوم حقانیه د استاذانو او مدرسینو ډیر بې ادبه او بد ګویه دې.نو دعلمائې حق د داسې سړي په باره کښې څه حکم دې؟ او په جمات کښې خپل قرانی استاذ پسې مونځ نه کوي او بد عتي ورته وائي او ځان له مونځ کوي.﴿۲﴾ د پنجپیر د معتقدینو او متعلقینو نه ترجمه کول، زده کول او اوریدل څنګه دي؟

المستفتي: جمله ساکنان اضاخیل بالا نوشهره..۲۱۲۱۱۹۶۹

**الجواب:** دا سړې د فقه سلفیه نجدیه عقیده لری او د خپل مخصوص شیخ پشان د نافرمانئ په جرم کښې مبتلاء دې،او جماعت پریخودل فسق او نفاق دې﴿۲﴾ ﴿۲﴾ چونکه دا خلق د خپل نجدیت داثبات دپاره د کلام الهي لرې لرې معنې کوي چه یو قسم تحریف دې نو په دې وجه د دوي نه قران وئیل نه دي پکار،

درهما از جهان شود معدوم ..... کس نه آید بزیر سایه بوم،فقط.

﴿۱﴾ کالدعاء بعد السنة والدعاء بعد الجنازة وحیلة الاسقاط، والتوسل با الذوات الفاضله والاعمال الصالحه و زیارة القبور، والاجرة علی ختم القران وطعام اهل المیت وغیرها کما یفهم من کتبهم.
﴿۲﴾ قال ابن عابدین قوله نظام الالفة بتحصیل التعاهد با للقاء فی اوقات الصلوات بین الجیران الی ان قال قوله قال الزاهدی ارادوا با لتاکید (الجماعة) الوجوب اخذاً من استدلالهم با لاخبار الواردة بالوعید الشدید بترک الجماعة و فی النهر عن المفید الجماعة واجبة وسنة لوجوبها با لسنة.
(ردالمحتار ص ۴۰۸ جلد ۱ مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)

## د یو وهابي مولانا د تقریر وضاحت

**سوال:** تاسو حضراتو ته به معلومه وي چه نن صبا د وهابیانو نازیبا الفاظ په لاوډ سپیکرو باندې خورېږي چه دهغي په وجه باندې څمونږ علاقه ډېره پریشانه ده څمونږ د یو مولانا د تقریر الفاظ داسي دي. (۱) حضور ﷺ به خلقو ته کنځل هم کول، العیاذ بالله. حضور ﷺ ته ئې د کنځلو نسبت کړې، (۲) و ظللنا علیکم الغمام وانزلنا علیکم المن والسلوی په تشریح کښې وائي. څومره تفسیرونو چه د تیارو مړاځانو یعني وریت شو ترجمه کړې هغه ټول غلط او دروغ دي الله پاک دومره وزګار نه دې چه خلقو ته تیار خوراکونه ورکوي او نه هغه اوزګار وو (۳) د جمعې په شپه سورة ملک (تبارک الذي) وئیل عمل صالح نه دي، او هغه اسماعیل به یقیني طور دوزخ ته ځي. (۴) خپل ځان ته دوهابیانو او اصحابو نسبت کوي او غیر وهابیانو ته مشرک وائي. (۵) هرهغه عمل چه رسول الله ﷺ پاس کړې نه وي دهغې بدله به نه ملاویږي، نو آیا داسي سړې به اسلام نه خارج نه متصور کیږي؟ که جواب په نفي کښې وي نو مونځ ورپسې څنګه دی؟

المستفتي: اهلیان تهکال پشاور

**الجواب:** (۱) پیغمبر ﷺ مسلمانانو ته د کنځلو کولو نه منع کړیده حیث قال سباب المسلم فسوق. ﴿۱﴾ کافر ته کنځل په صحیح عرض سره جائز دي. قال الله تعالی لاتطع کل حلاف مهین هماز مشاء بنمیم مناع للخیر معتد اثیم ﴿۲﴾ (۲) د وریت کړې شو مړزانو ناز لیدل غیر تحقیقي خبره ده نو ددې انکار کولو والا سړې مسلمان دې (۳) دده دا خبره چه فلانکې به یقیني طور دوزخ ته ځي دا یقیناً غلطه ده که د خاص کس متعلق وي او که د عام او د سورة الملک تخصیص کول د جمعې د شپې پورې د فقهاؤ د اصولو نه خلاف دي ﴿۳﴾ (۴) دا قسم غلو کول حرام او بدعت دي ﴿۴﴾ (۵) صحیح خبره ده. ﴿۵﴾ او پاتې شوه دا خبره چه د

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ص ۴۱۱ جلد ۲ باب حفظ اللسان والغیبة والشتم)
﴿۲﴾ (پ: ۲۹ سورة قلم رکوع: ۱ آیت: ۱۰، ۱۱، ۱۲)
﴿۳﴾ قال ابن نجیم ولان ذکرالله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشیء دون شیء لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به (بحرالرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العیدین)
﴿۴﴾ عن ابی ذر انه سمع النبی ﷺ یقول لایرمی رجل رجلاً بالفسوق ولا یرمیه بالکفر الاارتدت علیه ان لم یکن صاحبه کذالک. (صحیح البخاری ص ۸۹۳ جلد ۲ باب ماینهیٰ من السباب واللعن)
﴿۵﴾ عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من احدث فی امرنا هذا مالیس منه فهورد. متفق علیه (مشکواة المصابیح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة)



کوم عمل وهابیانو او نجدیانو نه وي پاس کړې ثواب به نه ملاویږی غلطه ده، فقط کوم اهل حدیث چه ددې سړي پشان د غُلو نه ډک وي دهغوي پسې اقتداء کول مکروه ده.

## ایراني شیعه ګان او نجدی خلق

**سوال:** مونږه سره یو پاکستاني دې چه دهغه تعلق د پنجپیریانو د ډلې سره دې، هغه وائي چه ټول ایرانیان مشرکان او کافران دي نو آیا مونږ دوی ته مشرکان او کافران وئیلې شو؟

المستفتي: ضیاء الرحمان اصفهان جمهوري اسلامي ایران ۲۶/۱ جون ۱۹۸۴

**الجواب:** ټول ایرانیان نه شیعه ګان دي او نه مشرکان، او نه ټول شیعه ګان کافران او مشرکان دي. ﴿۱﴾ البته ټول نجدیان ټول په ټوله متشدد دي. وهوالموفق

## د محمد بن عبدالوهاب نجدی متعلق وضاحت

**سوال:** علمائې دین ددې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه زید وائي، محمد بن عبدالوهاب، نجدي حنبلي مذهب والا وو او پوخ مسلمان وو خو په مزاج کښې ئې جلال ضرور وو. او بکر وائي چه هغه ګمراه وو، نو ددې متعلق وضاحت اوکړئ چه محمد بن عبدالوهاب نجدي څنګه سړې وو؟

المستفتي: شاه محمد مدرسه فیض العلوم پشین بلوچستان ۲۲/۱ جولائي ۱۹۸۴ه

**الجواب:** محمد بن عبدالوهاب او دهغه متبعین مسلمانان دي د دین د ضروریاتو نه منکر نه دي البته د اشداء علی الابرار والرحماء بالکفار د رویې په وجه باندې د خوار جونه شمار کړې شوې دي او دا خلق په بعضې اصولو او فروعو کښې ځانله دي د حنابله ؤ نه هم مخالف دي. ﴿۲﴾ کما یدل علیه کلام الذهبي في حق امامهم ابن تیمیه. ﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال ابن عابدین ان الرافضی ان کان ممن یعتقد الالوهیه فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی او کان ینکر صحبة الصدیق او یقذف السیدة الصدیقة فهو کافر لمخالفة القواطع المعلومة من الدین بالضرورة بخلاف ما اذا کان یفضل علیا او یسب الصحابة فانه مبتدع لا کافر. الخ (رد المحتار ص ۳۱۴ جلد ۲ فصل فی المحرمات مطلب مهم فی وطء السراری اللاتی ............)
﴿۲﴾ قال ابن عابدین الظاهر من کلام الاختیار وغیره ان البغاة اعم فا المراد بالبغاةما یشمل الفریقین و لذا فسرفی البدائع البغاة بالخوارج لبیان انهم منهم وان کان البغاة اعم وهذا الیٰ ان قال ابن عابدین فی زماننا فی اتباع عبد الوهاب الذین خرجوا من نجدوتغلبوا علی الحرمین و کانوا ینتحلون مذهب الحنابله لکنهم اعتقدوا انهم هم المسلمون وان من خالف اعتقادهم مشرکون و استباحوا بللک قتل اهل السنة و قتل علمائهم حتیٰ کسر الله تعالیٰ شوکتهم وخرب بلادهم و ظفر بهم عساکر المسلمین عام ثلاث وثلاثین و مأتین و الف. (ردالمحتار ص ۳۳۹ جلد ۳ مطلب فی اتباع عبدالوهاب الخوارج فی زماننا باب البغاة)
﴿۳﴾ (والتفصیل فی التذکرة للذهبی)

## د وهابيانو مذهب او دَ حق مذهبونو تعداد

**سوال:** (۱) په وهابيانو باندې د كفر اطلاق كيږي كه نه؟ (۲) وهابيان چه د خلقو د ستونونه د تقليد لرې كولو دپاره كوم مالونه وركوي آيا دا مال خوړل حلال دي كه نه؟ (۳) محمد بن عبدالوهاب نجدي د كوم مذهب مقلد وو (۴) حق مذهبونه څومره دى؟ آيا د څلور مذهبونو نه علاوه چه يو بل مذهب وي د هغې تقليد به واجب وي كه نه؟

المستفتي: مجاهد عبدالرحمان حنفي افغانستان...۵ربيع الثاني۱۴۰۵ھ

**الجواب:** (۱) وهابي بې ادبه او ايماندارسړي دي كافر نه دي (۲) ددوى مال اخستل د غيرت نه خلاف دي حرام نه دي (۳) محمد بن عبدالوهاب نجدي د امام احمد بن حنبل د مذهب دعوي كونكې وو، ليكن په بعضې اصولو اوفروعو كښې ځانله وو (۱) (۴) اهل سنت والجماعت پنځه واړو فرقوته وائي يعني څلور واړه امامان او غيرغالى اهل حديث. وهو الموفق

## وهابيان بې ادبه او ايماندار دي

**سوال:** د وهابيانو څه عقيده ده او د چا مقلدين دي دوي پسې مونځ كول جائز دي يا نه؟

المستفتی: فصيح الرحمان پبي پيښور.....۱۹اكتوبر۱۹۸۷ء

**الجواب:** وهابيان دمحمدبن عبدالوهاب نجدى، ابن قيم او ابن تيميه وغيره متبعينو ته وائي دا خلق د شرعي توسل، د قبرونو د زيارت دپاره سفر كولو او د مرګ نه پس د كرامت پشان حقيقتونو نه منكر دي دا خلق بې ادبه خو ايماندار دى دوى پسې بغير ضرورته مونځ كول مكروه تحريمي دي (۲) والله اعلم بالصواب

(۱) قال ابن عابدين فى زماننا فى اتباع عبدالوهاب الذين خرجوا من نجد و تغلبوا على الحرمين و كانوا ينتحلون مذهب الحنابله لكنهم اعتقدوا انهم هم المسلمون وان من خالف اعتقادهم مشركون و استباحوا بذلك قتل اهل السنة و قتل علمائهم الخ
(ردالمحتار ص ۳۳۹ جلد ۳ باب البغاة مطلب اتباع عبد الوهاب الخوارج)

(۲) قال الحصكفى و يكره امامة عبد ...... واعرابى ...... وفاسق و أعمىٰ ...... و مبتدع ...... و كل من كان من قبلتنا لا يكفر بها حتى الخوارج قال ابن عابدين اراد بهم من خرج عن معتقد اهل الحق.
(الدرالمختار وردالمحتار ص ۴۱۴، ۴۱۵ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)



## نجديان او بريليان په افراط او تفريط كښې مبتلا دى

**نوټ:** يو مفصل استفتاء چه په هغې كښې د نجديانو او بريليانو د افراط او تفريط ذكر وو چرته وركه شوه په تلاش كولو سره هم ملاؤ نه شوه دهغې په جواب كښې حضرت مفتي اعظم مرشد عالم دا څو كرښې جواب ليكلي ؤو.

**الجواب:** مونږ نه د بريلويت حمايت كونكى يو او نه د نجديت دعوت وركونكې د افراط اوتفريط دواړو نه ويزاره يو (۱) تاسو هغه قصې معجزې او كرامتونه را اوليږئ چه مونږ صحيح فتوى وركړى شو. فقط

## د وهابيانو او سلفيانو د مخ نيوى فيصله صحيح ده

**سوال:** څمونږ د شمالي وزيرستان علاقې خلق ټول حنفي او ديوبندي مسلك لري اوس د بعضې عربي مملكتونو نه بعضې مهاجر د كنړ افغانستان په ذريعې سره ډيرې پيسې اخلي او په دې سره د وهابيت او سلفيت خوروول كوي في الحال خو په خيمو كښې مدرسې جوړوي خو روستو ئې د ترقئ اراده شته دې نو مقامي علماؤ فيصله كړې ده چه ددې فتنې په وخت باندې مخ نيوې پكار دې چه عوام د فساد او خانه جنګئ نه محفوظ شي نو آيا دا فيصله او اقدام صحيح او جائز دي يا نه؟

المستفتي: مولانا حاجى محمد صاحب وعلماء شمالى وزيرستان۱۹۸۶ء۱۲\۱۱\۱

**الجواب:** الحمد لله و سلام علي عباده الذين اصطفي امابعد! ستادا مخ نيوې او حفظ ما تقدم صحيح او د شاباس لائق دې ځكه چه دا فرقه سلفيه وهابيه د خيرالقرون په يو امام باندې هم اعتماد نه كوي او د غې امامانو چه د قران او حديث كومه تشريح كړې دوي ساده عوام د هغې نه بدګمانه كوي او خپلې تشريح طرفته دعوت وركوي. دا فرقه شخصي تقليد ته شرك وائي او امامانو ته ارباب من دون الله وائي، او دبې خبره خلقو ذهن جوړوي چه امام اعظم صاحب به رائې په حديث باندې وړاندې ګڼړله او حال دادې چه د شخصى تقليد مشروعيت (جائز والې) د قران او حديث او خيرالقرون نه ثابت دي او

(۱) عن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ الامر ثلثة امر بين رشده فاتبعه و امر بين غيه فاجتنبه وامر اختلف فيه فكله الى الله عزوجل رواه احمد.
(مشكواة المصابيح ص ۳۱ جلد ۱ باب الاعتصام بالكتاب و السنة الفصل الثانى)

دهرې زمانې لوئې خلق مفسرین، محدثین، شارحین حدیث، فقهاء او تصوف والا د تقلید شخصی پابند پاتې شوې دي. او په دوی کښې بالخصوص احناف ټول مجتهدین په حقه باندې منی. او د نورو امامانو مقلدین دخپل ځان پشان مسلمانان ګڼړي او د یو امام توهین او ورته کنځل کول جائز نه ګڼړي او په کومو مسئلو کښې چه صحابه کرامو کښې اختلافات پاتې شوې مثلاً قرآة خلف الامام، رفع الیدین، آمین بالجهر وغیره نو په هغې کښې د دواړو طرفو نو دلیلونه ذکر کوي او راجح او غوره په دلیلونو سره متعین کوي او د مرجوح قول په قائلینو باندې طنز نه کوي او نه هغوي له خپلې رائې طرفته دعوت ورکوي د سلفیه ډلې د رویې پشان نه دي. نو د کومو ښارونو اکثر خلق یا ټول اوسیدونکي چه احناف وي د غیرت او مذهبي حمیت نه ډک وي نو په داسې ښارونو کښې د سلفیانو وهابیانو پشت پناهي کول او هغوي له د مدرسو دپاره ځائې ورکول دائمه دین په توهین کښې ناجائزه تعاؤن دې او د عوامو تباهي او بد خواهي ده ځکه د تجربې نه ثابته ده چه سلفیان او وهابیان د کنځلو وینا ګانو او تشدد نه نۀ منع کیږي نه نو خامخا به جنګ جګړې ته خبره رسیږي او د کمیونزم سره د جنګ په ځائې به په مسلمانانو کښې جنګونه جوړشي او بله دا چه دا سلفیان او وهابیان د یو څو مسئلو نه علاوه د نور علم نه بالکل خالي دي نو لازماً به عام خلق د اسلام نه بد ګمانه شي او وائي به چه اسلام څنګه مکمل ضابطه حیات دې په دې کښې څمونږ د ټولو مسئلو حل نشته

نو ددې مفاسدو په بنا باندې دې سلفیانو وهابیانو ته ځائې ورکول حرام دي ځکه چه د مفاسدو ذریعه هم خرابه وي په ټولو بااثره مسلمانانو باندې لازم دي چه ددې فتنې په وخت باندې مخ نیوې او کړې او د ډیر افسوس خبره دا ده چه بعضې عربي ملکونو ددې مصلحت په وجه باندې تبلیغي جماعت خلاف قانو ن ګرځولې ځکه چه په تبلیغ کښې وخت لګولو سره په خلقو کښې دینَي شعور پیدا کیږي او د بې دیني او فُسق او فجور مقابله شروع کیږی نوهسې نه چه حکومت والا د هغې نه متاثره شي او د احنافو په نزد حنفي مذهب ډیر اهم دې او حفاظت ئې واجب دې نو هغوي به څنګه ددې ډلې مفاسد نظر انداز کړي. وهو الموفق



# فصل
# في مايتعلق
# بالجماعت التبليغية

بسم الله الرحمن الرحيم

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ
يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ
وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ
وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ط
وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۴﴾



# فصل في مايتعلق باجماعت التبليغية

## تبليغي جماعت او د عام سړي د تبليغ حکم او د تبليغی جماعت مخالفت

**سوال:** (۱) د تبليغي جماعت څه حکم دې؟ (۲) عام بې علمه سړې تبليغ کولې شي او که نه؟ (۳) د تبليغي جماعت مخالفت څنګه دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولوی خيرګل ارباب ګړهی چارسده ۲ ربيع الاول ۱۴۰۲ هجري

**الجواب:** (۱) تبليغي جماعت يو نيک او بااثره جماعت دې او د اسلام په خدمت کښې د ټولو خلقو نه مخکښې مخکښې دې او دارنګې صحابه کرامو رضي الله عنهم اجمعين د تبليغی محنت نقشه په دې خلقو کښې ښکاره ده.

(۲) عام بې علمه سړې د تبليغ اهل نه دې ﴿۱﴾ ليکن په اصلاحي پروګرام کښې د حصې اخستلو ډير زيات محتاج دې. (۳) دا مخالفت د دين د شمني ده البته څوک چه د حد نه تجاوز کوي د هغوي اصلاح ضروري ده. ﴿۲﴾

## تبليغي جماعت د ديو بند مسلک لري

**سوال:** (۱) بعضې خلق وائي چه په تبليغي جماعت کښې وهابيان او پنجپيريان خلق ډير دي دوي سره مه اوځې، داسې کس خو به ګناه ګاريږي نه؟ (۲) بعضې خلق وائي چه د بې علمه سړي د بيان سره هغه پخپله او اوريدلو والا ټول کافران کيږي آيا دا خبره صحيح ده؟ (۳) بعضې خلق وائي چه په تبليغ کښې د يوې روپې ثواب اووه لاکهه او ديو مونځ ثواب يو کم پنځوس کروړه دا بالکل بې سنده خبره ده. ددې څه حکم دې؟

المستفتي: فضل واحد سالارزئ باجوړ.... ۲۳ رمضان ۱۴۱۰ھ

---

﴿۱﴾ وفی الهنديه الامر بالمعروف يحتاج الى خمسة اشياء اولها العلم لان الجاهل لا يحسن الامر بالمعروف الخ (فتاویٰ الهنديه ص ۳۵۳ جلد ۵ کتاب الکراهيه الباب السابع عشر)

﴿۲﴾ عن جرير بن عبدالله البجلی رضی الله عنه قال بايعت رسول الله ﷺ علی اقام الصلاة وايتاء الزکاة والنصح لکل مسلم. (صحيح البخاری ص ۱۳ جلد ۱ کتاب الايمان باب قول النبی ﷺ الدين النصيحة)

**الجواب:** (۱) په رائې ونډ کښې د سنتو نه وروستو دعاکول او ذحیلهٔ اسقاط معمول نشته نو په دې وجه باندې عوام بدګما نئ کوي ګڼي نو دا جماعت دیوبند مسلک ساتي. (۲) دا دروغ او جاهلانه کلام دې (۳) دا ثواب د دوو حدیثو نو د ملاوهلو په وجه سره د مجاهدینو، حاجیانو او طالبانو او تبلیغیانو دپاره ثابت دې. ﴿۱﴾ ثواب دیوې ډلې پورې خاص کول تحریف معنوي دې، وهو الموفق

## په رائې ونډ او تبلیغی جماعت مشرانو باندې اعتراض کول

**سوال:** آیا رائې ونډ ته تلل جائز دي او د تبلیغي جماعت په علمائې کرامو باندې د اعتراض کولو څه حکم دې؟

المستفتي: هدایت خان ملاکنډ ایجنسي...... ۱۴ صفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** رائې ونډ ته تلل جائز دي او د تبلیغي جماعت مشران اولیاء الله دي په هغوي باندې بې ځایه اعتراضونه کول د اعتراض والؤ دپاره ښه نه ښکاري.

## ددین تبلیغ فرض دې یا مستحب او د ثواب تخصیص کول

**سوال:** ددې مشهورې طریقې چه د مولانا محمد الیاس صاحب تبلیغي سلسله ده ددې څه حکم دې چه تبلیغ فرض دې یا واجب دې یا سنت دې او یا مستحب، که مستحب وي نو چه کوم حضرات د فرض واجب سنت عقیده لري نو دهغوي شرعي حکم څه دې؟.(۲) که مستحب وي نو دومره اهتمام کول چه د غریبو مسلمانانو د رائې ونډ اجتماع ته د کعبې شریفې د حاضرئ نه هم زیاته درجه ورکول په شریعت کښې څه حکم لري؟(۳) په تبلیغ کښې یو مونځ کول د کروړونو مونځونو کولونه بهتر دي او یو درهم خرچ کول دلکهونو روپو دخرچ او خیرات کولو نه بهتر ګڼړل څه حکم لري؟

المستفتي: مولوي امیر حکم شاه بنوں...... ۲۳ جمادي الاولي ۱۳۹۳ھ

**الجواب:** (۱) تبلیغ دین فرضِ کفایه دې او اصلاحِ نفس (یعني ځان په فضائلو سره

﴿۱﴾ (اما الاول رواه ابن ماجه ص ۱۹۸ باب من جهز غازیا والثانی رواه ابوداؤد ص ۳۳۸ جلد ۲ فی باب تضعیف الذکر فی سبیل الله)



ښائسته کول او د رذیل صفاتونه ځان خالي کول) فرض دی (کما اشیرالیه في ردالمحتار ص ٤٠ ج۱) ﴿۱﴾ او ظاهراً ددې جماعت اصل مقصد دویم کار معلومیږی نو ددې مقصود دپاره سفر اختیارول مستحب دي. ځکه: لان قطع العلائق و ترک المالوفات یمدان في حصول تلک المقصود. (۲) د مرتبو فرق ضروری دي. قاضي پانی پتی فرمائي. ګرفرق مراتب نه کنې زندیقي.(۳) د في سبیل الله لفظ دوې ته هم شامل دې نو ددې فضائلو کیدل څه لرې خبره نه ده خو تخصیص ئې دې جماعت سره کول لکه چه بعضې عوام ئې کوي غلط فهمي او بد فهمي ده. فقط

## د شب جمعې تخصیص او رائې ونډ له په حج باندې فوقیت ورکول

**سوال:** (۱) د تبلیغي جمات څه حکم دې.؟ او آیا یو کم پنځوس کروړه والا حدیث شته که نه؟ (۲) شبه جمعه مقرر کول ددې څه حکم دې په حدیث کښې خو راغلي دی چه لا تختصوا لیلة الجمعة لصیام الخ (۳) بعضې تبلیغیان رائې ونډ ته تللو ته د حج نه هم زیاته درجه ورکوي آیا دا صحیح ده؟

المستفتي: مولوی غلام محمد کوهستاني ضلع دیریکم ربیع الثانی ۱۴۰۲

**الجواب:** (۱) تبلیغي جمات یو نیک او با آثره او کارکونکې جماعت دې او د في سبیل الله والؤ په حق کښې دا ثواب د مختلفو حدیثو نه ثابت دې خو دا فضیلتونه صرف ددې جماعت سره خاص کول صحیح نه دي. (۲) که دا د وخت او ځائې تعین د ځان وزګارولو په نسبت سره وي نو جائز دي. ګڼي نو بیا به بدعت وي او په دې کښې دلیل روایت دامام بخاري دې د ابن مسعود رضی الله عنه ﴿۲﴾

﴿۱﴾ قال ابن عابدین قوله وعلم القلب ای علم الاخلاق وهو علم یعرف به انواع الفضائل و کیفیة اکتسابها وانواع الرزائل و کیفیة اجتنابها اه ح وهو معطوف علی الفقه لاعلی التبحر لما علمت من ان علم الاخلاص والعجب والحسد والریاء فرض عین ومثلها غیرها من افات النفوس کالکبر والشّح والحقد والغش والغضب والعداوة والبغضاء الخ. (ردالمحتار ص ۳۲ جلد ۱ مطلب فرض العین افضل من فرض الکفایة مقدمه)

﴿۲﴾ عن ابن مسعود قال کان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولنا بالموعظة فی الایام کراهة السآمة علینا.
(صحیح البخاری ص ۱٦ جلد ۱ ما کان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم بالموعظة والعلم. کتاب العلم)
وفی تحقیق تجرید البخاری یتخولنا ای یتعهدنا والمعنی انه کان یراعی الاوقات فی تذکیرنا ولایفعل ذلک کل یوم لئلا نمل (التجرید الصریح لاحادیث الجامع الصحیح ص ۳۹ جلد ۱ رقم حدیث: ٦۲) (بقیه حاشیه بل راروانه صفحه)

(۳) رائي وني له په حج باندې فوقيت ورکول غلطي ده دا د تبليغي جماعت خبرې نه دي بلکه د بعضې بې علمه خلقو د حد نه تجاوزونه دي ځکه چه حاجي، عمرې والا، مجاهد، استاد، طالب علم وغيره هم د الله په لاره کښې وتلي دي. خلاصه دا چه دا جماعت د صحابه کرامو ﷺ ديني دعوت چلونکې دې او په دې کښې وخت لګول ډير بهتر کار دې ځکه چه د بعضې خلقو د بې اعتدالۍ په وجه باندې ټول جماعت غلط ګڼړل دا هم غلطي ده. وهو الموفق

## د تبليغي جماعت تنظيمي هيئت اوفضائل وغيره په دې جماعت کښې منحصر کول

**سوال:** (۱) د بعضې تبليغيانو نه اوريدلې شويدې چه بسترې اخستل او چلې له تلل دا د حضور ﷺ ترتيب دې اوددې ترتيب نه علاوه خلق دين ته راوستل ډير مشکل دي، نو آيا دا خبره صحيح ده چرته بدعت خو به نه وي. (۲) د جهاد آيتونه او فضيلتونه د تبليغ دپاره استعمالول څنګه دي؟ (۳) د يو کم پنځوس کروړه ثواب دالله په لاره کښې وتونکې دپاره څه حکم دې؟

المستفتي: مولوی عبد الرشيد اورکزئ ايجنسی کوهاټ ۷ ذي قعده ۱۴۰۴

**الجواب:** که دا طريقه په خير القرون کښې وې نو بيا به حضرت مولانا محمد الياس رحمة الله عليه ته د جماعت مشر وئيل غلط وي خو حقيقت دادې چه دا تنظيمي طريقه بذاته د خير القرون نه ثابت نه ده ليکن اصل دليل ئې ثابت دې بدعت سيئه نه ده (۲) دا آيتونه په تبليغي جماعت کښې منحصر کول معنوي تحريف دې خو په ديکښې دا جماعت ور دننه کول صحيح دي. (۳) دا ثواب د هر هغه سړي دپاره دې چه د الله تعالى په لاره کښې اوځي برابره خبره ده چه هغه مجاهد وي يا حاجي وي، طالب علم يا تبليغ والا وي وغيره وغيره، وهو الموفق

(بقيه حاشيه گزشته صفحه) وعن عكرمة ان ابن عباس قال حدث الناس كل جمعة مرة فان ابيت فمرتين فان اكثرت فثلث مرات ولا تمل الناس هذا القرآن الخ الحديث (مشكواة المصابيح ص ۳۶ جلد ۱ كتاب العلم) وعن شقيق كان عبدالله ابن مسعود يذكر الناس فى كل خميس فقال له رجل يا اباعبد الرحمن لوددت انک ذكرتنا فى كل يوم قال اما انه يمنعنى من ذلک انى اكره ان املكم وانى اتخولكم بالموعظة كما كان رسول الله ﷺ يتخولنا بها مخافة السآمة علينا متفق عليه. (مشكواة المصابيح ص ۳۳ جلد ۱ كتاب العلم)

﴿۱﴾ قال ابن عابدين بدعة محرمة والا فقد تكون واجبة كنصب الادلة للرد على اهل الفرق الضالة وتعلم النحو المفهم للكتاب والسنة ومندوبة كاحداث نحو رباط ومدرسة وكل احسان لم يكن فى الصدر الاول. الخ (ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)



## د تبليغي جماعت د عقائدو متعلق د يو پمفلټ جواب

**سوال:** د موجوده تبليغي جمات د غلطو عقيدو بيان، په عنوان سره يو دوؤ پاڼړو والا مضمون د پمفلټ په شکل کښې جاري شوې دې چه په هغې کښې ئې تبليغي جماعت جبريه وغيره ثابت کړې. چه هغه يو پير شائع کړې او تبليغي جماعت ته يې بې دينه او ګمراه وئيلي دي. دا مضمون هم درليږم ددې متعلق وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: نامعلوم............يکم ذي الحجه ۱۴۰۲

**الجواب:** تبليغي جمات صالح او ناجيه دي او جبريه نه دي خودې اعتراض کونکي په (الله خالق كل شئ) وما تشاء ون الا ان يشآء الله ﴿۱﴾ ايتونو باندې غورنه دې کړې، د غلط فهمئ يا بدفهمئ په وجه باندې ،،مخلوق پريږدئ او خالق سره جوړ اوساتئ، ،جملوته جبر اووئيل، د موجوده زمانې رسمي پيرانو د خانقاهونو په نسبت په دې جماعت کښې وخت لګولو سره زر اصلاح کيږي پدې جماعت کښې وخت لګولو سره د مونږ د صحيح کولو نعمت حاصليږي او په خندا او قهقهې سره د مونځ د فاسديدلو د لعنت نه حفاظت حاصليږي. وهو الموفق

## په تبليغي جماعت کښې د وخت لګولو والا د پاره شرطونه او آداب

په تبليغي جماعت کښې د وخت لګولو والا دپاره ددې کارونه خيال ساتل ضروري دي. چه دا اعتراضونه ختم شي. (۱) مدرس عالم دې د تعليم په وخت کښې ډير وخت نه ورکوي. (۲) طالب علم دې د تعليم په وخت کښې تبليغ کښې نه ځي. (۳) غريب بال بچه دار چه د خرچې پوره انتظام ئې نه وي هغه دې وخت نه ورکوي. (۴) واده کړې شوې سړې دې د کور والا (ښځې) د اجازت نه بغير څلور مياشتې يا زيات وخت نه ورکوي.

﴿۱﴾ (پاره: ۲۴ سورة الزمر آيت: ۶۲)
﴿۲﴾ (پاره: ۲۹ سورة الدهر آيت: ۳۰)

(۵) د چا مور او پلار چه محتاج وي هغه دي نه ځي دومره ده چه دې سرو له په
شب جمعه او مختصر پروګرامونو باندې اکتفا کول پکار دي. (۶) دا چلې
وغیره به سنت نه ګڼړي او دا خاص طریقه د صحابه کرامو عمل ګڼړئ. (۷) د في
سبیل الله احکامات او فضیلتونه دي په تبلیغ کښې منحصر نه ګڼړي بلکه
جهاد، سیاست، حج او تعلیم دي هم په دې کښې داخل ګڼړي. (۸) تبلیغ،
سیاست، تدریس، خطابت او ناظره وغیره دا ټول خدمتونه تقسیم کار ګنړل د
یو نه دي هم بې توجهي نه کوي. (۹) د جماعت مالدار حضرات دې صرف په
وخت ورکولو باندې اکتفا مه کوئ بلکه هر مناسب ځائې کښې د مقامي
مسلمانانو دپاره په منظم طریقې سره د درس او تدریس انتظام او کړئ. (۱۰)
د ترغیب او ترهیب نه علاوه چه د کومو کارونو علم زده کول فرض عین وي
دهغې زیات اهتمام کوئ. مثلاً (۱) هغه ټولې عقیدې چه د ایمان دارو مدار
دي. (۲) هغه عبادتونه چه فرض عین وي مثلاً مونځ، روژه او د غني دپاره زکوة
او حج، (۳) هغه معامله چه د معاش ذریعه ئې جوړه کړې وي. (۴) او ټول نیک او
بداخلاق او د هغې علامتونه او د حاصلولو او لرې کولو بند وبست کول. ولا
حول ولا قوة الا بالله.

مرشدعالم فقیه العصر حضرت مفتی اعظم مولانا (مفتی محمد فرید عفی عنه
(دامت برکاتهم شیخ الحدیث دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

## د حضرت مفتی اعظم صاحب په هدایاتو باندې
## د علامه شمس الحق افغاني صاحب تقریظ

**الجواب:** د مسنون سلام نه پس عرض دادې چه څه مریض یم په بستره پروت
یم. تبلیغي جماعت د خپل نیک او دیني علاماتو په اعتبار سره بهترین
جماعت دې او داصلاح دپاره یوه موثر ترینه ذریعه ده. او اصل کښې تبلیغ
دعوامو دپاره یوه داسې فریضه ده چه د پخوانه د صحابه کرامو دوخت نه
راروانه ده باقي انتظامي امور داسې دي چه دا د اصل تبلیغ په حق کښې
موجب دقدح نه دی. د سلفو په زمانه کښې دیني تعلیم په جماتونو کښې
جاری وو، نه مدرسې کهلاؤ شوې، نه د حاضرئ رجسټر وو، نه د داخلې



امتحان وو نه سه ماهی، نه شش ماهی، او نه سالانه امتحانونه وو، لیکن د
هغې نه پس مدرسې جوړې شوې نصاب مرتب شو د طالبانو د حاضرئ رجسټر
او د امتحانونو سلسله شروع شوه. چرته یو رباني عالم په دې باندې اعتراض
نه دې کړې او د الحاد او بې دینئ په دې دور (زمانه) کښې د تبلیغي جماعت
کوششونه د هدایت ډیوه ده. تاسو (مفتي اعظم صاحب) چه کوم لس تجویزونه
پیش کړې دي د تبلیغ مشرانو له پکاردي چه دد دې خیال او ساتي چه اسلامي
ټولې شعبې د تعلیم اسلامي دخقوقو دپاره کوم چه د تبلیغ بنیاد دې، وخت
ملاؤشی، او د تبلیغ مشران د انحصار د فتنې نه بچ شی. بلکه د عقائدو،
اخلاقو، فقهي احکام، معاملات او د معاشرې د احکامو علم دې هم حاصل
کړې او تبلیغ دې او کړي لیکن دد دې کمزورو په وجه باندې جاري شوې د تبلیغ
سلسله بندول او په هغوي باندې د اعتراضونو نتیجه د دین دا آخرئ ډیوه هم
مړه کول دي. او د جهالت تیارو ته قوت ورکول دي، په تبلیغ کښې شامل شئ.
او د دوي د کمزورو اصلاح او کړئ.

فقط والسلام: حضرت العلامه مولانا (شمس الحق افغاني) صاحب رحمة الله علیه
۸ محرم الحرام ۱۳۹۲ھ

## د یو کم پنځوس کروړ ضرب اوډ مروجه تبلیغ او جهاد او تعلیم حکم

**سوال:** علمائې کرام او مفتیان عظام د دین د لاندینو مسائلو په باره کښې څه
فرمائی؟ (۱) تبلیغی جماعت والا د الله په لار (تبلیغ) کښې وتلو سره د یو مونځ
د اداکولو اجر او ثواب یو کم پنځوس کروړه ښائی. آیا د قرآن او حدیث نه دا
خبره ثابته ده براه کرم د حدیث تعین او کړئ، او د امو اوریدلې دي چه د
بعضې حدیثونو د ضرب نه دا تعداد حاصلیږي نو آیا دا ضرب ورکول
صحیح دي؟ (۲) او که ضرب ورکول صحیح شي نو بیا خو که یو سړې
مسواک استعمال کړي او مسجد کښې باجماعت مونځ او کړي نو په
مسواک باندې اویا درجې ثواب زیات شو او په مسجد کښې د جمعې مونځ
کولو سره ۲۵ درجې زیات شو نو ۲۵۷۰ شو چه دهغې نه تقریباً ۱۷ لاکهه
پنځوس زره جوړیږي. او که په رمضان کښې ئې ادا کړي نو د یو فرض ادا،

کول د اویا فرضونو د ادا کولو برابر دي.نو ضرب حاصل به یو کروړ ۲۲ لاکهه او پنځوس زره مونځونه جوړ شي نو که اوس دا سړي دا سې تعبیر اوکړي چه د رمضان په میاشت کښې د مسواک استعمال او یو مونځ د جمعې سره کولو باندې یو کروړ دوه ویشت لاکهه پنځوس زره مونځونو ثواب ملاویږي، او چه دغه شان ورله په بیت الله کښې د مونځ کولو ضرب ورکړي نو ربه هم زیات شي نو آیا دغه شان د ضرب دا سلسله صحیح ده؟ (۳) مروجه یو خاص طریقې سره، خروج في سبیل الله د کومې پورې صحیح دې؟ او آیا د مدرسو طالبان د في سبیل الله په ډلو کښې راتللې شي؟ (۴) دافغانستان د جهاد څه حکم دې؟ د افغانستان او کشمیر په عملي جهاد کښې شرکت او په مروجه خروج في سبیل الله کښې کوم یو بهتر دې؟ (۵) دارنګې دا خلق د چلې متعلق دا وائي چه د قرآني چله.وواعدنا موسىٰ ثلاثين ليلة واتممناها بعشرة فتم ميقات ربه اربعين ليلة. نه مراد اعتکاف او بستره اخستل او وتلو ته چله وائي، دوې څه حکم دې؟

المستفتي:حافظ عني الرحمان جامعة العلوم الاسلامیه
بنوری ټاؤن کراچی نمبر۵..۲۲۱۱۱۱۱۹۹۰

**الجواب:** نحمده ونصلي علي رسوله الكريم،اما بعد! د الله تعالى په لاره کښې د مونځ ګزار متعلق د مونځ ثواب یو کم پنځوس کروړه کیدل د حدیث نه ثابت دي.

**قال رسول الله ﷺ و من غزا بنفسه فی سبیل الله و انفق فی وجهه ذالک فله بکل درهم سبعمائة دراهم رواه ابن ماجه ﴿۱﴾ و قال رسول الله ﷺ ان الصلاة و الصیام والذکر یضاعف علی النفقة فی سبیل الله عز و جل بسبعمائة ضعف رواه ابو داؤد فی باب تضعیف الذکر فی سبیل الله.﴿۲﴾ (۷۰۰×۷۰۰۰۰۰=۴۹۰۰۰۰۰۰۰).**

ددې حدیث په عبارت کښې اګر چه د مونځ ګزار ذکر شوي دي لیکن د حدیث د دلالت نه دا ثواب هر هغه چا دپاره ثابت دې چه د اعلاء کلمة الله او ددین اشاعت کوي مثلاً معلم متعلم،مجاهد او مبلغ وغیره، (۲) او چه کله په مسجد حرام کښې دیو مونځ ثواب یو لاکهه درجې زیات دې او چه دا مونځ سره د جمعې وي او دهغې په اودس کښې مسواک هم

**﴿۱﴾(سنن ابن ماجه ص ۱۹۸ باب من جهز غازياً)**
**﴿۲﴾(سنن ابی داؤد ص ۳۴۳ جلد ۱ کتاب الجهاد باب تضعیف الذکر فی سبیل الله)**



استعمال شوې وي نو ددې مونځ ثواب اوولس کروړه او پنځوس زره کیدل څه لرې خبره خونده، یعني داسې شو (۱۰۰۰۰۰ + ۲۵ = ۲۵۰۰۰۰۰ + ۷۰ = ۱۷،۵۰،۰۰،۰۰۰)

(۳) تعلیم او تبلیغ بذات خود فرائض دي او ددې د مدرسو او مرکزونو او جماعتونو په شکل کښې کیدل بدعات مستحدثه مستحسنه دي.﴿۱﴾ او د وخت مصلحتونه دي، او خروج في سبیل الله دواړوته شامل دي او خروج في سبیل الله د یو څیز سره محضوص کول تحریف او جهالت دې. (۴) د افغانستان جهاد شرعي جهاد دې لیکن د جهاد په نسبت سره علم ډیر اهم دې ددې وجې نه فقهاءکرام فرمائي چه فقیه مفتي وغیره به د جهاد دپاره نه ځي ﴿۲﴾ او عمل او اصلاحي پروګرامونه د علم نه کمه درجه لري.,,ولهذا قالوا العلم قبل العمل،،اوهم په دې وجې باندې د مصلحینو استثناء نه ده شوې. (۵) دا چلې وغیره اصلاحي پروګرامونه دي په دیکښې ضروري ده چه د نصوص سره ئې ټکراؤ نه وي لکه چه دمسلم شریف په حدیث کښې ورته اشاره شویده اعرضو اعلي رقاکم، الحدیث ﴿۳﴾ وهو الموفق

## په تبلغي جماعت کښې جان او مال لګول او دیته د بد ویونکي حکم

**سوال:** موجوده زمانه کښې چه د تبلیغ په نوم باندې د اصلاحِ نفس او اُمت کوم کارچه کیږی چه دهغې مرکز په مدرسه عربیه رائې ونډ پاکستان لاهور کښې دې او دهلته نه خپل ملک او بهر ملکونو ته جماعتونه ځی په دې کار کښې جان او مال لګول څنګه دی دارنګې دیته د بد ویونکي څه حکم دې؟

المستفتي:ډاکټر مهربان شاه پبی نوشهره پشاور... ۲۰شوال ۱۴۰۳ھ

**﴿۱﴾قال ابن عابدين بدعة محرمة والا فقد تكون واجبة كنصب الادلة للرد على اهل الفرق الضالة وتعلم النحو المفهم للكتاب والسنة ومندوبة كا حداث نحو رباط ومدرسة وكل احسان لم يكن فى الصدر الاول .الخ(ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة )**
**﴿۲﴾قال الحصكفى وعالم ليس فى البلدة افقه منه فليس له الغزو خوف ضياعهم سراجيه . (الدرالمختار ص ۶۴۲ جلد ۳ كتاب الجهاد)**
**﴿۳﴾(مشكواة المصابيح ص ۳۸۸ جلد ۲ كتاب الطب والرقىٰ)**

**الجواب:** په موجود زمانه کښې تبليغي جمات موثر کار کوي يو نيک او با آثره جمات دې په دې کښې مال او جان لګول عبادت دې ديته بد ويونکې بې خبره معلوميږي خو د بعضې خلقو په کمزورو باندې انکار کول د مسلمان شان دې (۱) وهو الموفق

## د تبليغي جماعت مخالفت کول د دين دشمني ده

**سوال:** د تبليغي جماعت اود تبليغ والاؤ مخالفت څنګه دې؟ حالانکه تبليغ يو ښه کاردې چه په هغې کښې امر بالمعروف اونهي عن المنکرکيږي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد مسکين کيملپور اټک

**الجواب:** تبليغي جماعت يو نيک او با آثره او فعال جماعت دې او ددې زندقه په زمانه کښې ددې جماعت مخالفت کول د دين د شمني ده او ټولو مسلمانانو له په دې کښې تعاون کول پکار دي خو د بعضې کسانو په کمزورو باندې انکار کول د مسلمان شان دې. (۲)

## د تبليغي نصاب ديوبندي او بريلوي اختلافي مسئلو سره کار نشته

**سوال:** په مسجد بلال کښې د تبليغي نصاب روزانه درس کيږي د جمات امام اوڅه کسانو هغه بند کړو، دامام بيان دې چه ددې کتاب ليکونکې او لوستونکې دواړه څما د عقيدې مطابق ګستاخان رسول ﷺ دي. په دې وجه باندې ددې کتاب په جمات کښې کيښودل ناجائز دي او په دې جمات کښې د بريلوي فکر کسانو تعداد ډير دې او دا هم وائي چه د چا څه شک وي نو چرته مفتي ته لاړ شي؟

المستفتي: علم دين، محمد صديق وغيره بلال مسجد کمال آباد راولپنډی ۱۴۱۱۰۱۱۹۷۵

---

(۱) عن جرير بن عبد الله البجلى رضى الله عنه قال انى اتيت رسول الله ﷺ قلت ابايعک على الاسلام فشرط علىّ والنصح لكل مسلم فبايعته على هذا. (صحيح البخارى كتاب الايمان ص ۱۳ جلد ۱ باب قول النبى ﷺ الدين النصيحه)

(۲) عن انس بن مالک رضى الله عنه قال قال رسول الله ﷺ انصر اخاک ظالماً اومظلوماً قال يارسول الله ﷺ هذا ننصره مظلوماً فكيف ننصره ظالماً؟ قال تأخذ فوق يديه.
(صحيح البخارى (تجريد) كتاب المظالم ص ۲۴۴ جلد ۱ باب اعن اخاک ظالماًاو مظلوماً)



**الجواب:** ددې کتاب (تبليغي نصاب) مصنف عالم با عمل اهل سنت والجماعت والا دې ددې کتاب د بريلوي او ديوبندي افکارو اختلافي مسئلو سره څه تعلق نشته په دې کښې متفقه مسئلې دي لهذا ددې کتاب د درس ورکولو نه منع کونکې مناع للخير دې، خطيب صاحب د پاره ضروري دي چه ددې متعصبانه فيصلې نه واپس شي. وهو الموفق

## د تبليغي جماعت د بعضې کسانو د سياست نه ډډې نه کيدل د خپل جماعت د هداياتو نه مخالفت دی

**سوال:** د تبليغي جماعت څه حکم دې؟ بعضې څيزونه ئې د شريعت نه خلاف معلوميږي لکه نفل او مستحبو ته د فرضو درجه ورکول او څوک چه ورسره کار نه کوي دهغوي نه نفرت اود سياست نه بالکل لاتعلقي وغيره وغيره.

المستفتي: عبدالله دکی لورالائي بلوچستان...... ۱۲ رمضان ۱۳۹۵ هـ

**الجواب:** تبليغي جماعت پخپله باندې نيک او با آثره جماعت دې د هغوي نصب العين اصلاحي او تعميري دې خو په دې جماعت کښې داسې کسان هم شته چه د ناپوهي په وجه باندې په سوال کښې درج شوي کارونه کوي چه دا د جماعت د هداياتو نه بالکل مخالف دي نو که تاسو ددوې اصلاح غواړئ نو ددوي مشران او سربراهان خبر کړئ په جماعت باندې اعتراض مه کوئ ځکه چه ددې زندقه او بې دينئ په دور کښې داسې خلق غنيمت دي. وهو الموفق

## د تقسيم کار په طريقې سره د دين خدمت کول غنيمت دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د جماعت امام صاحب د ماسخوتن مونځ نه وروستو) سيرت رسول، اوفضائل بيانوي ليکن دامام صاحب د تبليغي جماعت نه نفرت دې چه د هغې څه مجبورياني او وجوهات دي، او د تبليغي جماعت يو سړې د امام صاحب مخالف دې او دومره ضد ورسره کوي چه د مولوي صاحب د ژبې نه دالله او رسول تعريف اوريدل هم نه غواړي او د سامعينو توجه خپل طرفته کوي او د ګانډهي او

نهرو تذکره کوي د عام رواج مطابق داسړي نيک او پوخ مسلمان دي خو دشريعت په رڼا کښې په دې سړي باندې څه جرم راځی؟

المستفتي: عبدالرحمان راولپنډي

**الجواب:** د پيغمبر عليه السلام دوفات نه پس چه ددين د خدمت دپاره د کارونو تقسيم اوشي نو دا غنيمت دې. نو تبليغيانو له پکار دي چه په مدرسينو، واعظينو او مناظرو والا باندې اعتراض نه کوی. او مدرسينو دپاره ضروری ده چه په تبليغی جماعت باندې اعتراض نه کوی. په دې شرط چه په اعتدال کښې دننه دنه وی. ګينی که څوک هم ددې روېې نه واپس نه شو نو هغه سړې به مناع للخير وي. وهو الموفق.

## د نيکانو خلقو سره د بيعت په ذريعې سره د ظاهر او باطن اصلاح

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نن صبا د تبليغي جماعت په نوم سره مسلمانان د بعضې اصولو په بناء باندې يو يو کور له ځي مسلمانانو سره ملاوېږي صرف په دې نيت باندې چه د الله تعالی احکامات او د پيغمبر عليه السلام طريقې په مونږ کښې او د ټولې دنيا مسلمانانو کښې راشی. نو آيا ددې څه اهميت شته؟

المستفتي: محمد اسماعيل کمال خيل کوهاټ.....۱۵ جمادي الثاني ۱۴۰۲

**الجواب:** باقاعده طريقې سره ددين علم حاصلول دا ډېره اوچته درجه ده (۱) خو ددې نه پس د ظاهر او باطن داصلاح دپاره د نيکانو سره بيعت کول او په تبليغي جماعت کښې د شريکيدلو درجه ده او دا ډېر زيات کار کونکې او با اثره جماعت دې. وهو الموفق

---

(۱) قال الحصكفى واعلم ان تعلم العلم يكون فرض عين وهو بقدر ما يحتاج لدينه. قال ابن عابدين وفى تبيين المحارم لاشک فى فرضية علم الفرائض الخمس وعلم الاخلاص لان صحة العمل موقوفة عليه الخ (الدر المختار مع رد المحتار ص ۳۲ جلد ۱ مطلب فى فرض الكفاية وفرض عين مقدمه) قال ابن عابدين وفى البزازيه طلب العلم والفقه اذا صحت النية افضل من جميع اعمال البر و كذا الاشتغال بزيادة العلم اذا صحت النية لانه اعم نفعاً الخ

(رد المحتار ص ۲۸۹ جلد ۵ فصل فى البيع كتاب الخطر والاباحة)



## د موجوده تبليغ درجه اود والدينو د اجازت نه بغير او د قرض په صورت کښې تلل

**سوال:** (۱) نن صبا تبليغ فرضِ عين دي که فرض کفايه؟

(۲) آيا مروجه تبليغ کښې د والدينو د اجازت نه بغير تلل صحيح دي که نه؟

(۳) قرضداري له اول قرض ورکول پکاردي که تبليغ کښې تلل؟

المستفتي: مولانا محمد زرين تل ضلع کوهاټ.....۲۱۹۱۱۹۸۲

**الجواب:** (۱) بنه خبره داده چه حقيقي تبليغ کول فرضِ کفايه دي او کله کله فرضِ عين هم شي او دا عوامي تبليغ چه په حقيقت کښې يو اصلاحي پروګرام دې دا بدعت حسنه دې. (۱) او مستحب دي لکه چه اسلامي مدرسو کښې تعليم اود صوفيائې کرامو په خانقاګانو کښې تزکيه کول. (۲) که مور پلار ددې بچي د ګټې محتاج نه وي نو بغير د اجازت نه هم د ې جماعت کښې وخت ورکولې شي. الا اذا کان امرد صبيح الوجه ونظيره الخروج لحصول العلم صرح به محمد في سير الکبير (۱) (۳) د قرضداري نه د اجازت اخستلو نه پس تللې شي. (۳)

## د نو جوانانو هلکانو بغير د والدينو نه په تبليغ تلل

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د نوجوانانو بې ږيرې

---

(۱) قال ابن عابدين صاحب بدعة اى محرمة والافقد تكون واجبة كنصب الادلة للرد على اهل الفرق الضالة وتعلم النحو المفهم للكتاب والسنة ومندوبة كاحداث نحو رباط ومدرسة وكل احسان لم يكن فى الصدر الاول ومكروهة كزخرفة المساجد الخ (رد المحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

(۲) فى الهنديه رجل خرج فى طلب العلم بغير اذن والديه فلا بأ س به ولم يكن هذا عقوقاً قيل هذا اذا كان ملتحيا فان كان امرد صبيح الوجه فلابيه ان يمنعه من ذلک الخروج. وايضاً فى الهنديه قال محمد رحمة الله عليه فى السير الكبير اذا ارادالرجل ان يسافر الى غير الجهاد لتجارة اوحج او عمرة وكره ذلک ابواه فان كان يخاف الضيعة عليهما بان كانا معسرين ونفقتهما عليه وما له لا يفى بالزاد والراحلة ونفقتهما فانه لايخرج بغير اذنهما الخ (هنديه ص ۳۶۵ جلد ۵ كتاب الكراهيه الباب السادس والعشرون)

(۳) وفى البزازية وان عليه دين لايخرج الى الغزو بلاادائه وان لم يكن له مال لايخرج الاباذن الدائن. (فتاوىٰ بزازيه موضوع على الهنديه ص ۳۱۰ جلد ۶ الحظر والاباحة)

هلکانو په تبلیغی جماعت کښې د مور پلار نه بغیر تلل څنګه دی؟

المستفتي:شاه جهان کالو خان صوابي......۱۹۸۸\۲\۲۸

**الجواب:** چه هلک بې ډیرې او دلکش وي نو تبلیغي جماعت کښې ئې بغیر د والدینو نه تلل جائز نه دې او که دلکش نه وي او والدین دده خرچې اوخدمت ته محتاج نه وي نو بیا جائز دي ونظیره في الهندیه عن السیرالکبیر ﴿۱﴾ فقط

## بال بچ بغیر خرچې نه پریخودل او تبلیغ کښې تلل

**سوال:** بنده بال بچه دار دې څو بچې ئې سبق وائي ځه خپل وطن بلوچستان ته څو ورځو دپاره لاړم نو تبلیغ والا وائي چه څمونږ سره چلې له لاړشه نو آیا د تبلیغ والا دا وئیل صحیح دي که نه؟ یو مولوي صاحب اووئیل چه د تبلیغیانو په چکر کښې رانشئ اوبل مولوي صاحب وائي چه دوي سره وخت اولګوه. تاسو دا مسئله حل کړئ؟

المستفتي:وزیر محمد شیر شاه کراچی......۲۳ ربیع الاول ۱۴۰۸ه

**الجواب:** تبلیغي جماعت نیک او کار کونکي جماعت دې د عوامو داصلاح دپاره ډیر فائده مند دې لیکن ستا د بچو وغیره خرچه په تا باندې لازم ده نو ته په مقامي وړو وړو اجتماعاتو او شبِ جمعه کښې حصه اخله ځکه چه ستا دپاره د ماشومانو وغیره بغیر خرچې نه پریخودل او وخت لګول ناجائز او حرام دي﴿ ۲ ﴾ دا توکل نه دې بلکه ددین نه ناخبری (نا واقفیت) ده.فقط

﴿۱﴾قال فی الهندیه وقال محمد رحمه الله تعالیٰ فی السیر الکبیر اذاارادالرجل ان یسافر الی غیر الجهاد لتجارة او حج اوعمرة وکره ذلک ابواه فان کان یخاف الضیعة علیهما بان کانا معسرین ونفقتهما علیه وماله لایفی بالزادوالراحلة ونفقتهما فانه لایخرج بغیراذنهما الخ......رجلٌ خرج فی طلب العلم بغیر اذن والدیه فلاباس به ولم یکن هذا عقوقا قیل هذا اذا کان ملتحیا فان کان امردصبیح الوجه فلا بیه ان یمنعه من ذلک الخروج.
(هندیه ص۳۶۵،۳۶۶جلد۵ کتاب الکراهیه الباب السادس والعشرون)

﴿۲﴾لما فی الهندیه قال محمدؒ فی السیر الکبیر اذااراد الرجل ان یسافر الی غیر الجها دلتجارة او حج اوعمرة وکره ذلک ابواه فان کان یخاف الضیعه علیهما بان کانا معسرین نفقتهما علیه وما له لایفی الخ
(هندیه ص۳۶۵ جلد ۵ کتاب الکراهیة الباب السادس والعشرون)



## علماء او صوفیا د خپل کار نه فارغ کول او تبلیغ کښې بوتلل د اعتدال نه خروج دي

**سوال:** نن صبا یو جماعت راوتې دې چه هغې ته تبلیغي جماعت وائي داخلق صوفیاء او علمائې کراموته هم دعوت ورکوي حال دادې چه علماء او صوفیاء د زرګونو خلقو د علم او رشد باعث جوړیږي. نو علماء او صوفیاء ددې خپل عظیم خدماتو نه فارغ کول او په تبلیغ کښې بوتلل څنګه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم افغاني افغانستان....۱۸شوال۱۴۱۰ه

**الجواب:** د نفس اصلاح بغیر د علم او د صالحینو د صحبت نه نه حاصلیږي.﴿ ۱ ﴾ لیکن بیا هم په تبلیغي جماعت کښې د عملي قوت د حصول دپاره وخت ورکول یوه موثره نسخه ده. لیکن د کم علمئ او صالحینو د صحبت نه د محرومتیا په وجه باندې په تحریف او اعتدال نه وتلو ته نزدې خبره ده. وهوالموفق

## تبلیغي جماعت او جهاد اکبر

**سوال:** (۱) تبلیغ والا وائي چه په تبلیغ کښې تللو سره دیو ې روپئ اجر په اووه لاکهه ده او دیو مونځ اجر یو کم پنځوس کروړه باندې ملاویږي. او د ابن ماجه او ابو داؤد دحدیث حواله ورکوي. (۲) او بعض علماء وائی چه د اوو سوو اجر د مجاهد بالمال دپاره دي او د اووه لکهو او یوکم پنځوس کروړو اجر مجاهد بالنفس سره خاص دي دا خبرې څنګه دی؟

المستفتي: مولوي عبدالقادر خال ضلع دیر..۱۵رمضان المبارک ۱۴۰۸ه

**الجواب:** د في سبیل الله، الفاظ،حج، تعلیم، تبلیغ ټولو ته شامل دی،چونکه په توره باندې جهاد دجهاد مع النفس فرع ده،لهٰذا دې ته جهاد اکبر وئیلې شی.چه دا ناقابل انقطاع دې،نوتبلیغی او صوفي حضراتو له پکاردي چه اول جهاد اصغر یعنی د کافرانو سره جنګ او جهاد اوکړی دهغې نه دفراغت نه روستو دې په جهاد اکبر (تبلیغ او

﴿۱﴾قال ابن عابدین الطریقة هی السیرة المختصة بالسالکین الی الله تعالیٰ من قطع المنازل والترقی فی المقامات ......والعلم هو الاعتقاد الجازم المطابق للواقع ومنه فعلی وهو مالا یؤ خذ من الغیروانفعالی ما اخذ من الغیر .(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۲۲جلد۳ مطلب فی حال الشیخ الاکبر )

ذکر کښي مشغول شی، عملاً بهٰذه المقالة.

(**نوټ**) هذه المقاله قال العسقلانی انها من کلام ابراهیم بن عبله و قال العراقی رواه البیهقی عن جابر مرفوعا باسناد ضعیف کما فی موضوعات کبیر. ﴿۱﴾ و هو الموفق

## د تبلیغي جماعت د نوم لیکلو نوې طریقه د وخت مصلحت دي

**سوال:** تبلیغي جماعت یوه نوې طریقه اختیار کړې ده او هغه دا چه د وعظ نه وروستو خلق په نوم لیکلو باندې مجبور کوي لهذا ددې شرعي حکم څه دې اوددوي ددې دعوت د طریقې څه حکم دې؟

المستفتي: عبدالستار عیدک وزیرستان..... ۱۷رجب ۱۴۰۲هجري

**الجواب:** په دې خاص طریقې سره دعوت نه د شریعت مطلوب دې او نه په شریعت کښې ممنوع دې البته د وخت مصلحت دې او یو اصلاحي پروګرام دې. ﴿۲﴾ چه د خواصو او عوامو دپاره فائده مند دې. وهو الموفق

## په مسجدحرام کښي د مونځ ثواب د تبلیغ د ثواب نه لاکهه درجې زیات دې

**سوال:** (۱) بعضې تبلیغیان وائي چه په تبلیغ کښې د مونځ کولو ثواب په بیت الله کښې مونځ کولو نه زیات دې. (۲) او دا هم وائي چه د یو تبلیغي درجه د پنځوسو ۵۰ صحابه کرامو نه بهتره ده.

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** (۱) په تبلیغ کښې چه کوم د مونځ ثواب دې په مسجد حرام کښې ددې لاکهه چنده زیات ثواب دې ځکه چه حاجي او عمري والا د الله تعالی په لاره کښې هم دي ددې نه علاوه دبیت الله ثواب هم دې. (۲) دداسې خلقو د وجې نه جماعت بدنام دې ددې متعلق د تبلیغ مشران خبر کړې. وهو الموفق

﴿۱﴾ حدیث: رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر قالوا وما الجهاد الاکبر؟ قال جهاد القلب. قال العسقلانی فی تسدید القوس هو مشهور علی الالسنة وهو من کلام ابراهیم بن عبله فی ,,الکنی،، للنسائی قلت ذکر الحدیث فی الاحیاء ونسبه العراقی الی البیهقی من جابر وقال هذا اسناد فیه ضعف. وروی الخطیب..........قالوا وما الجهاد الاکبر؟ قال مجاهدة العبد هواه.
(الموضوعات الکبیر للسیوطی ص۱۲۷ حرف الراء رقم حدیث: ۲۸۰)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین ومندوبة کاحداث نحو رباط ومدرسة وکل احسان لم یکن فی الصدر الاول.
(ردالمحتار ص۳۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)



## د ښځو د تبلیغ دپاره وتل د خپلو محارمو سره جائز دي

**سوال:** مفتیان شرع او علمائې کرام څه فرمائي په دې مسئله کښې چه شریعت کښې د ښځو دپاره د کورونو نه په تبلیغ کښې وتل جائز دي که نا جائز؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد انور شاه ګدا خیل کوهاټ. ۲۷۱۱۱۱۹۸۹

**الجواب:** په موجوده زمانه د عوامو بلکه د خواصو په کورونو کښې هم اصلاحي نظام دنیشت برابر دې لهذا په دې زمانه کښې اصلاح او علم دین دحصول دپاره د زنانو د کورونو نه وتل چه د شرائطو او قواعده سره وي قابل د تحسین کار دې.

یدل علیه ما رواه الامام البخاری فی صحیحه ص ۲۰ ج ۱ عن ابی سعید الخدری رضی الله عنه قال قال النساء للنبی ﷺ غلبنا علیک الرجال فاجعل لنا یوما من نفسک فوعد هن یوما لقیهن فیه فوعظهن و امرهن الحدیث ﴿۱﴾

او بیا چه کله ورته بیان کونکې هم زنانه وي نو بیا خو د شاباسي لائق دي البته چه کله د فتنې ویره وي نو د خاوند یا محرم موجود ګي ورسره بیا ضروري ده. کما عند السفر الشرعي لحدیث ورد بذالک رواه البخاري وغیره ﴿۲﴾

(**نوټ**) د زنانو حاضریدل د سرو په مجلسونو کښې د فقهائې کرامو د تصریح مطابق ممنوع دي ﴿۳﴾ والله اعلم بالصواب

## د زنانو په تبلیغ کښې تللو په ځائې په کورونو کښې د اصلاح کار ډیر احتیاط والا دې

**سوال:** په دې زمانه کښې د تبلیغ دپاره د زنانو خپل کور نه وتل او نورو کورونو ته تللو اجازت شته که نشته؟ د صحابه کرامو په زمانه کښې داسې کار شوې

﴿۱﴾ (صحیح البخاری ص ۲۰ جلد ۱ کتاب العلم باب هل یجعل للنساء یوم علی حدة فی العلم)

﴿۲﴾ عن ابی سعید رضی الله عنه وقد غزا مع النبی ﷺ ثنتی عشرة غزوة قال اربع سمعتهن من رسول الله ﷺ فاعجبتنی وانقننی ان لاتسافر امرأة مسیرة یومین لیس معها زوجها او ذو محرم الخ. الحدیث
(صحیح البخاری ص ۲۵۰ جلد ۱ ابواب العمرة باب حج النساء)

﴿۳﴾ قال الحصکفی ویکرة حضور هن الجماعة ولو لجمعة وعید ووعظ مطلقا ولو عجوزاً لیلاً علی المذهب المفتیٰ به لفساد الزمان.
(الدرالمحتار ص۴۱۸ جلد ۱ قبیل مطلب هل الاساءة دون الکراهة اوافحش منها باب الامامة)

که نه؟ اوداسې کار چه ښځې د خپلو خاوندانو سره نورو ښارونو ته د تبلیغ اجتماع دپاره درې ورځو دپاره ځي او هلته درې ورځې اجتماع کښې تیروي او هغوي دیته د کامیابۍ ذریعه وائي نو د شریعت په دې کښې څه حکم دی؟

المستفتي: حافظ شیر دارعلی شاه چوک بازار بنون..... ۱۴۰۱\۶\۲۶ه

**الجواب:** د ښځو خپلو خاوندانو سره په تبلیغ کښې وتل نه مطلوب دي او نه ممنوع دي. البته زیات احتیاط دیکښې دې چه خاوندان او محارم دد ي زنانو د اصلاح انتظام په کورونو کښې اوکړي چه د حقوق الازواج د پامال کیدلو مسئله رانشي ځنګه چه د حقوق الزوجات د پامال کولو جرم د دین په صورت کښې رواج دې او شائع دي. وهو الموفق

## د بې دینه ماحول والا زنانو د پاره د محرم په ملګرتیا کښې په تبلیغ کښې تلل ضروري دي

**سوال:** آیا په شریعت کښې د تبلیغ دپاره د مستوراتو جماعت ویستل جائز دي که نه؟ المستفتي: ما ستر رضاء الله ضلع مردان. ۱۷ شعبان ۱۴۱۰ه

**الجواب:** په کومو کورونو کښې چه د بې دینۍ ماحول وي د هغې کورونو د مستوراتو دپاره ضروري دي چه د خاوند یا محرم په ملګرتیا کښې سره د شرائطو نه ﴿۱﴾ داسې اصلاحي مجلسونو کښې حاضرې شي.

## د مونځ نه فوراً پس تبلیغي نصاب لوستلو سره خلقو کښې پابندي لازمیږي یا نه؟

**سوال:** څمونږ د جمات امام د تبلیغي جماعت سره تعلق لري هغه د ماز یګر مونځ نه پس سمدستي تبلیغي نصاب بیانوي. او خلق د دعا غوښتلو په انتظار کښې د مجبورۍ نه پابندوي او ضروري کارونه ئې پریخي وي څوک دکاندار وي څوک ناجوړه وي آیا د امام دا کار ممنوع نه دي؟

المستفتي: حاجي سید اسماعیل اټک... ۱۷\۸\۱۹۸۳

﴿۱﴾ قال الشیخ الفهامه فرید العلماء محمد فرید دامت فیوضهم هل یجوز خروجهن فی الجماعة التبلیغیة اختلف فیه العلماء قال بعضهم لا یجوز لهن الخروج کما لم یجز لهن الخروج الی المساجد سواء اذن لهن الازواج اولم یاذنوا. لعدم رعایتهن الشرائط من الاجتناب عن التعطر ولباس الزینة. والاجتناب عن اختلاط الرجال عند الدخول والخروج وهو واضح وعلیه الفتوی. والامر ان صلاة الجماعة اهم من التبلیغ المروج المستحدثة فی عهدنا وقال بعضهم یجوز لهن الخروج اذاکان باذن الزوج تفلات مجتنبات عن لباس الزینة والتعطر واختلاط الرجال فما دامت النساء راعت هذه الشرائط فلاضیر فیه لانه خروج للعلم باذن الزوج وهو جائز کما فی الخانیة وقال علیه الصلاة والسلام طلب العلم فریضة علی کل مسلم و مسلمة رواه ابو حنیفة رحمة الله علیه قلت وفی عهدنا کثر الفساد والجهل عن الدین (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**الجواب:** دعاکول او تبلیغي نصاب اوریدل بهتر کارونه دي لیکن واجب کارونه نه دي نو چه چاته ضرروت وي هغه دې ددعا کولو نه پس ځي بغیر د دعا نه هم تللې شئ دوه درې کسانو په وجه باندې ټول خلق د خیر د کارنه محرومه کول ښه کار نه دې. فقط

## د حضور ﷺ د وفات نه پس د تبلیغ فریضه په امت باندې لازم شوه.

**سوال:** څمونږ په علاقه کښې تبلیغي جماعت والا راځي نو دهغوي مخالف یوسړې اووئیل چه کله رسول الله ﷺ د دنیا نه رخصت شو نود تبلیغ کار هم ختم شو ځکه چه الیوم اکملت لکم دینکم.. الایة، د الله تعالی فرمان دې البته صرف تذکیر باقي دې چه د علماؤ کار دې ددې مسئلې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: عبدالاحد افغانستان... ۱۵ شعبان ۱۴۰۵ه

**الجواب:** د حضور ﷺ د وفات نه پس د تبلیغ فریضه په امت باندې لازم شوه.﴿۱﴾ په الیوم اکملت لکم دینکم ایة ﴿۲﴾ کښې د اتمام دین تذکره ده خو دا پکښې نشته چه ټول امت ته مکمل دین علم حاصل شو او هیڅ یو کس هم جاهل پاتې نه شو. فا فهم.

(بقیه حاشیه گزشته صفحه) فی العوام وفی نساء الخواص فاذا انسد ابواب الفساد برعایة الشرائط المارة فای شئی یمنع من الخروج فیها. والحال ان هذا الخروج خروج للعلم والزوج جاهل او لایهتم لتعلم نساءه. قال قاضی خان فی فصل حقوق الزوجیة واذا ارادت المرأة ان تخرج الی مجلس العلم بغیر اذن الزوج لم یکن لها ذلک فان وقعت لها نازلة فسألت زوجها وهو عالم فاخبرها بذلک لیس لها ان تخرج بغیر اذنه وان کان الزوج جاهلا وسأل عالما عن ذلک فکذلک وان امتنع الزوج عن السوال کان لها ان تخرج بغیر اذنه لان طلب العلم فی مایحتاج الیه فرض علی مسلم ومسلمة فیقدم علی حق الزوج وان لم یقع لها نازلة وارادت ان تخرج الی مجلس العلم لتتعلم مسائل الصلواة والوضوء فان کان الزوج یحفظ تلک المسائل ویذکرلها ذلک لیس لها ان تخرج بغیر اذنه فان کان الزوج لایحفظ المسائل فالاولیٰ له ان یأذن لها بالخروج فان لم یأذن فلاشئ علیه ولا یسع لها ان تخرج بغیر اذنه مالم یقع لها نازلة انتهیٰ ما فی قاضی خان وبالجملة ان الخروج لطلب العلم جائز باذن الزوج لاسیما اذا کان بمرافقته والخروج عند النازلة جائز بلا اذن الزوج. (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ص ۱۷۰ جلد ۵ باب ما جاء فی خروج النساء فی الحرب)

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ و لتکن منکم امة یدعون الی الخیر. (پاره: ۴ سورة ال عمران رکوع: ۲ آیت: ۱۰۴) وقال الله تعالی کنتم خیر امة اخرجت للناس (پاره: ۴ سورة ال عمران رکوع: ۳ آیت: ۱۱۰)

﴿۲﴾ (پاره: ۶ سورة المائدة رکوع: ۵ آیت: ۳)

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم

ان الشیطان ذئب الانسان
کذئب الغنم یاخذ الشاذة
والقاصیة والناحیة
وایاکم والشعاب
وعلیکم بالجماعة والعامة.

[الحدیث]



# فصل
# فی ما یتعلق
# بالفرقة المودودیة

...

# فصل فی ما یتعلق بالفرقة المودودية

## د مودودي د کتابونو مطالعه زړه د تیارونه ډکوی

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) جماعت اسلامي کوم چه د مودودي صاحب جماعت دې دده کتابونو کتل پکاردي که نه؟ او په هغې باندي عمل کول پکاردي که نه؟ ډیر خلق دا وائي چه دا جماعت د دیوبندیانو خلاف دې نو هغه کومې خبرې دي چه هغې کښې ئې مخالفت دې؟ (۲) د مو دودي صاحب مسلک څه دې هغه عالم دې یا مقلد او که غیر مقلد دې؟ دهغه کتابونو مطالعه څنګه ده جائزده که ناجائز؟ د مودودي مسلک او عقیدي والؤ پسې مونځ کیږي یا نه؟

المستفتي: حافظ سید احمد شاه پار هوتي مردان.... ۱۲ جون ۱۹۷۰ھ

**الجواب:** مودودي صاحب د یوبندیانو خو څه کوې د ټولو اهل سنت والجماعت د مسلک نه ئې مخالفت کړې مثلاً تارک الحج ته لکه دخوارجو پشان کافر وئیل، د ایمان او کفر په مینځ کښې لکه د معتزلؤ دواسطې قائله کیدل، ضروریات دین نه منکرینو باندي د کفر فتوې لګولو نه ډډه کول، د خوارجو پشان، د صَحابه کرامو پشان کښې باریک ګستاخیاني کول، د انبیاء علهیم السلام متعلق زبان درازي کول، په ګنده معاشره کښې شرعي سزا ګانو (حدودو) ته ظلم وئیل، تقلید شخصي ګناه ګنړل، چه دخیر القرون دائمه دپاره وی. ګینی دځان دپاره مقتداء کیدل حال او زبان قال سره صحیح ګنړی، تمام یا اکثر علمائي دين باندې اعتراضونه کول، وغیره وغیره (۲) مو دودي صاحب پخپله د شر القرون غیر مقلد دې دده د کتابونو مطالعه زړه د تیارو نه ډکوي مو دودي صاحب کافر نه دې لیکن د کفر خطرې پرې شته، او خواهش پرست او بدعتي خو خامخا دې نو په دې وجه دده او دده هم خیال خلقو پسې اقتداء نه کول ضروري ده، دده په ځائي یوصحیح العقیده کس پسې اقتداء کول پکار دي. ﴿۱﴾ فقط

﴿۱﴾ نوټ: د امت لوئي لوئي عالمانو د مودودي صاحب په لغزشاتو باندې نیول کړی او د مستقل رسالو او کتابونو په ذریعې سره ئې ددې فتنې مخ نیوې کړې، یو څو کتابونه دا هم دی (۱) مودودي عقائد اور دستور، د مولانا حسین احمد مدني صاحب. (۲) فتنه مودودیت، د مولانا الحاج محمد زکریا مهاجر مدني کاندهلوی (۳) حق پرست علماء کی مودودی سے ناراضگی کے اسباب، د علامه شیخ التفسیر احمد علي لاهوري (۴) حضرت امیر معاویه او تاریخي حقائق بجواب خلافت وملوکیت. د مولانا تقي عثماني صاحب (۵) مودودیت، رافضیت وغیرهم.



## خلافت وملوکیت او د اسلام نه د اوړیدلو جذبه

**سوال:** السلام علیکم: مودودي صاحب په خپل کتاب خلافت و ملوکیت کښې لیکلي دي چه حضرت عثمان ﷺ د افریقې د غنیمت نه پنځه لاکهه روپې مروان له ورکړې (ص ۱۰۶)، د حضرت عائشه ﷺ وتل د یو خلیفه په مقابله کښې دا اجتهادي غلطي نه وه. بلکه دائې په قصد باندې کړې وه. دې ته اجتهادي غلطي نشي وئیلې کیدې (ص ۳۴۳) سستا ایډیشن صفحه ۴ د ملوکیت په زمانه کښې (امیر معاویه رض نه وروستو) ټولو مسلمانانو بادشاهانو د حلال او حرامو هیڅ امتیاز نه کولو (ص ۱۷۳) دې عبارتونو په مونږ کښې د اسلام نه د اوړیدلو جذبه پیدا کړې، نعوذبالله آیا داسې په رشتیا شوې دي. براه کرم! ددې شکونو او وسوسو تسلي بخش جواب راکړې چه مونږ نورو خلقو ته هم تسلي ورکړو؟

المستفتي: محمد عظیم چلاس ګلګت ایجنسی... ۲۲ ربیع الاول ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** د خلافت وملوکیت لوستلو سره په صحابه کرامو ﷺ بد ګمانه کیدل لازم اونه جدا کیدونکې نتیجه ده یعني دبې علمه اود بې خبره) خلقو دپاره په دې وجه ددې د مطالعې نه ځان ساتل ضروري دي. او په دیکښې چه مودودي صاحب کوم خرافات لیکلي ددغې تفصیلي جواب په ,,البلاغ،، رساله کښې اوګورئ. ﴿۱﴾ فقط

## د مودودی صاحب منشور او د حدودو په باره کښې زړه ورتیا

**سوال:** علمائي کرام ددې مسئلې په باره کښې څه فرمائي چه څمونږ په ملک پاکستان کښې جماعت اسلامي د اسلامي قانون د جاري کولو دعویدار دي لیکن ددې جماعت د سربراه ابوالاعلی مودودي نظریات د تفهیمات ص ۲۸۱، ۲۸۰، جلد ۲ نه واضحه کیږی چه په کومه علاقه کښې فحاشي عُریاني او معاشي خرابي عام وی هلته کښې حد زنا، حد سرقه، او حد قذف وغیره جاري کول ظلم دې، ددوي په منشور کښې هم چرته د قرآني سزا ګانو د جاري کولو ذکر نشته البته د منشور ص ۱۵ د قانوني اصلاحات عنوان

﴿۱﴾ د خلافت د ملوکیت په جواب کښې اوس ددې مضمونو نو یوه مستقل رساله شائع شویده هغه مطالع کړئې پخپله به د مودودیت فتنه راښکاره شي. حضرت امیر معاویه او تاریخي خلافت وملوکیت تالیف د جټس شریعت کورټ مفتي محمد تقي عثماني کراچی..(وهاب)

لاندې د فع نمبر ۲ کښې داسې لیکلی دي چه زنا، شراب، عریاني، فحاشي وغیره د بندولو دپاره به بلا تاخیر قوانین جوړولې شی، ګویا چه دا جماعت قراني حدود دتعزیراتو په صف کښې راولی او په هغې کښې د ترمیم اراده لري، نو په دې جماعت کښې شرکت او ورسره د مدد کولو څه حکم دې؟

المستفتي: سید حامد علی لیاقت پور رحیم یارخان...... ۷۱۴۱۱۹۷۰

**الجواب:** په دې کښې شک نشته چه دحکومت دطرفنه په بې حیایئ باندې پابندی نشته بلکه ددې قیادت کوي لیکن حکومت څوک په بې حیایئ باندې مجبور کوي نه.هر سړې په خپل اختیار او خوښې سره بې حیائی کوي، لکه چه الله تعالی شیطان پیدا کړو او د ګمراه کولو قدرت ئې ورته ورکړې دې لیکن هغه څوک مجبور کولې نشي.هرسړې په خپل اختیار اومرضئ سره دهغې په دام کښې راځی.نولکه څنګه چه دالله تعالی ګمراهانو ته په دنیا یا آخرت کښې عذاب ورکول عدل دې ظلم نه دې سره ددینه چه د ګمراهئ د اسبابو پیداکونکې والا هم الله تعالی دې نو بعینه دغه شان د حکومت دا حد جاري کول به عدل او انصاف وي. ځکه چه حکومت څوک مجبور کوی نۀ، چه ته بې حیائی اوکړه، حقیقت دادې چه مودودي صاحب دیهود علماؤپشان حدود منسوخ کول غواړي دبعضې وختی مصلحتونو په بنیادباندې او دې داسې کول په خپل فاسد زعم کښې د اسلام سره شفقت او همدردی کوي، لیکن ددې مثال دهغه بوډئ دې چه هغې یو شاهي باز د خپل غلط شفقت په وجه باندې بیکاره کړې وو ،لهذا په مودودي صاحب او دهغه په هم خیالوباندې د کفر سخته خطره ده. د هغوي سره د شرکت او تعاؤن نه خلق منع کول د هر مسلمان د پاره ډیره ضروري خبره ده.﴿۱﴾

**د مودودي صاحب آئین اود قادیانیانو د پاره د ختم نبوت په عقیده کښې سوري کول**

**سوال:** محترم شیخ الحدیث حضرت مولانا عبد الحق رحمه الله د مسنون سلام نه پس عرض دادې چه اوس اوس د جماعت اسلامی شائع شوې ترمیمي آئین د نظر نه تیر شو دهغې د شق نمبر ۱۱ عبارت داسې دې.کوم خلق چه د محمد رسول الله ﷺ نه پس یو بل نبي مني او دهغه په نبوت باندې ایمان نه راوړونکو ته کافران وائي هغوي دې غیر مسلم اقلیت اوګرځولې شي

﴿۱﴾قال الله تعالیٰ ولا تعاونوا علی الاثم و العدوان(پ: ۲ سورة المائده رکوع: ۱ آیت : ۲ )



ځکه چه دهغوي مسلمانان تسلیمولو معني دا ده چه پاکستان غیر مسلم په اکثریت کښې دې. ددې نه ظاهره ده چه د کلام رُخ مرزائی فرقې طرفته دې او ددې عبارت ښکاره مطلب دادې چه مرزائي ددې وجې نه کافر دې. چه هغه په غلام احمد قادیاني باندې ایمان نه راوړو نکو ته کافران وائي او که قادیاني ته نبي نه وئیلو والا خلقو ته کافر وئیل پریږدي نو بیا دویته نه کافران او مرتد وئیلې شي او نه ددوي د اقلیت ګرځولو ضرورت شته.داد یوې فتنې اونوې عقیدې ایجاد په نظر راځي چه په اول ځل دعامو مسلمانانو په ذهنونو کښې د اخباراتو په ذریعه اچولې شوې چه دعامو مسلمانانو نه د ختم نبوت د عقیدې هغه همت ختم شي نو ددې وجې نه یو څو خبرې د غور او فکر طلب دي. ⑴ آیا د اسلام په دائره کښې د اوسیدو دپاره دهر مسلمان دپاره دا ضروري نه دي چه دهغه ایمان او عقیده وي چه دحضور ﷺ نه پس د نبوت دعوٰی کولو والا اوهغه نبي منلو والا بغیر د څه شرط نه کافران دی؟ ⑵ که یو سړې داسې عقیده ساتي چه د نبي ﷺ نه پس بل څوک نبي منلو والا کافران نه دي.نو ترڅو پورې چه هغه په خپل نبي باندې ایمان نه راوړلو والا کافران او نه ګنړي نو داسې سړې پخپله د حضور ﷺ په نبوت باندې ایمان لري یا نه؟

المستفتي: عبد الحئ لیفټ بینک بیراج کالوني حیدرآباد سنده ۱۲۲ذیقعده ۱۳۸۹

**الجواب:** مودودي صاحب د لاهوریانو متعلق صراحتاً لیکلي وو چه دا فرقه کافره نه ده او اوس د قادیانیانو متعلق اشاره واضحه کوي چه دا فرقه هم کافره نه ده. نو په مودودي صاحب باندې تعجب دې چه د ضروریاتو او قطعیاتو نه انکار کونکي هم دده په نزد کافران نه دي. حقیقیت دادې چه مودودي صاحب د کفر مفهوم او مطلب نه پیژنی ګني نو دا غلط او غیر احتیاطي اقدامات به ئي نه کول، بغیر شک شبهې نه دخاتم النبین نه پس د نبي منلووالا غیر مشروط طور کافر دې.⑵ داسې کس زر تر زره کافر کیدو والا دې. دکفر سخته خطره ده ورته. ⑶ دضروریاتو ددین نه انکار کولو والا ته به کافر وئیلې شی﴿۱﴾ برابره خبره که ده چا ته کافر وئیلې وي او که نه. فقط

شیخ الحدیث مفتی اعظم فقیه العصر(محمد فرید عفی عنه) دار العلوم حقانیه اکوړه خټك

﴿۱﴾ قال العلامه ابن نجیم و الکفر شرعاً تکذیب محمد ﷺ فی شئی مما یثبت عنه ادعاء ه ضرورةً. (البحرالرائق ص ۱۱۹ جلد ۵ باب احکام المرتدین )

## مودودي صاحب داجماع اُمت نه اعراض کوونکي دي

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښې څه فرمائي چه دهغه متعلق د ۱۱۲ علماؤ فتوي د پکهلي نومي ځائي خطيب لوستلي ده. ددينه علاوه د مولانا نصير الدين غورغشتوي صاحب فتوی د محرف قران د ارشادات نصيري په نوم باندې او س هم په بازار کښې موجود دي نو د دومره لويو علماؤ دفتوؤ په رڼا کښې ستاسو څه رائې ده؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبد الرحيم طوروی صوابی مردان... رمضان المبارک ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** په مودودي صاحب باندي د کفر ډيره سخته خطره ده ځکه چه دحضرت عيسی عليه السلام بغير پلار نه د پيدا کيدو دليل قطعي الثبوت او قطعي الدلالت دي. قال الله تعالی لم يمسسني بشر ولم اک بغيا، الاية (۱) او دپلولو لاهوريانو دا عقيده ده چه حضرت عيسی عليه السلام ديوسف نجار ځوئي دي. (صرح به محمدعلی لاهوری في تفسير بيان القران ص ۳۱۳ جلد ۱) او لاهوري ډله د مودودي صاحب په نزد باندي کافره نه ده نو چه ديو قطعي امر نه منکر د مودودي صاحب په نزد کافرنه دي نومودودی صاحب د اجماع امت نه اعراض کولو والا دي اود ضروریاتو ددين نه اعراض کولو والا دي ځکه څنګه چه توحيد او رسالت ددين د ضروریاتو نه دی دغه رنګې د ضروریاتو نه دمنکر سړې کفر او کافر کيدل هم ددين د ضروریاتو نه دي. (وما نقل عن بعض الاکابر فمحمول علی انه لم يبلغه تفصيل عقائدهم) فقط

فقيه النفس مفتی اعظم (محمدفريد عفی عنه) شيخ الحديث وشيخ طريقت دار العلوم حقانيه

## د مودودي صاحب متعلق فتوي باندې په دويم ځل سوال

**سوال:** محترمي ومکرمي حضرت شيخ الحديث صاحب دامت برکاتکم. السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته! ځه ستاسو ډيرد پخوانه عقيد تمنديم د کلمة الحق داوچتوالي او ددين دخورولو دپاره ستاسو کوششونه د ډير تعريف قابل دي. په دې پر فتن زمانه کښې ستاسو خاموشي او د احتياط نه ډکه پاليسي ستاسو په عظمت باندې دليل دي ليکن يوه خبره چه ددې ليکلو باعث جوړه شوه. هغه د دار العلوم حقانيه د صدر مرکزي دار الافتاء يو بې احتياطه فتوی ده چه بيګاه شپه مې د نظرنه تيره شوه. مفتي صاحب فرمائيلي دي چه په مودودي صاحب باندې د کفرسخته خطره ده او وجه ئې داخودلې ده چه هغه لاهوري فرقه

(۱) (پ: ۱۶ سورة المريم رکوع: ۴ آيت: ۱۹)



کافران نه ګنړي. نو په دې طريقه سره هغهٔ ددين د ضروریاتو او اجماع امت نه اعراض کوي. او ګورئ فتوي نمبر ۴۸۸۳، مفتي صاحب ته چه د مودودي صاحب د کوم عبارت نه دا معلومه شويده چه هغه لاهوريانو ته کافران نه وائي نو هلته خو هغه په صراحت سره دا هم ليکلي دي چه هغوي مسلمانان هم نه ګنړي بلکه هغه د کفر او اسلام په مينځ کښې زوړند دي. نو معلومه نه ده چه د مفتي صاحب نظرد خط په دې حصه باندې ولې نه دې پريوتې چه لاهوري فرقه د مودودي صاحب په نزد مسلمانان هم نه دي نو کيديشي دا وجه وي چه بيا به مفتي صاحب ته دقلم چلولو موقع په لاس نه ورتلله او نه ئې عوام دهغه خلاف رااوچتولې شول. خو زيات نه زيات چه دهغه په عبارت باندې کوم علمي اعتراض کيدلو. دا اووئيل چه مودودي صاحب لاهوريان کافران نه ګنړي په دې سره ئې ددې تاثر کوشش کړې چه مودودي صاحب لاهوري فرقه مسلمانان ګنړي. حال دادې چه دا خود توجيه القائل بمالا يرضي قائله. نه علاوه ددروغو او بهتان په ضمن کښې هم راځي دي سلسله کښې ما مودودي ته يو خط هم اوليکلو چه دهغې جواب هغه راکړو چه ځه ئې درليږم. دهغې نه هم د مفتی صاحب په بې احتياطه چلن باندې رڼا پريوځي. بهرحال بيا دپاره دداسې بې احتياطه فتوې نه ځان ساتل پکار دي. دجواب په انتظار کښې به يم؟

نياز مند: عبد العزيز مظاهری محله پير مبارک شاه کوهاټ شهر

## د مودودي صاحب د خط متن

محترمي ومکرمي السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته! ستاسو خط ملاؤ شو. د لاهوريانو مرزايانو د کافر کولو په معامله کښې مونږدهغې اصولو قائل يو کوم چه علمائي کرام په ژبه باندې خو ډير وائي ليکن عمل پرې نه کوي يعني که په سلو کښې يو کم سل دليلونه د چا د کفر وي او يو دليل داسې وي چه دهغې په وجه باندې د کفر نه بچ کيديشي نو بچ کيدل پکار دي. لاهوري فرقه چه پخپله باندې خپله عقيده بيانوي هغه دا ده! چه مرزا غلام محمد بالکل د نبوت دعوی نه وه کړې نو څه شک نشته مونږ. ته خو د مرزا د نبوت دعوی ثابته شويده ليکن مونږ. ته يا بل چاته هم ددې وينا حق حاصل دي چه د لاهوريانو عقيده هغه نه ده کومه چه وائي بلکه هغه ده کومه چه مونږه دهغوي عقيده اوګرځوو. چه کله هغوی د نبوت

مدعي نه ګرځوي نو هغه ته دمجدد یا مهدي وئیلو په بناء باندې مونږ د هغوي تکفیر نه شو کولي. البته مونږ هغوی ته منافق وایو. ځکه چه د کوم کس د نبوت دعوی صریح په خط کښې لیکلې موجود ده، او د هغې منلو والا ۹۸ فیصد (په سلو کښې اته نوي) سړی هم دهغه د تقریرونو نه دا معلوموي چه هغه د نبوت مدعي وو او عام لوستونکې هم دهغه د خطونو نه دا معنٰی اخلی. دهغه متعلق دا وئیل چه هغه د نبوت مدعي وؤ او بیا هغه مجدد او مهدي ګڼړي او دهغوي تصدیق کول اودهغوي دقول صداقت تردې حده پورې مشتبه جوړوی چه مونږ دهغه متعلق ددې رائې په قائمولو کښې حق بجانب یو چه هغوي دده د نبوت په دعوي کښې د منافقت نه کار اخلي. بیا هم چه د منافق او کافر په مینځ کښې کوم اصولی فرق دې هغه مونږ نظر انداز کولې نشو، کوم کس چه د کفر د قول نه براءت ظاهر کړې دهغوي تکفیر هم نشي کیدلې او که دقرائنو نه داسې معلومیږي چه د هغوي دا براءت په اصل کښې چل ول دې نو مومن هم ورته نشي وئیلې کیدلې اوهم داد منافق مقام دې په قران کښې داسې خلقو ته منافقان وئیلې شوې دي. چه په هغوي کښې دننه ایمان نه وي لیکن په اظهار سره هغوي خپل کفر پټوي.

(دا جواب ځما د هدایت مطابق دې) دستخط: غلام علی

دستخط ابوالاعلی فقط معاون خصوصي مولانا سید ابوالاعلی مودودي!

**د حضرت مفتی صاحب د طرف نه تفصیلی جواب**

**الجواب:** محترم المقام. السلام علیکم. حضرت شیخ الحدیث صاحب! (مولانا عبدالحق صاحب رحمة الله رحمة واسعة) ستاشکایت نامه دجواب درکولو دپاره راکړه، تا د مودودي صاحب په باره کښې ځما فتوي بې احتیاطه ګرځولې ده نوستا او ستا پشان نورو حضراتو د پاره چه د مودودي صاحب نه متاثره وي او هغه په زبان حال سره د غلطئ نه معصوم ګڼړي. دا یوڅو کرښې لیکم چه تاته په دې باندې د انصاف په نظرسره غور اوکړې. په دې کښې شک نشته چه مودودي صاحب یو صاحب قلم سړې دې په ظاهره دهغه په سینه کښې داسلام درد محسوسیږی خوصرف دومره خبره د اقتداء او حقانیت معیار ګڼړل سرسری کاردې. او نبي ﷺ ارشاد دې ان الله لیؤید هذا الدین بالرجل الفاجر (۱) نظر اندازکول دې یو داسې کس چه په احکاماتو او مسائلو کښې ئې دجمهورو سلفو رائې پریخودې وي او شاذ او مرجوح قولو نه ئې خپل مذهب جوړ کړې وي او په دې تحریرونو سره په سلف صالحینو باندې بدګماني او په علمائې حق باندې بې اعتمادي پیدا

(۱) (صحیح البخاری ص ۶۰۴ جلد ۲ کتاب المغازی باب غزوة خیبر)



کیږي په دیني مسائلو او عقیدو کښې د مقتدا جوړولو مستحق نه دې او دهغه د دیني جهت او اسلامي درد مثال د هغې بوډۍ پشان دې چه یو شاهي بازئې د محبت په وجه نه بې لاسو او خپو جوړ کړې وؤ.

**د مرزایانو متعلق د علماؤ فتوی:** تا ته به دا حقیقیت معلوم وي چه د ټولو محققینو اومحتاطو علماؤ دا حتمي فیصله ده چه مرزائی فرقه برابره خبره ده چه مرزا نبي مني او که مجدد د ټول په ټوله کافران او د اسلام نه خارج دی ځکه چه دا خلق د قطعیاتو نه بلکه د دین د ضروریاتو نه انکارکوي او ددین د ضروریاتو نه انکار کولو والا کافر کیږي اګر که دهغه سره څه تاویل وي. یدل علیه کلام الخیالي في مسئلة استحلال المعصیة (۱)

**د فقهاؤاو متکلمینو عبارتونه:** د مزید اطمینان دپاره د فقهاؤ اومتکلمینو بعضې عبارتونه لیکم:

(۱) اعلم ان اصل الکفر هو التکذیب المعتمد لشئی من کتب الله المعلومة ولا حد من رسله علیهم الصلوٰة والسلام او لشئی مما جاء به اذا کان ذلک الامر المکذب به معلوما بالضرورة من الدین ولا خلاف ان هذا القدر کفر و من صدر عنه فهو کافر.
(اکفار الملحدین للعلامة انور شاه الکشمیری ص ۶۵)

**ترجمه:** د کفر حقیقت دادې چه په قصد سره د الله د کتابونو یا دهغه د یو رسول یا دهغه د راوړلې شوې دین یوه حصه دروغ اوګڼړی هرکله چه ددغه څیز په باره کښې دا معلومه وي چه دا د دین د ضروریاتو نه ده او په دې کښې اختلاف نشته چه دومره خبره کفر دې او دچا نه چه داسې اوشي هغه کافر دې.

(۲) والکفر في الشرع انکار ماعلم بالضرورة مجئ الرسل به. (تفسیر بیضاوي للقاضي)

**ترجمه:** کفر د شریعت په اصطلاح کښې دیته وائي چه د یو داسې څیز نه انکار کول چه د هغې بیانول په یقین طریقې سره د پیغمبر علیه السلام نه ثابت شوې وي.

(۳) المراد بالتکذیب عدم التصدق الذي مر. (ردالمحتار ص ۲۹۲ جلد۳)

**ترجمه:** د تکذیب مطلب د یو څیز تصدیق نه کول دی.

(۱) قال العلامه خیالی قوله لما اجمع علیه السلف لا یقال لا اجماع مع مخالفة الحسن لانا نقول النفاق کفر مضمر. قال العلامه عبد الحکیم السیالکوتی فی حاشیة فا ن النفاق کفر مضمر داخل فی مطلق الکفر فیکون نفی المنزلة بین الکفر مطلق والایمان مجمعاً علیه. (الخیالی علی شرح العقائد النسفیه مطبع مجتبائی دهلی ص ۱۲۳)

(۴) الكفرلغة الستر وشرعاً تكذيب محمد عليه السلام في شئ ما يثبت عنه ادعاءه ضرورة (بحرالرائق ص۱۱۹ جلد۵) **ترجمه**: دکفرلغوي معنیٰ پټول ده او شرعي معني ئې داده چه: د حضور ﷺ په یو څیز کښې تکذیب کول چه د هغې بیان لازمي طور سره د پیغمبر علیه السلام نه ثابت شوې وي.

(۵) قال العلامه الوسی واما ساداتنا الحنفية رضی الله عنهم فلم يشترطوا فی الاكفار سوی القطع بثبوت ذلک الامر الذی تعلق به الانكار لابلوغ العلم حد الضرورة.

(تفسیر روح المعانی ص ۱۲۷ جلد ۱)

(۶) و فی المسامرة واما ما ثبت قطعاً ولم يبلغ حد الضرورة فظاهر كلام الحنفية الاكفار بجحده لانهم لم يشترطوا فی الاكفار سوی القطع لابلوغ العلم به حدالضرورة انتهیٰ مختصراً. (مسامره ص ۳۶۰)

ددې عبارتونو نه معلومه شوه چه د قطعیاتونه او خاص طور سره ددین د ضروریاتو نه انکار کولو والا کافر او د اسلام نه خارج دي.

**د لاهوریانو مرزایانو ددین د ضروریاتو نه انکار**: لاهوري فرقه اګر چه مرزا قادیاني پیغمبر نه مني لیکن څنګه چه ختم نبوت ددین د ضروریاتو نه دي او د امت مسلمه اجماعی عقیده ده دغه شان د حضرت عیسیٰ علیه السلام بغیر پلار نه پیدا کیدل او د پیغمبرانو علیهم السلام نه د خلاف عادت کارونو صادر کیدل قطعیات او ضروریات دي. او د امت مسلمه اجماعيَ عقیده ده او سلفاً او خلفاً په نقل سره را روانه ده. او دا خلق د حضرت عیسیٰ علیه السلام بغیر پلار نه د پیدا کیدلو منکرین دي او وائي چه حضرت عیسیٰ علیه السلام د یوسف نجار ځوئ وؤ چه د حضرت مریم رضی الله عنها خاوند وو (د هغوي په فاسد زعم کښې) محمد علي لاهوري چه ددې فرقې مقتدا دې هغه په خپل تفسیر بیان القرآن صفحه ۳۱۴، ۳۱۳، ۳۱۵ جلداول کښې ددې تصریح کړې او ددې ټولې فرقې هم دا عقیده ده او الله تعالی فرمائي. اني يكون لي غلام ولم يمسسني بشر ولم اک بغيا الاية (۱) او دې کلام الهي کښې چه متواتر دې او قطعي الثبوت دې په قطعي طور سره بغیر د جماع په پیدا کیدلو باندې دلالت کوي نو د داسې حکم نه انکار کونکې به څنګه کافر نه وي. دارنګې کوم ځایې کښې چه د خلاف عادت کارونو ذکر راغلې دې، دې مرزائی هلته تحریفونه او تاویلونه کړي او هَغه ئې به عادیاتو کښې د داخلولو ملحدانه کوششونه کړی دی او د قران او عربی لغاتو سره

(۱) (پ:۱۶ سورة المریم رکوع: ۴ آیت:۱۹)



ئې لوبې کړي دي. مثلاً داضرب بعصاک الحجر (۱) مطلب دا آخلي چه الله تعالی حضرت موسیٰ علیه السلام ته حکم کوي چه ته خپل جماعت ددې ځائې نه یو خاص غر ته منتقل کړه نو هلته موسیٰ علیه السلام دولس چینې اوموندلې او ټولې قبیلې هلته خیمه زن شوې.. (تفسیر بیان القران ص ۶۰ جلد ۱)

دارنګې د حضرت عیسیٰ علیه السلام په ماشو موالي کښې د خبرو کولو د تجربې او عادت په بناء باندې تردید کړې دي. (ایضاً ص ۱۲۱۳ جلد ۲) او صفحه ۳۱۳ جلداول: ما دلهم علي مو ته الا دابة الارض کښې دابة الارض نه د سلیمان علیه السلام ځوئې مراد اخستلې دي. او د جناتو نه ئې بعضې اجنبي قبیلې اخستلې دي. ص ۱۵۳۶ جلد ۳ او د منطق الطیر نه ئې مراد د مرغو په ذریعې سره خبر رسول دي ص ۱۴۰۹ جلد ۳. او داسې نور بې شمیره تحریفونه ئې کړي دي نو د ضروریاتو او قطعیاتو نه د انکار کولو باوجود ددې خلقو په کافر کیدلو کښې توقف کول به څنګه صحیح وي. او د ټولو نه لویه خبره دا چه د حضور ﷺ نه پس د هر مدعي نبوت تکفیر کول هم ددې امت اجماعی عقیده ده.

**د مودودي صاحب په نزد د کفر او اسلام مدار**: مودودي صاحب مرزائی فرقه مجدد مني دا ئې هم اعتراف کړې دي چه د متواتراتو او اجماعیاتو نه انکار کول والا کافر او د اسلام نه خارج دي مودودي صاحب په ترجمان القرآن جلد ۵۶ عدد: ۶ منصب رسالت ص ۱۲۲، ۱۲۳ کښې ,,د ایمان او کفر مدار،، عنوان لاندې لیکلی دی: داحادیثو دموجوده مجموعونه چه د کومو سنتو شواهد ملاویږی دهغې دوه لوئې قسمونه دي. یو قسم سنتو نه هغه دي جه د هغې په سنت کیدلو امت دا ولې ورځې نه متفق دې په نورو الفاظو سره هغه متواتر سنتونه دي او دامت په دې باندې اجماع ده. په دې کښې څوک د یو د منلو نه هم انکار کوي نو هغه به دغه شان د اسلام د دائرې نه خارج کیږي څنګه چه د قرآن د یو آیت نه انکار کوي، هغه به کافر وي او د اسلام نه به خارج وي. ددې عبارت نه معلومیږي چه د مودودي صاحب په نزد باندې د کفر او اسلام دار و مدار د اجماعیاتو او متواتراتو نه په انکار او عدم انکار باندې دي. نو چه کوم سړې د اجماعیاتو او متواتراتونه انکار کوي هغَه کافر او د اسلام نه خارج دې. ځکه چه د مودودي صاحب په نزد باندې دا د اسلام او کفر مدار دې نه دا

(۱) (پ:۱ سورة البقره رکوع: ۷ آیت: ۶۰)

چه د اسلام او خروج د اسلام نه. لهذا کفر او د اسلام نه وتل د مودودي صاحب په نزد باندي متلازم دي. دارنګي مودودي صاحب تصریح کړي ده چه د اجماعیاتو او متواتراتو نه انکار کولو واله او د قران نه انکار کولو والاحکم یو شان دي. نو څنګه چه د قران نه منکر کافر دي او د اسلام نه خارج دي. نو دغه شان د متواتراتو او اجماعیاتو نه انکار کولو والا به هم د اسلام نه خارج وي.

**د مودودي صاحب عجیبه مذهب**: لیکن په مودودي صاحب تعجب دي چه هغه دا فرقه د کفر او اسلام په مینځ کښي زورنده ګنړي او د کفر او اسلام په مینځ کښي د واسطي قائل دي چه دا د معتزلو د مذهب دي او کله د دي نرمئ په مقابله کښي دومره سخت شي چه مرتکب د لوئي ګناه والا او حج پریخودونکي ته هم کافر وائي. چه د خوارجو مذهب دي. حیرانتیا ده چه د مودودي صاحب دا اخوا دیخوا اوړیدل، د مذهبونو نه د بې خبر تیا په وجې سره دي یا د یو سیاسي مصلحت په وجې سره او یا مودودي صاحب هم د دغې متبد عینو د هم خیال سړي دي. نو د دي وجې نه د اهل سنت والجماعت د مذهب څه پرواه نه کوي او یا ترینه د بې علمئ په وجې سره غلطي کیږي.

**د مودودي صاحب عذر ګناه**: مودودی صاحب وائي چه د لاهوري مرزایانو د تکفیر په مقابله کښي مونږه د هغې اصولو قائل یو چه هغه علماء په ژبو سره وائي خو کوي ئې نه. یعني که په سلو کښي یو کم سل دلیلونو د چا د تکفیر وي او یو دلیل د اسي وي چه د هغې په بنا باندي د تکفیر نه ځان ساتل پکار وي نو د هغې نه اجتناب کول پکار دي نو د دي اعتذار متعلق عرض دادي چه د مودودي صاحب په نزد باندي د علماؤ د پاره د فقهاؤ تقلید یعنی په هغوي باندي اعتماد بدترینه ګناه ده نو پخپله ولې تحقیق پریږدی او د تقلید په ګناه کښي مبتلا کیږي.

**لطیفه**: د اهل زیغ خلقو اولنی د دروغو دام داوي چه خلق په اعتماد یافته علمائي اربعهؤ باندي بې اعتماده کوي او د دوي کوشش وي چه خلق د دوي د تقلید نه متنفر کړي څکه چه ترڅو پوري د دي امامانو سره د اعتماد او تقلید تعلق وي نو اهل زیغ د دوي د ګمراه کولو نه مایوس وي او د دي اهل زیغو دا انتهائي او آخري کوشش وي چه ټول خلق په دوي اعتماد او کړي او د دوي مقلدین جوړشي نو بیا تقلید او اعتماد نه شرک وي او نه بدعت او نه ګناه. فاعتبروا یا اهل الابصار.



## د کفر او ایمان په احتمالاتو کښي د فقهاؤ د کلام مطلب

همدارنګي عرض دي چه مودودي صاحب د احتمالاتو په باره کښي څه لیکلي دي نو هغه په دي مسئله نه دي پوهه شوي فقهائي کرامو دا مسئله لیکلي ده.

اذا کان فی المسئلة وجوه توجب الکفر وواحد یمنعه فعلی المفتی المیل لمایمنعة. قال العلامه ابن عابدین الشامی قوله ای احتمالات لما مر فی عبارة البحر عن التتارخانیه انه لایکفر بالمحتمل ﴿۱﴾ (ردالمحتار ص ۳۹۹ جلد ۳) قال ایضاً زاد فی البزازیة الا اذا صرح بارادة موجب الکفر ﴿۲﴾ (ص ۳۹۳ جلد ۳) وهکذا فی الهندیه ص ۳۰۹ جلد ۲ ﴿۳﴾

د دي مطلب دادي چه په محتمل کلام کښي یو کم سل (۹۹) احتمالات د کفر وي او یو احتمال پکښي د اسلام وي نو د دي احتمال د وجې نه په سړي د کفر فتوی نشي ورکولې، څکه چه د دي سړي احتمال (ممکن ده) هم دا مراد وي. لیکن چه دا سړي په موجب کفر کیدلو مراد باندي تصریح او کړي نو بیا بې شکه په هغه وخت کښي د کفر فتوې ورکولې کیدیشي. او په دي کښي شک نشته چه لاهوری مرزائي خلق د کفریاتو د مراد کیدلو باندي اصرار او همیشوالي کوي او د دي اشاعت هم کوي نو د مودودي صاحب اعتذار یو سوړ اعتدال دي چه د ثقه عالم په نزد باندي د اوریدلو قابل نه دي.

**د مودودي صاحب د حیلې حقیقت**: مودودي صاحب لاهوري مرزائیانو ته منافق وائي نو مونږ د مودودي صاحب نه تپوس کوو چه ستا د منافق نه منافق عملي مراد دي که منافق اعتفادي. که ستا مراد منافق عملي وي نو ستا دا فتوي چه لاهوري ډله د اسلام نه خارج ده غلطه شوه څکه چه د منافقانو پشان اعمال او اخلاق موندلې کیږي، او که ستا مراد منافق اعتقادي وي نو دا د دوه وجوهاتو په بناء باندي غلطه ده اول دا چه منافق اعتقادي خو بلاشک شبهې کافر او سخت کافر دي نو بیا ته په لاهوریانو باندي د کفر د فتوي لګولو نه ولې تیښته کوي. دویم دا چه منافق اعتقادي هغه سړی ته وئیلې شي چه د ننه کښي کافر وي لیکن په ظاهر کښي د اسلام د معتقداتو او نظریاتو اقرار کوي او تسلیموی ئې او د لاهوریانو دا رویه نه ده بلکه هغوي خپل کفري عقائد لکه حضرت عیسی علیه السلام د یوسف نجار د څوئ کیدلو ښکاره په ښکاره اشاعت کوي. او دا خلق خپل کفریات پټ نه ساتي او که ستا د کفر د فتوې نه ځان ساتل په

﴿۱﴾ (الدر المختار مع رد المحتار ص ۳۱۶ جلد ۳ قبیل مطلب توبة الیأس باب المرتد)

﴿۲﴾ (ردالمحتار ص ۳۱۲ جلد ۳ قبیل مطلب فی ان الکفار خمسةاصناف وما یشترط فی اسلامهم باب المرتد)

﴿۳﴾ (فی الهندیه اذا کان فی المسئلة وجوه توجب الکفر ووجه واحد یمنع فعلی المفتی ان یمیل الی ذلک الوجه کذا فی الخلاصه فی البزازیه الا اذا صرح بارادة توجب الکفر فلا ینفعه التاویل حینئذٍ. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۲۸۳ جلد ۲ قبیل الباب العاشر فی البغاة)

دي وجه باندې وي چه دا خلق د اسلام دعوي کوي نو آیا ستا د مرزا نبي منلو او حضرت علي ﷺ ته نبي یا اله منلو والاؤ په کفر کښې به هم څه توقف وی؟ خلاصه دا چه ستا دا حیله دا هل تحقیق په نزد باندې د التفات قابله نه ده.

**د مودودي صاحب بې احتیاطي او خمونږ احتیاط**: دینه معلومه شوه چه مودودي صاحب په فتوي ورکولو کښې ډیره بې احتیاطي کړې په دې سره په ټولو علماؤ باندې د بې اعتمادئي او بې احتیاطئ وهم پیدا کیږي کوم د او سپني دیوال سره چه هغوی دغه یاجوج ماجوج بند کړی وو، دهغې د نړولو او په هغې کښې د سوری کولو دپاره هغه کوشش کوی. په خلاف ددې چه زمونږ په فتوی کښې ډیر احتیاط موجود دې، ځکه چه ما دا لیکلی دی چه د ضروریاتو نه انکار کول کفر دې او څنګه چه توحید، رسالت او حشر وغیره د دین د ضروریاتو نه دي نو دغه شان د دین د ضروریاتو نه انکار کولو والا کافر کیږي. او دده کافر ګنړل هم ددین د ضروریاتو نه دي. او په دې باندې د ټول مسلمان امت اجماع. او تعامل پاتې شوې لیکن مودودي صاحب ددې اجماعي او متواتر او واضح حقیقت نه ښکاره په ښکاره مخالفت کړې دې او ددې قبیح مخالفت دوه وجې کیدیشي، یو دا چه مودودي صاحب ته دا معلومه نه وي چه لاهوري ډله د دین د ضروریاتو نه انکار کوي. دویم دا چه د مودودي صاحب په نزد باندې به ددین د ضروریاتو نه انکار کولو والا نه کافر کیږي. نو دا اولنۍ وجې دا احتمال دوجې نه مونږ په ده باندې د کفر فتوي ورنکړه او ددویمې وجې د مراد کیدلو خطره دمودودي صاحب د عادت نه څه لرې خبره نه ده نو مونږ د ډیر احتیاط په وجه باندې د خوف کفر فتوي اولګوله او د کفر د فتوې نه موځان او ساتلو. او دخپلو مشرانو مثلاً مفتي عزیز الرحمان صاحب نه مو مخالفت او نکړو چه دهغوی په نزد باندې لاهوري ډلې والا کافران او د اسلام نه خارج دي لیکن هغوی ته کافرنه ویونکې ته د شبهې د وجې نه کافر نه وایو.

**د مودودي صاحب نه د متاثره خلقو مداهنت**: ستاسو خلقو خو عجیبه رویه ده چه د مودودي صاحب په تفردات او لغزشونو باندې هیڅ نیول او انکار نه کوی بلکه په تعصب کښې راشئ او د مودودي صاحب متعلق سستي کوئ. او که څوک اهل حق د مودودي صاحب په څه خبره نیول او کړي نو د خاموشئ په ځائې تاسو مقابل جانب اختیاروئ او د وهم لهم جند محضرون،، مصداق جوړیږي. او په ژبې سره دا وایئ چه مونږ د مودودي صاحب سره صرف په



سیاسي مسئلو کښې شریک یو. ستاسو دپاره ضروري ده چه د مودودي صاحب هره خبره ښائسته مه ګنړئ او مودودي صاحب ته پکار دي چه ددې غلطې فتوې نه رجوع او کړي ګني نو د کفر خطره پرې موجوده ده.

## مودودی او د هغه پیروکار کافران نه دي خو په الحاد کښې مبتلا دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) بعضې خلق مودودي ته کافر، مرتد، او زندیق وائي نو براه کرم یو سړې باندې د کفر فتوي لګول ترکومه حده صحیح دي. مفسرینو او محدیثینو خو دکفر په کیدلو کښې ډیر احتیاط کړې دي؟ (۲) بعضې خلق وائي چه د جماعت اسلامي والؤ پسې مونځ کول ناجائز دي. ددوي سره په غم ښادئ کښې شریکیدل او قرباني ورسره کول حرام او مکروه دي. دا څومره پورې صحیح ده وضاحت او کړئ؟

المستفتي: محبوب علي صوابي..... ۱۲ ربیع الثاني ۱۳۹۰ھ

**الجواب**: (۱) دکفر دارومدار ددین د ضروریاتو نه په انکار باندې دې او چونکه مودودي صاحب د دین د ضروریاتو نه منکر نه دې نو هغه کافر نه دې البته د بعضې بې احتیاطئ او ګستاخیانو په وجه باندې پرې د کفر خطره موجوده ده.

(۲) مودودي صاحب او دهغه هم خیال خلقو پسې اقتداء نه دی کول پکار، چرته دصحیح العقیده امام پسې اقتدا کول پکار دي ځکه چه دا خلق اګرچه په کفر کښې داخل شوې نه دي خو په الحا د کښې خامخا مبتلا دي.

## د مودودي صاحب لغزشونه او د هغه اقتداء

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه مودودي په خلافت و ملوکیت کښې څه لیکلي دي آیا دا صحیح دي که صرف الزامات دي؟ او دارنګې د صحابه کرامو، انبیاؤ تابعینو، نیکانو خلقو تر دې چه د اکابرین دیوبند پورې ئې د خلقو متعلق څه لیکلي دي نو آیا دا هم صحیح دي یا الزامات؟ او که دا خبرې په رشتیا سره مودودي صاحب لیکلې وي نو بیا ددوي سره تعلقات ساتل، نکاح وغیره او هغوي پسې د مونځ کولو څه حکم دې؟

المستفتي: عتیق الرحمان پېښور..... ۱۹۷۰/۱۴/۱۱

**الجواب:** د مودودي صاحب د خپل گمان مطابق تحقیقات ټول په ټوله لغزشونه دی چه اکابرو علماؤ د تقریر او تحریر په ذریعې سره واضح کړې دي. د مودودي صاحب دا عادت دې چه عام شاهراه (لویه لاره) پریږدي او ځانله لار خپل مذهب جوړوي مودودي صاحب دخپل ځان دپاره په زبان حال سره عصمت ثابتوي لیکن پخپله په معصومینو باندې اعتراض کول جائز گڼړي. د مودودی صاحب د مصنفاتو اثرپه سلفو بې اعتمادی اوصرف په ده اعتماد دې. د خلافت و ملوکیت اثر په بعضې صحابه کرامو باندې بدگمانه کیدل دی. چه هغې سره پخپله هم تباه شو او نور خلق پرې هم تباه کوي. خلاصه داچه په مودودي صاحب باندې د کفر خطره ده او بغیرشک نه ضال اومضل دې ده پسې او دده هم خیالو خلقو پسې اقتد کول نه دي پکار. فقط

### د مودودي لغزشونه دروغ نه دي په کتابونو کښې شته

**سوال:** د جماعت اسلامي په باني مودودي صاحب باندې چه کوم الزامات لگولې شي آیا دا باحواله او صحیح دي؟ ددې جماعت رکنیت څنگه دې؟

المستفتي: مولانا نورالرحمان لانډي کراچي نمبر ۲۲

**الجواب:** د مودودي صاحب د کتابونو نه معلومیږي چه دا الزامات صحیح دي په دې کښې بالکل دروغ نشته او بغیر حوالې نه الزامات د منلو قابل نه دي. اودمودودي صاحب عقیده چونکه د اهل سنت والجماعت د عقیده نه بدله ده. لهذا د مودودي صاحب اتباع کول اومداهنت وغیره خراب کارونه د رکن کیدلو سره لازم او ملزوم دی نو ددې نه بچ کیدل ضروري دي.

**نوټ:** ته چه دکوم الزام وغیره متعلق وضاحت غواړې نود تعین نه پس به تعمیل د حکم اوکړیشي ﴿۱﴾

### مودودیت او د هغوي د کتابونو مطالعه

**سوال:** آیا مودودي کافر دې او د مودودي بعضې متبعین چه دهغه اشاعت کوي اوکوشش کوي لیکن عقیده ئې د مودودیت نه وي نو د داسې سړو څه حکم دې؟ او ځمونږ دپاره دمودودي د کتابونو مطالعه څنگه ده؟

المستفتي: محمد اسلم چمن بلوچستان

﴿۱﴾ نوټ: اوس چه مودودی جماعت کوم کتابونه شائع کوی نویا خودبعضې کتابونو نه هغوی داعتراض قابلې خبرې اوباسی اویا په جدید ایډیشنو کښې په صفحاتو کښې ردوبدل کوی لهذا کومو عالمانو چه د مودودی په لغزشاتو باندې دهغه نیول کړی دی اوصفحات وغیره ئې ذکرکړی دی نود جدید ایډیشنو په وجه عام لوستونکوته دهغې ملاویدل مشکل دی لهذا یا خوپخوانی ایډیشني اوگوري اویا یوصحیح اپریشن کونکی عالم ته رجوع اوکړئ چه په حوالې موندلو کښې درته اسانی وی. (از مرتب)



**الجواب:** مودودي اهل هوی دې خو کافر نه دې ځکه چه ددین دضروریاتو نه منکر نه دې لیکن دجماعت زیاتوالي او نوې تعلیم یافته طبقې باندې د قبضې کولو دپاره په دین کښې د تجدید او تحریف ښکار شوی دی او دهغه متبعین چه دغه عقیدې ئې نه وي نو اهل هوي نه دي خو مداهن خامخا دي ځکه چه دا خلق د مودودي صاحب په لغزشونو او تفرداتو باندې نه پخپله نیول کولې شی اونه د نورو خلقو نیول برداشت کوی بلکه التـه مخالف جوړیږی او ددین نه بې خبره او کمزوری مسلمانانو دپاره د مودودي د کتابونو مطالعه ضرر ناکه ده. فقط

### د مودودی خلاف فتوې اصولی دی جذباتی نه دی

**سوال:** بعضې خلق دا افواه خوروی چه د مولانا احمدعلی لاهوری د مودودی صاحب خلاف فتوٰی په تحقیق باندې مبنی نه وه اومولانا شیخ الحدیث عبدالحق صاحب دخپلې فتوې نه روسته شوې وو، نوعلماء دیوبند چه د مودودی خلاف کومې فتوې ورکړې وې آیا هغه فتوې وختی وې یاد شریعت په رنړاکښې اصولی وې؟

المستفتی: مولانا عزیزالرحمٰن فاضل دیوبند ډهکی چارسده ۲۸ شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا افواه غلطه ده دهغه اکابرو فتوې اصولی وې وختی اوجذباتی نه وې مونږ د مودودی صاحب اودهغه د تفرداتونه بیزاره یو. ﴿ ۱ ﴾

### د مودودی صاحب تقلید اود اجتهاد وضاحت

**سوال:** محترم فخر الاماثل والاقران قدوة السالکین والعارفین شیخ الحدیث صاحب مدظله در عهد حاضره بعض مودودی را مجتهد گویند! سوال آنکه مودودی واقعةً مجتهد است و در عهد حاضره قابل صحیح اجتهاد سلف موزون فرماید یا نه ؟مودودی مقلد است یا غیر مقلد ؟

المستفتی: رحمٰن الدین تالاش ضلع دیر

**الجواب:** مولانا مودودی نه د ائمه اربعهٔ مقلد دې اونه د اهل حدیثو مسلك سره موافق دې بلکه هغه د یوشپږم مذهب مالك دې، اومودودی صاحب د ممیزینو مرتبې ته نه دې رسیدلې نومجتهد به څنگه شی. فقط

﴿۱﴾ دمودودی صاحب تفردات دهغه په کتابونو کښې موجود دی اوکومو اکابروچه دهغه لغزشونو باندې هغه نیولې دې ترآخره پورې په هغې باندې قائم پاتی وو اومودودی صاحب هم ترآخره پورې په هغې باندې قائم وو، اود مودودی جماعت هم تراوسه پورې په هغې باندې قائم دې لهذا ددوی په ضال اومضل کیدو کښې هیڅ شك نشته. (ازمرتب)

قال اللہ تعالیٰ:

يَرْفَعِ اللّٰهُ
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ
وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ؕ



# کتاب العلم

...

# كتاب العلم

## ښځو ته لیکل ښودل او حدیث نهی بالکتابت تشریح

**سوال:** زمونږ په کلی کښې د جینکو پرائمری سکول قائم شوې دې، چه دهغې په مخالفت کښې یو مولوی صاحب د یومړی د دفن کولو نه پس د معمول مطابق قبرستان کښې تقریر کولو کښې یو حدیث (دکتاب اود راوی دحوالې نه بغیر) واؤرولو، چه دهغې مطلب دادې چه نبی کریم ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته نصیحت اوفرمائیلو چه ښځوته فلانې فلانې هنر اوښایئ خولکیل ورته مه ښایئ. ولا تعلموهن الکتابة آیا داحدیث موجود دې؟ ددې علاوه ښځوته لیکل ښودل څنګه دی؟

المستفتي: فضل اکبر جلسئ صوابی مردان..... ۱۹۶۹ء|۲|۱۳

**الجواب:** حدیث ,,لاتعلموهن الکتابة،، ابن مردویه اوبیهقي د عائشه صدیقه رضی الله عنها نه مرفوعاً روایت کړې دې، اوپه کوم حدیث کښې چه اجازت ذکردې یعنی ,,علمی حفصة رقیة النملة کما علمتها الکتابة اخرجه ابوداؤد والحاکم،، داپه ابوداؤد وغیره کښې منقول دی چونکه دا حدیثونه په ظاهره متعارض دی په دې وجه بعضې علماء کراهیت ته ترجیح ورکوی، لانه محرم، اوحدیث داجازت نساء د سلفو یا امهات المؤمنین سره مخصوص کیدوباندې محمول کوی، لکه څنګه چه ملا علی قاری رحمه الله په مرقات کښې دا توجیهات نقل کړی دی (۱) لیکن مولانا عبدالحئ صاحب جواز طرف ته میلان کړې دې، وجه داده چه دنهی حدیث ضعیف دې او نورومحدثینو ددې په راویانو کښې ضعفاء او وضاعین راویان ظاهرکړی دی. (۲) لهٰذا د اجازت حدیث به معمول وی.

---

(۱) قال العلامه علی بن سلطان محمد القاری (الا تعلمین هذه رقیة النملة لما علمیتها الکتابه) قال الخطابی فیه دلیل علی انه تعلم النساء الکتابة غیر مکروه قلت یحتمل ان یکون جائزًا للسلف دون الخلف لفسا د النسوان فی هذا الزمان. (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص ۳۶۴ جلد ۸ باب الطب و الرقیٰ)

(۲) لا تعلموهن الکتابة قال ابن الجوزی هذا الحدیث لا یصح عن رسول الله ﷺ و قد ذکره ابو عبدالله النیشا بوری فی صحیحه و العجب کیف خفی علیه امره. قال ابو حاکم ابن حبان کان محمد ابراهیم الشامی (راوی الحدیث) یضع الحدیث علی الشامیین لا یحل الروایة عند الا عند الاعتبار احادیث لا اصول لها من کلام رسول الله ﷺ لا یحل الا حتجاج به (الموضوعات لابن الجوزی ص ۲۶۹ جلد ۲ باب تعلیم النساء)



اود نهی حدیث به معمول نه وی، ددې نه علاوه ډیرې ښځې چه د اکابر فقهاؤ ښځې وې دهغوی نه لیکل ثابت دی د زیات تفصیل دپاره مجموعة الفتاویٰ صفحه (۱۰۷ تا ۱۱۴) اوګورئ. لهٰذا لیکل ورته زده کول جائزدی په دې شرط چه په مفاسدو باندې مشتمل نه وی مثلاً بې پردګی، بې حیائی، ګینی احتراز ترې ضروری دې.

## په فقهی مسائلوکښې د شامی (ردالمحتار) مقام

**سوال:** د شامی رد المحتار څه مرتبه ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: جاوید احمد چوک یادګار پشاور

**الجواب:** شامی (ردالمحتار) په فقهی مسائلو کښې ډیرمعتمد کتاب دې. ددې نه منونکې جاهل یا متجاهل دې اومطلق فقه نه منلو والا کافردې. (۱) وهو الموفق

## د فرض عین علم حاصلولو نه پس د مورپلار خدمت کوئ

**سوال:** چاچه فرض علم نه دې حاصل کړې خوعلم حاصلول ئې شروع کړی دی او مورپلار ئې ضعیفان وی اودهغوی دخدمت دپاره بل څوک نه وی اودا سړې په نفس او خواهش باندې هم کنټرول نه شی کولې نودا سړې به څه کوی؟

المستفتي: عبدالرحمٰن جامع مسجد مکیه فقیرآباد پشاور ۱۹ ربیع الثانی ۱۴۰۲ء

**الجواب:** داسې طالب علم دې د فرض عین مقدار علم حاصل کړی (۲) او ددې نه پس دې د مورپلار خدمت اود واده انتظام اوکړی. (ماخوذ ازهندیه ص ۴۰۱ جلد ۵) وهو الموفق

## په موجوده دورکښې دښځو تعلیم

**سوال:** په موجوده زمانه کښې دښځو دتعلیم متعلق د شریعت څه حکم دې؟ د قرآن اوحدیث په رڼا کښې جواب راکړئ؟

المستفتي: مولوی سیال محمد صاحب تهانه ملاکنډ ایجنسی ۱۹۷۸ء|۷|۳۰

---

(۱) فی الهندیه رجل قال قیاس ابی حنیفة رحمه الله تعالیٰ حق نیست یکفر کذافی التار خانیه. (عالمگیری صفحه ۲۷۱ جلد ۲ موجبات الکفر منها ما یتعلق بالعلم والعلماء)

(۲) وفی الهندیه ولوخرج الی التعلم ان کان قدرعلی العلم وحفظ العیال فالجمع بینهما افضل ولوحصل مقدارمالا بدمنه مال الی القیام بامر العیال ولا یخرج الی التعلم ان خاف علی ولده کذافی التارخانیه نقلًا عن الینابیع. (فتاویٰ عالمگیری صفحه ۳۶۶ جلد ۵ الباب السادس والعشرون کتاب الکراهیة)

**الجواب:** دښځو تعلیم پخپله جائزدي البته که د مفاسدو تحقق متعین یا مظنون وی نوناجائز به وی. کما هو الاصل فی کل مباح. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د جینکو دپاره په سکول اوکالج کښې تعلیم د ممنوعاتو اومفاسدو د لزوم په وجه ممنوع دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین چه په موجوده وخت کښې دجینکو تعلیم حاصلول شرعی لحاظ سره جائزدي یا ناجائز؟ یوسړې وائی چه جینکو دپاره تعلیم حاصلول حرام دی، په دي باره کښې جواب راکړئ؟

المستفتی: نورمحمد مدینه کلاتهـ هاؤس لنډی کوتل ۱۳ ذی قعده ۱۴۰۴هـ

**الجواب:** دجینکو دپاره په سکول اوکالج کښې تعلیم حاصلول بذات خود ممنوع نه دی بذات خودممنوع بې پردګی، اختلاط او آزادئ په شان اموردی، اود شرعی اصولو په بناء باندې هغه امرهم ممنوع شمارلې کیږی کوم چه د نورو ممنوعاتو ذریعه وی. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## ښځو د پاره د خارجی مفاسدو په وجه خط او لیکل زده کول ناجائزدی

**سوال:** جناب مفتی صاحب آیا ښځوته خط اوکتابت زده کول اوددوی لیکل جائزدی یا ناجائز؟ جواب راکړئ.

المستفتی: ګل محمدخان کوټ ادومظفر ګړهـ ۱۵ اګست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** ښځو دپاره خط اوکتابت زده کول جائزدی. لان حدیث الاباحة صحیح وحدیث النهی لایقاومه، البته ډیرځل یومباح څیز دخارجی مفاسدو په وجه حرامیږی. ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾وفی الخانیه والاصل فی الاشیاء الاباحة وان علم انه مغصو ب بعینه لا یحل ان یا کل لانه علم بالحرمة.
(فتاوٰی خانیه موضوع علی ها مش الهندیه صفحه ۴۰۰ جلد۳ کتاب الحظر والا باحة)

﴿۲﴾وفی الهندیه ان کان الاصل الا باحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فا لکراهة للتحریم والاً فالکراهة للتنزیه و نظیره سورالبقرة الجلاله و سباع الطیر هکذا فی خزانة الفتاوی.
(عالمگیری صفحه ۳۰۸ جلد۵ کتا ب الکرا هیة)

﴿۳﴾وفی الهندیه وان کان الاصل الاباحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فالکراهة للتحریم والا فالکراهة للتنزیه.
(عالمگیری صفحه۳۰۸ جلد ۵ کتاب الکراهیة)



## ددینی تعلیم د پاره دمحرم نه بغیر سفر کول جائزدی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین چه ددینی تعلم دپاره یوه ښځه دمحرم اوخاوند نه بغیر لرې ځائې کښې اقامت کولې شی چه یومحفوظ مقام وی، خوددې په وجه هغه لرې ځائې ته په سفرکښې دمحرم نه بغیر ځی راځی، آیا هغه ددې صورت په وجه دینی تعلیم پریږدی اوکه دینی تعلیم حاصل کړی؟

المستفتی: احسان الٰهی ریټائرډ ایډیټر دهلی ګیټ ملتان ښهر ۱۹۷۶ء|۳|۲۲

**الجواب:** مسئوله صورت کښې انسب اواحوط دادی چه ته ښځه اوبچی ځان سره ساته اوبهشتی زیور اوتعلیم الاسلام ورته ښایه، چه بغیردمحرم او خاوند نه د ممنوع سفرنه خلاصه شی. باقی داهم جائزدی چه دا دواړه مور اولور په یو محفوظ کورکښې وی اوته کله کله هغوی ته ورځې اودوی یواځې سفرنه کوی. ﴿۱﴾ فقط

## په دینی او دنیوی تعلیم کښې د بې علمه مورپلار د حکم نه منلوحکم

**سوال:** محترم مفتی صاحب! زهٔ د دویمې درجې ددرس نظامی طالب علم یم، پلارمې وائی چه زه د ډسپنسر کورس (طب) پیشه اختیارکړم. اوخارجی طور سره ددینی کتابونومطالعه جاری اوساتم. اوحال دادې چه دطب دې ټریننګ په دوران کښې ماسره جینکئ (نرسې) هم ناستې وی، آیا زه دپلار حکم اومنم یا خپل علم دین جاری اوساتم؟

المستفتی: ضیاء الاسلام متعلم دارالعلوم حقانیه اکوړه خټك ۱۶اکتوبر ۱۹۸۳ء

---

﴿۱﴾وفی المنهاج السنن والروایات الحدیثیة تدل ان جواز خروجهن مشروط بشرائط منها کونها تفلات کما فی روایة ابی داؤد ومنها عدم الاختلاط بالرجال عند الدخول و الخروج لحدیث لو ترکنا هذا الباب للنساء. رواه ابوداؤد ولحدیث کان رسول الله ﷺ اذا سلم مکث قلیلا و کانوا یرون ان ذلک کما ینفذ النساء قبل الرجال ......... واشارت عائشة الی المنع عند عدم مراعاتهن الشرائط. فی حدیث ابی داؤد عنها لو ادرک رسول الله ﷺ ماأحدث النساء لمنعهن المسجد ولذا کلما زادت تها ونهن فی مراعاة هذه الشرائط شددالعلماء فی امر حضورهذا المساجد حتی افتوا بعدم خروجهن باللیل ولا بالنهار سواء کن شواب او عجائز لان لکل ساقطة لاقطة.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۱۰۲، ۱۰۳ جلد۳ باب فی خروج النساء الیٰ المساجد)

**الجواب:** دغیردینداره بې علمه پلار خبره منل دغور قابل وی، بهرحال په لیکلی شوی صورت کښې دپلار حکم نه منل په مستقبل قریب اوبعید کښې دواړو دپاره ډیرزیات مفید دی.﴿۱﴾ فقط

## د لازمی دینی علومو دپاره سوال نامه

**سوال:** (۱) د انفرادی ژوند متعلق دعلم دین فرض حصه څه ده؟ (الف) عقائد (ب) عبادات (ج) حقوق العباد (د) شعائر آداب اسلامی (ه) تربیت اخلاق اوتزکیه نفس.

(۲) داجتماعی ژوند متعلق دعلم دین فرض حصه څۀ ده؟

(الف) تنظیم معاشره (ب) تنظیم معیشت (ج) تنظیم او ریاست.

(۳) بین الاقوامی ژوند سره متعلق دعلم دین فرض حصه څۀ ده؟

(الف) داعیانه تقاضې (ولتکن منکم امة یدعون الی الخیر) (ب) غلبه دین (لیظهره علی الدین کله) (۴) آیا دمختلف اسلامی فرقو په مینځ کښې په پورته ذکرشوو امورو کښې اتفاق دې؟ (۵) (الف) آیا دکتابونو د تدریس طریقه ضروری ده یا وعظ اوتلقین هم کافی کیدې شی؟

(ب) آیا دعربئ ژبې زده کول ضروری دی؟ (ج) د تربیت اخلاق او تزکیه نفس دپاره په موجوده دور کښې تاسو څه طریقه تجویزکوئ؟ دمطلوبه امورو وضاحت کولو سره زمونږ راهنمائی اوکړئ؟

المستفتی: پروفیسرسید محمد سلیم مهتمم شاه ولی الله کالج منصوره لاهور ۱۸|۳|۱۹۷۲ء

**الجواب:** (۱) (الف) داهل سنت والجماعت دټولو اعتقاداتو علم فرض عین دې.

(ب) د طهارت، مونځ او روژې علم فرض عین دې. او د زکوٰة اوحج علم په صاحب استطاعت باندې فرض عین دې.

(ج) په کومه معامله (مثلاً تزوج، تجارت، زراعت، ملازمت وغیره) کښې چه د داخلیدو اراده وی، نودهغې علم فرض عین دې. (د) د ضرورت په اندازه ددې علم فرض عین دې. (ه) اخلاص، ریا، حسد، عجب وغیره د نفسانی آفاتو

﴿۱﴾ فی الهندیه رجل خرج فی طلب العلم بغیر اذن والدیه فلا بأس به ولم یکن هذا عقوقاً.

(فتاویٰ عالمگیری ص ۳۶۶ جلد ۵ کتاب الکراهیة الباب السادس والعشرون)



پیژندل اوددې د اسبابو او معالجاتو علم فرض عین دې، اودغسې داخلاقو حکم دې، بې شکه په دې کښې تبحر مندوب دې.﴿۱﴾

(۲)، (۳) داجتماعی ژوند متعلق د سوالاتو جواب دادې چه ددې علم فرض کفایه دې اوهم داجواب د بین الاقوامی ژوند متعلق د سوالاتو هم دې.﴿۲﴾

(۴) آؤ لیکن د بعضو فرقو اختلاف هم دې.

(۵) علم ضروری دې که هغه د تدریس په طریقې سره وی اوکه د وعظ او تلقین په شکل کښې وی.

(ب) فرض کفایه دې.﴿۳﴾ (ج) دقرآن اوحدیث علم دې حاصل کړې شی اوپه دې باندې دې یقین حاصل کړی. اعتماد سره یا استدلال سره، اوددې یقین په ذریعه دې دالله تعالی نه خوف حاصل کړی. نوددې نه پس به هرقسمه تخلیه اوتحلیه آسانه وی، خصوصاً کله چه تعلیم ورکونکی حامل د شریعت او عامل د شریعت وی.﴿۴﴾ فقط

﴿۱﴾ قال ابن عابدین واعلم ان تعلم العلم الخ ای العلم الموصل الی الاخرة اوالاعم منه قال العلامی فی فصوله من فرائض الاسلام تعلم ما یحتاج الیه العبد فی اقامه دینه و اخلاص عمله لله تعالیٰ ومعاشرة عباده وفرض علی کل مکلف ومکلفة بعد تعلمه علم الدین والهدایة تعلم علم الوضؤ والغسل والصلاة والصوم وعلم الذکواة لمن له نصاب والحج لمن وجب علیه والبیوع علی التجار لیحترزوا عن الشبهات والمکروهات فی سائر المعاملات وکذا اهل الحرف وکل من اشتغل بشئ یفرض علیه علمه وحکمه لیمتنع عن الحرام فیه اه. وفی تبیین المحارم لاشک فی فرضیة علم الفرائض الخمس وعلم الاخلاص لان صحة العمل موقوفة علیه وعلم الحلال والحرام وعلم الریا لان العابد محروم من ثواب عمله بالریاء وعلم الحسد والعجب اذهما یاکلان العمل کما تأکل النار الحطب وعلم ........قوله وهو التبحر فی الفقه (مندوب) ای التوسع فیه والاطلاع علی غوامضه وکذا غیره من العلوم الشرعیة والاتها.

(رد المحتار علی الدر المختار ص ۳۱،۳۲ جلد ۱ مقدمه)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین قوله وفرض کفایة ......والعلم باعمارهم واصول الصناعات والفلاحة کالحیاکة والسیاسة والحجامة. (رد المحتار علی الدر المختار ص ۳۲ جلد ۱ مقدمه)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین قال فی تبیین المحارم واما فرض الکفایة من العلم فهو کل علم لا یستغنی عنه قوام امور الدنیا کالطب والحساب والنحو واللغة والکلام ..........والمعانی والبدیع والبیان .........وکل هذه الة لعلم التفسیر والحدیث.

(رد المحتار علی الدر المختار ص ۳۲ جلد ۱ مقدمه)

﴿۴﴾ قال ابن عابدین وعلم القلب ای علم الاخلاق وهو علم یعرف به انواع الفضائل وکیفیة اکتسابها وانواع الرذائل وکیفیة اجتنابها وهو معطوف علی الفقه لا علی التبحر لما علمت من ان علم الاخلاص والعجب والحسد والریاء فرض عین ومثلها غیرها من افات النفوس کالکبر والشح والحقد الخ.

(رد المحتار علی الدر المختار ص ۳۲ جلد ۱ مقدمه)

## دینی تعلیم، تبلیغ، جهاد اود مورپلار اجازت

**سوال:** ما دا کال داتم جماعت امتحان ورکړي دي، زه جهاد هم کؤم لیکن مورپلار مي منع کوی، اوس د سکول داخلي شروع دی، مورپلار مي وائي چه سکول وایه، او افسر جوړ شه، زه وائم چه زه دینی تعلیم حاصلوم چه عالم جوړ شم، دغسي زه په تبلیغ کښي هم وخت لګول غواړم لیکن مورپلار مي اجازت نه راکوی، اوس زه حیران یم چه دمورپلار خبره اومنم یا اونه منم؟ مهربانی اوکړئ په ړومبی فرصت کښي جواب راکړئ.

المستفتی: احمدزمان دته خیل ضلع بنوں.... ۱۹۹۰ء|۹|۳

**الجواب:** ته په سکول کښي داخله واخله اودمناسب تعلیم نه پس دجائز ملازمت کوشش اوکړه، اوپه فارغ وخت کښي عالمانو نه فقه، قرآن اوحدیث اووایه، او د چهټئ په ورځو کښي جهاد اوتبلیغ دپاره ځه.《۱》وهوالموفق

## جینکوته اعلیٰ تعلیم ورکول د خارجی عوارضوپه وجه حرام دی

**سوال:** څه فرمائی علمائي دین چه جینکوته اعلیٰ تعلیم ورکول څنګه دی آیا په شریعت کښي جینکوته اعلیٰ تعلیم ورکول جائز دی یا ناجائز؟

المستفتی: حکیم عبدالرزاق نعمانی دواخانه اټك شهر ۱۹۸۹ء|۶|۵

**الجواب:** جینکوته اعلیٰ دنیوی تعلیم ورکول بذات خود نه مطلوب دي اونه ممنوع دي البته د خارجی عوارضو یعنی داختلاط او بې پردګئ وغیره په وجه حرام دی.《۲》وهوالموفق

---

《۱》وفی الهندیه ولوخرج الی التعلم ان کان قدر علی التعلیم وحفظ العیال فالجمع بینهما افضل ولوحصل مقدار مالا بد منه مال الی القیام بامر العیال ولا یخرج الی التعلم ان خاف علی ولده کذا فی التتار خانیه ناقلاً عن الینابیع.

(هندیه ص ۳۶۶ جلد۵ الباب السادس والعشرون کتاب الکراهیة)

《۲》وفی الهندیه ان کان الاصل الاباحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فالکراهة للتحریم والا فالکراهة للتنزیه.

(عالمگیری ص ۳۰۸ جلد۵ کتاب الکراهیة)



## جینکوته د انګریزئ یا اردوتعلیم دغیراسلامی تهذیب راتلوپه وجه ممنوع دي

**سوال:** آیا جینکوته د انګریزئ یا اردوتعلیم ورکول جائزدی یا نه؟

المستفتی: مولوی عمرحیات دارالعلوم تعلیم القرآن راجه بازار راولپنډی ۲۵ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د یوې ژبې تعلیم بذات خود ممنوع نه دي《۱》البته د خارجی عوارضو یعنی بې پردګئ اوغیراسلامی تهذیب نه د مهذب کیدوپه وجه ممنوع دي.《۲》وهوالموفق

## علم نجوم حرام اود جواز دلائل بې اصل دی

**سوال:** څهٔ فرمائی علمائي دین دي مسئلي باره کښي چه داسې سړي چه هغه کتاب کتلوسره دخلقو احوال د ماضی یا مستقبل ښائی، اود علم غیب خبرې ښائی، اود جواز دپاره دا دلیل بیانوی چه دا علم نجوم دحضرت علی رضی الله عنه ایجاد دي. نوآیا دا علم جائزدي او ددې سړی امامت جائز دي؟

المستفتی: ثمرخان کوهاټ ..... ۱۹۷۲ء|۶|۲۷

**الجواب:** که دا سړې د غیب دان کیدو مدعی وی نو کافردي.《۳》ګینی فاسق دي اود علم نجوم وغیره تعلیم اوتعلم حرام دي.

فی الدرالمختار ص ۴۱، ۴۰ جلد ۱ وحراماً وهو علم الفلسفة والشعبذة والتنجیم والرمل الخ.《۴》وهوالموفق

---

《۱》وفی الهندیه ان کان الاصل الاباحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فالکراهة للتحریم والا فالکراهة للتنزیه.

(هندیه ص ۳۰۸ جلد۵ کتاب الکراهیة)

《۲》قال ابن عابدین وفی فتاویٰ ابن حجر ما کان منه علی طریق الفلاسفة حرام لانه یؤدی الی مفاسد کاعتقاد قدم العالم ونحوه وحرمته مشابهة لحرمة التنجیم من حیث افضاء کل الی المفسدة.

(رد المحتار علی الدر المختار ص ۳۳ جلد ۱ مقدمه)

《۳》قال الامام فخر الدین حسن ابن منصور المشهور بقاضی خان ومن ادعی علم الغیب کان کافراً.

(فتاویٰ قاضی خان موضوع علی هامش الهندیه ص ۵۷۶ جلد۳ باب ما یکون کفراً من المسلم ومالایکون)

《۴》(الدر المختار علی هامش رد المحتار ص ۳۲ جلد ۱ مقدمه)

## د لفظ „ ملا „ تحقیق اوحکم

**سوال:** عام خلق علمائې کراموته د ادب نه بغیر ،، ملا ،، لفظ سره آوازکوی، د لفظ ،،ملا،، تشریح اومعنی څه ده؟ دبې ادبئ اوتحقیر په طورسره دا لفظ استعمالولې شی ددې څه حکم دې؟

المستفتی: نامعلوم.................

**الجواب:** ،،ملا،، لفظ دعزت اواحترام لفظ دې،ددې معنی ډیربښه، هوښیار او ښه لیکونکې دې.《 ۱ 》دا لفظ چه د تحقیر په طورسره نه وی نوجائزدې. 《۲》 ګینی ناجائزدې.فقط

## علم نجوم حرام اود وحی نه بغیر په دې باندې عمل کول توهم پرستی ده

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه دعلم نجوم شرعی حیثیت څه دې ددې حاصلول اوپه دې کښې مشغولیدل جائزدی یا ناجائز؟ که جائزوی نوکومو شرائطو سره جائزدی؟

المستفتی: نامعلوم........ ۲۷|۷|۱۹۷۸ء

**الجواب:** علم نجوم حرام دې. کما فی شرح التنویر وحراماً وهـوعلم الفلسفة والشعبذة والتنجیم، (هامش ردالمحتار ص ۴۰ جلد۱) 《 ۳ 》 د وحی نه بغیر په دې باندې عمل کول توهم پرستی ده.《۴》 وهوالموفق

---

《۱》لفظ ملا من الملأ ای اشراف القوم ومنه الملأ الاعلیٰ ای العالم الارواح ومن الاملأ ای الکتابة النفیسة .ومن الملأ ای مملوء من العلم .ومن ملاء ه علی الامرای نصره علی الامر ،هکذا فی کتب اللغات (و المنجدعربی اردو) .

《۲》وفی الهندیه اذا قال لفقیه ای دانشمندک او قال ای علویک لا یکفر ان لم یکن قصده الاستخفاف بالدین .
(هندیه ص ۲۷۱ جلد۲ ما یتعلق بالعلم و العلماء الباب التاسع فی احکام المرتدین )

《۳》 (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۲ جلد ۱ مطلب فی التنجیم والرمل مقدمه )

《۴》 قال ابن عابدین ان علم النجوم فی نفسه حسن غیر مذموم اذ هو قسمان حسابی و انه حق و قد نطق به الکتاب قال الله تعالیٰ الشمس و القمر بحسبان ای سیرها بحساب و استدلالی بسیر النجوم و حرکة الا فلاک علی الحوادث بقضاء الله تعالیٰ و قدره و هو جائز کا ستدلال الطبیب با لنبض من الصحة و المرض و لو لم یعتقد بقضاء الله او ادعی الغیب بنفسه یکفر ثم تعلم مقدار ما یعرف به مواقیت الصلاة والقبلة لا بأس به ،تعلموا من النجوم ما تهتدوا به فی البر والبحر ثم امسکوا وانما زجر عنه من ثلاثة اوجه احدها انه مضر باکثر الخلق فانه اذا القی الیهم ان هذه الآثار تحدث عقیب سیر الکواکب وقع فی نفوسهم انها المؤثرة الخ.(ردالمحتار ص ۳۳ جلد ۱ مطلب فی التنجیم والرمل مقدمه ردالمحتار)



## د بې پردګئ، سروسره د اختلاط اوپه پارټو کښې د شرکت په وجه دښځو تعلیم جائزنه دې

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې حکومت د ښځو دیو پرائمری سکول منظوری کړې ده، یو څو علماؤ اختلاف کړې دې چه د ښځو سکول د فحاشئ اوبې دینئ ذریعه ده، بل طرف ته یو څو علمائې کرام ددې خلاف وائی چه د زنانو تعلیم ضروری دې،د ملك په اکثرو ځایونو کښې مدارس البنات قائم دی، مهربانی اوکړئ شرعی حکم اوښایئ؟ ځکه چه ستاسو عزتمند و فیصله دلته معتبر منلې کیږی.

المستفتی: عزیزالرحمن پی، پی. ایم.پی.او۔ ناورخیل لکی مروت بنوں ۲۹|شوال ۱۴۰۶ھ

**الجواب:** چه بې پردګی او د سړو اختلاط اوپه پارټو کښې دشرکت وغیره مفاسد ختم کړې شی نود اعتراض قابل نه دې.《 ۱ 》ګینی ناجائزدې، 《۲》 وهوالموفق

## لفظ خدا وئیلو باندې لس نیکئ نه ملاویږی ځکه چه قرآن کښې نشته

**سوال:** لفظ خدا چه په قرآن مجید کښې نه دې ذکرشوې،نوآیا په ددې په وئیلو باندې لس نیکئ ملاویږی یا نه، یا صرف په الله وئیلو باندې نیکئ ملاویږی؟

المستفتی: مهران سائیکل ستور محراب پور..... ۱۳|رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د تلاوت کولو په وخت د قرآن په حرف باندې د حدیث په بناء سره لس نیکئ ملاویږی.《 ۳ 》اګرچه د فرعون او ابلیس حروف وی، اوکوم لفظ چه په قرآن کښې نه وی،نو په هغې به نیکئ څنګه ملاویږی.وهوالموفق

---

《۱》وفی منهاج السنن والروایات الحدیثیة تدل ان جواز خروجهن مشروط بشرائط منها کونها تفلات کما فی روایة ابی داؤد ومنها عدم الاختلاط بالرجال عند الدخول و الخروج لحدیث لوترکنا هذا الباب للنساء رواه ابو داؤد ولحدیث کان رسول الله ﷺ اذا سلم مکث قلیلاً و کانوا یرون ان ذلک کیما ینفذ النساء قبل الرجال ......واشارات عائشة الی المنع عند عدم مراعاتهن الشرائط الخ.(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۰۲ جلد۳ باب فی خروج النساء الی المساجد)

《۲》وفی الهندیه وان کان الاصل الاباحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فالکراهة للتحریم والا فالکراهة للتنزیه. (عالمګیری ص ۳۰۸ جلد ۵ کتاب الکراهیة)

《۳》عن ابن مسعود قال قال رسول الله ﷺ من قرأ حرفاً من کتاب الله فله به حسنة والحسنة بعشر امثالها لا اقول الٓمٓ حرف الف حرف ولام حرف ومیم حرف .رواه الترمذی والدارمی وقال الترمذی هذا حدیث حسن صحیح غریب اسنادا . (مشکواة المصابیح ص ۱۸۶ جلد ۱ کتاب فضائل القرآن )

لفظ ،،خدا. دالله تعالیٰ د پاره استعمالول: لفظ خدا دفارسئ ژبې لفظ دې ددې اصل ماده ،،خود آی،، ده. یعنی موجود بذاته غیر المحتاج فی الوجود الیٰ غیره. دعلم النحو مشهور رساله بالشمه کې دی: و خدا علم للذاته تعالیٰ بالفارسیة جائز الاطلاق علیه تعالیٰ باجماع العلماء رحمهم الله تعالیٰ بحیث لا یجوز اطلاقه علی غیره تعالیٰ بای وجه کان ای لا بالاضافة و لا بدونها. اوپه نبراس شرح عقائد کې دی: و اذا ورد الشرع باطلاق اسم بلغة اخریٰ کاسم خدا بالفارسیة (النبراس ص ۱۱۲ صفات الله تعالیٰ)(مرتب)

## د جادو په ذریعه تخریب کار دتعزیر لائق دي

**سوال:** دجادو په ذریعه پاګل جوړول، دښځې خاوند په مینځ کښې اختلاف راوستل طلاق ورکول، رشتې ختمونکې، کاروبار د جادوپه ذریعې سره دختمونکی څهٔ حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورزمان شاه تله ګنګ پنجاب.... ۱۴۰۱|۵|۱۳ھ

**الجواب:** که د یوسړی متعلق ددې تخریبی کارونو ارتکاب شرعی ثبوت سره ثابت وی نوداسې سړې د تعزیرلائق دې حکومت دهٔ ته د وهلونه واخله تر قتلولو پورې تعزیر ورکولې شی (ماخوذ ازشامی) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## دجمع عظیم نه د صاحب هدایه مراد

**سوال:** دصاحب دهدایه دجمع عظیم متعلق ماته اطمینان نه کیږی ددې وضاحت اوکړئ؟

المستفتی: مولوی عبدالمجید جنګل خیل کوهاټ

**جواب:** مراد صاحب الهدایه جمع عظیم یقع العلم الشرعی بخبرهم وهو مفوض الی رأی الامام من غیر تقدیر ﴿۲﴾ کما صرح به فی سائر المعتبرات فلا حاجة الی تضعیف کلام الهدایة .وهوالموفق

## د جادو کونکی دپاره شرعی حکم

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې یوسړی دجادو په ذریعه ټول کلی والا پریشانه کړی دی او هر سړې د جادو نه ویریږی، هغه خلقوته دهمکیانې هم ورکوی، او شهادت هم موجود دې، په شریعت کښې دداسې سړی څه حکم دې؟

المستفتی: محمد اشرف ګلند کوټ راولپنډی ... ۲۶|رجب ۱۳۹۰ھ

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین ان الذی یقطع ید الرجل اویدخل السکین فی جوفه ان کان سحرا قتل والا عوقب......وحرام لیفرق به بین المرأة وزوجها ..........فاذا ثبت اضراره بسحره ولو بغیر مکفر یقتل دفعاً لشره کالخناق وقطاع الطریق.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۳،۳۴ جلد ۱ مقدمه)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۰۰ جلد ۲ کتاب الصوم)



**الجواب:** که داسړې د جادو په ذریعه خلقوته ضرر رسوی. او اقرار یا شهادت سره دا حقیقت واضح شوې وی. نو (حکومت وقت دپاره) دده قتلول جائزدی. فی الدرالمختار والکافر بسبب اعتقاد السحر لا توبة له ولو امرأة فی الاصح لسعیها فی الارض بالفساد ذکره الزیلعی. ﴿۱﴾ (باب المرتد) فقط

## د فالنامه، علم نجوم، علم جفر حکم

**سوال:** (۱) فالنامه کتل، ښودل، او راروان حالات معلومول په دې باندې عمل کول څنګه دی؟ (۲) دعلم نجوم په ذریعه په هندسو کښې چه د ابجد وغیره حساب سره د مریض نوم حاصلولو سره ضرب، منفی وغیره سره دمرض وغیره معلومول څنګه دی؟

المستفتی: مولوی ګل نورشاه کلکوټ دیرکوهستان.... ۲۵|شعبان ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** (۱) دا مروجه فال خپله ویستل یا بل چاله ویستل حرام دی: کما فسربه ان تستقسموا بالازلام. ﴿ ۲ ﴾ (۲) علم نجوم اوعلم جفر دواړه حرام دی: کمافی الدرالمختاروالتنجیم والرمل وفی هذا القسم علم الحرف (مقدمه شامی). ﴿ ۳ ﴾ فقط

## د توسل په مسئله باندې مباهله

**سوال:** د مباهلې شرطونه څه دی؟ اوپه کومو صورتونو کښې مباهله جائزده؟ آیا دتوسل په مسئله باندې مباهله جائزده؟

المستفتی: نامعلوم........ ۱۹۷۵ء|۱۰|۱۱

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۲۳ جلد ۳ مطلب فی الساحر والزندیق باب المرتد)

﴿۲﴾ قال العلامه آلوسی ان الاستقسام الذی کان یفعله اهل الجاهلیه حرام بلا شبهة کما هو نص الکتاب وان حرمته ناشئة من سوء الاعتقاد وانه لا یخلو عن تشاؤم ولیس بتفاول محض .وان مثل ذلک لیس من الدخول فی علم الغیب اصلا بل هو من باب الدخول فی الظن الخ.

(تفسیر روح المعانی ص ۸۸ جلد ۴ سورة المائدة آیت : ۳)

﴿۳﴾ قال الحصکفی وحراماً ..........والتنجیم والرمل قال ابن عابدین هو علم بضروب اشکال من الخطوط النقط بقواعد معلومة تخرج حروفا تجمع ویستخرج جمله داله علی عواقب الامور وقد علمت انه حرام قطعاً.

(الدرالمختار مع رد المحتار ص ۳۳ جلد ۱ مقدمه)

**الجواب:** کوم مسائل چه د مجتهدینو په مینځ کښې مختلف فیهٔ دی، په هغې کښې مباهله کول نه دی پکار، په هغې کښې حق عند الله مونږ ته نامعلومه دی، هریو دحق عند الله کیدو احتمال موجود دې، اوچونکه په توسل بالصالحین کښې د اهل سنت والجماعت څه اختلاف نه وو، ددې اختلاف بنیاد فرقه سلفیه (ابن تیمیه وغیره) ایخې دې، لهٰذا په دې کښې مباهله کول به خلاف قاعده نه وی.《۱》 البته اهل باطل سره دمباهله کولو په وخت دحق اوباطل د معرفت دارومدار به په دلائلو باندې وی په هلاکت اوعدم هلاکت باندې به نه وی.وهو الموفق

## د،،مسئلة البیر جحط،، وضاحت او دکنز الدقائق مسئله

**سوال:** د کنز الدقائق نه مسئله اولیکئ اود ،،مسئلة البیر جحط،، مطلب او وضاحت او کړئ.

المستفتی: نامعلوم.......... ۱۹۷۸ء|۹|۱

**الجواب:** په کنز الدقائق کښې لیکلی دی چه کوم هلك مادرزاد (پیدائشی مختون (سنت شوې) وی نوهغه به نه شی سنتولې، اود مسئلة البیر جحط مطلب دادې چه کوم جنب د بوقې راویستلو دپاره په کوهی کښې غوپه اووهی، نود امام اعظم رحمه الله په نزد سړې او کوهی دواړه ناپاك دی، اود امام ابویوسف رحمه الله په نزد دواړه په خپل حال دی، اود امام محمد رحمه الله په نزد دواړه پاك دی.《۲》 فقط

《۱》 قال العلامه آلوسی وذهب النواصب الی ان المباهلة جائزة لاظهار الحق الی الیوم الاانه یمنع فیها ان یحصر الاولاد والنساء ،وزعموا رفعهم الله تعالیٰ لاقدراً ،وحطهم ولاحط عنهم وزراً ان ماوقع منه ﷺ کان لمجرد الزام الخصم وتبکیته ،وانه لایدل علی فضل اولئک الکرام علی نبینا وعلیهم افضل الصلاة واکمل السلام. وانت تعلم ان هذا الزعم ضرب من الهزیان واثر من مس الشیطان.

ولیس یصح فی الاذهان شئ اذا احتاج النهار الی دلیل

(تفسیر روح المعانی ص۳۰۳ جلد ۳ سورة ال عمران آیت: ۶۱)

《۲》 قال العلامه ابن نجیم ومسئلة البئر جحط ای ضابط حکم مسئلة البئر جحط وصورتها جنب انغمس فی البئر للدلو او للتبرد ولانجاسة علی بدنه فعند ابی حنیفة الرجل والماء نجسان وعند ابی یوسف الرجل جنب علی حاله والماء مطهر علی حاله وعند محمد الرجل طاهر والماء طاهر طهور .فالجیم من النجس ........والحاء من الحال ........والطاء من الطاهر.

(البحر الرائق ص ۹۷ جلد ۱ کتاب الطهارة)



## د سحر یا د جناتو اثر معلومولو دپاره عامل ته ورتلل دکفر موجب نه دی

**سوال:** زید د عمر متعلق داوائی چه شپږ میاشتې مخکښې ستا دا عقیده وه چه عامل یعنی کاهن غیب دان دې، اوس په عامو مجلسونو او جلسوکښې دا وائې چه د عمر دغیب دان کیدو عقیده وه، ددا سې سړی په شریعت کښې څهٔ حکم دې؟ چه مسلمان پاتې شو یا نه، او نکاح ئې باقی ده یا نه؟ یو سړې په دهوکه او فریب سره فتوىٰ حاصلوی چه د فلانی سړی دا عقیده ده چه کاهن یعنی عامل غیب دان وی، او دهغه نه ئې تعویذونه وغیره اخستې دی نو ددا سې فتوې په شریعت کښې څه حیثیت دې؟ او که دا (عمر) واقعی عامل ته ورغلې وی، اود مریض د مرض وجه ئې معلومه کړې وی نوبیا به څهٔ کیږی؟

المستفتی: نامعلوم........ ۱۹۷۱ء|۱۲|۲۰

**الجواب:** چونکه علیم بذات الصدور صرف الله تعالیٰ دې، لهٰذا دچا متعلق دا جزم کول چه دده هم دا عقیده ده دا دغیب دانئ عقیده ده، البته اقوال وغیره ذریعې سره دچا عقیده متعین کول صحیح دی، اوچونکه په متنازع فیها صورت کښې یو سړې عامل ته حاضرشوې دې، چه د اماراتو په ذریعې سره معلومه کړی چه په دې بیمار باندې سحرشوې دې، یا دجن اثردې، یا بل څه مرض دې، لهٰذا په دې سړی باندې د کفر فتوىٰ ورکول بې اصل اوغلط دی، حالانکه دا سړې د غیب دان کیدو عقیدې نه بې زاری ښکاره کوی، اود غیب دانئ عقیده که ثابته شی نوددہ نکاح به ابتداء د امر نه غیرصحیح وی نونکاح ختمیدل به بې معنی وی، پس خلاصه داده چه داسې محتمل 《۱》 اومبهم امر په وجه دکفر فتوىٰ صحیح نه ده.فقط

## د ښځو په مدرسو کښې درس ورکول

**سوال:** دښځو په مدرسو کښې درس ورکول څنګه دی؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتی: حافظ نوراحمد الدین مردان...... ۱۹۸۶ء|۱|۲۸

**الجواب:** په دې نازك دورکښې داسې ښځو له درس کول به د فتنې نه خالی نه وی.الا ما شذ وندر.وهو الموفق

《۱》 قال الحصکفی اذا کان فی المسئلة وجوه توجب الکفر وواحد یمنعه فعلی المفتی المیل لما یمنعه. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۱۶ جلد ۳ باب المرتد)

## د کشف القبور علم غیراختیاری دي

**سوال:** کشف القبور کوم علم دي او آیا دا زده کولې او ښودلې شی، که جواب آو کېښي وی نو چرته او د چا نه زده کولې شی. که ددې زده کول او ښودل جائزدی نو آیا دا د علم غیب مترادف نه دی؟ حالانکه علم غیب د الله تعالیٰ خاصه ده، پس د قرآن او حدیث په رڼا کېښي تسلی بخش جواب راکړئ چه ذهن مو د پریشانئ نه خلاص شی او ثواب دارین حاصل کړئ؟

المستفتی: نامعلوم........

**الجواب:** کشف القبور حق دي.﴿۱﴾ په احادیثو او آثار او علم الکلام کېښي ددې ذکر شوي دي. البته دا یو غیراختیاری امر دي، په دې وجه په دې کېښي تعلیم نه جاری کیږی. او دا ظنی امر دي ته علم الغیب وئیل غلط فهمی او ناخبری ده. وهو الموفق

## د تبلیغ دین په نیت سره انګریزی په سکولونو کېښي ماشومانوته لوستل خپل ځان ته دهوکه ورکول دي

**سوال:** انګلش میډیم سکول (چه دا اکثر د انګریزانو مشنری اداري دي) چه په دې کېښي د انګریزئ خودلو بهترانتظام سره سره په ګرمئ کېښي نیکر چه د کنډونه ځلور ګوتې (یو سِیَق) پورته، په یخنئ کېښي کوټ پتلون، ټائی او سر تورسر تلل په ماشومانو باندې لازم دی. د ماسپښین روټئ په ماشومانو باندې په سکول کېښي مخصوص طریقې سره خوړل وغیره وی، په داسې سکول کېښي خپل بچی په نیک نیت سره داخلول چه ماشوم انګریزی ښه زده کړی او انګریزانو ته په انګریزئ کېښي ددین تبلیغ اوکړی، اوس دا بله خبره ده چه ماشوم لوئې شی او د قابونه اوځی او په انګریزی طبیعت باندې ژوند تیرول شروع کړی. نو په دې نیک نیت سره دا کار کول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ګل احمد، سید احمد بټ خیله ملاکنډ ایجنسی.... ۱۹۶۹ء

**الجواب:** د اسلام تبلیغ هغه کس کولې شی چه هغه ته د اسلام متعلق کافی

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری و هذا الحدیث مثل قوله علیه الصلواة والسلام لو علمتم ما اعلم بضحکتم و لبکیتم کثیرا. و فیه ان الکشف بحسب الطاقة ومن کوشف بمالا یسعه یطیح و یهلک (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص ۳۴۶ جلد ۱ کتاب الایمان)



معلومات وی، او په هغې باندې دهغه مضبوط یقین وی، او دهغې مخالف دپاره ئې په زړه کېښي کافی نفرت موجود وی، او د تجربې نه دا ثابته ده چه کله یو ماشوم په داسې ماحول کېښي تربیت حاصل کړی، نو هغه سره نه اسلامی معلومات وی، او نه هغه د یقین مالك وی، او نه دهغه په زړه کېښي دانګریزانو نه نفرت وی، بلکه دهغوی نه متاثره وی، نو په هغه باندې پخپله دانګریز او کافر جوړیدو خطره وی، نو څه به د اسلام مبلغ جوړ شی، دې ارادې سره بچی داخلونکې په خپل فسق او فجور باندې پرده اچوی، ګینی هغه داخله په دې ارادې سره کوی چه ښه ملازمت ملاؤ شی. (اللهم اعذنا من تسویدات الشیاطین) وهو الموفق

## د سکول په ریاضئ کېښي د سود سوالونه لوستل

**سوال:** د سکول د ریاضئ په نصاب کېښي د سود سوالونه هم شامل دی چه دا طالبانو ته ښودل وی، نو آیا ددې ښودل جائز دی یا نه؟

المستفتی: عبدالحمید ایس، وی چودهوان، ډیره اسماعیل خان دسمبر ۱۹۶۹ء

**الجواب:** که د نوکرئ بقا په دې باندې موقوف نه وی، نو نه دې ښائی، ګینی ښایه او روزانه ورسره داهم وایه چه په دې حساب سره په سود کېښي کار اخستل جائزنه دی، البته که څوك د قرض اداکولو په وخت کوم ځائې چه ددې شرط یا عُرف نه وی، په خوشحالئ سره اووائې چه زه ستا داحسان په عوض کېښي احسان کول غواړم. چه د فیصد په دې اندازه حساب سره تاته هدیه کړم، هغه له ددې نه کار اخستل جائزدی. (امدادالفتاوٰی ص ۱۶۶ جلد ۴) وهو الموفق

## د عالم د پاره ضروری کتب خانه

**سوال:** دیو عالم دین د پاره کم از کم په حدیث، فقه او فتوٰی کېښي کوم کتابونه ضروری دی، چه دهغه سره وی؟

المستفتی: مثل زاده ترلاندی ضلع مردان...... ۲۴| صفر ۱۳۸۹ء

**الجواب:** کم از کم مشکوٰة شریف، جلالین شریف.﴿۱﴾ هدایه او سراجی.

---

﴿۱﴾ قال الامام ولی الله الدهلوی بل یکفی من علم الکتاب ان یکون قد ضبط تفسیر المدارک او الجلالین اوغیرهما ..........ومن السنة ان یکون قدضبط وحقق مثل کتاب المصابیح وعرف معانیه وشرح غریبه واعراب مشکله وتأویل معضله علی رای الفقهاء.
(القول الجمیل للامام ولی الله الدهلوی ص ۲۰)

## د جینکو په تعلیم باندې دحدیث نه استدلال اوموجوده تعلیمی اداري

**سوال:** په موجوده زمانه کښې د جینکو په سکولونو او کالجونو کښې چه غیرمخلوط کوم تعلیم ورکولې شی،آیا دا جائزدې؟ بعضې خواص ددې تعلیم قائل اوعامل هم دی،اود ابوداؤد شریف د یو حدیث نه استدلال کوی،غالباً دهغې الفاظ څه داسې دی: الفلانیة علمت عائشة رضی الله عنها.ستاسو په نظرکښې به دا روایت پټ نه وی فی الحال ماته یاد نه دې،نوآیا ددې روایت نه دښځو په موجوده تعلیم باندې استدلال درست دې؟ امید دې چه دښځو دتعلیم په موجوده طریقه کار اوددې په مالها وماعلیها به د آثار او سنن په رڼا کښې دجواب نه مطمئن کړئ؟

المستفتی: میاں خلیل ګل فاضل خیرالمدارس زیارت کاکاصاحب ۲۴|جولائی ۱۹۷۳ء

**جواب:** واضحه دے وی چه: حدیث علمی حفصة رقیة النملة کما علمتها الکتاب (رواه ابوداؤد والحاکم صححه) بظاهر حدیث لا تعلموهن الکتابة (رواه البیهقی فی شعب الایمان) سره معارض دے۔فقال بعض الناس ان الحکم هی الحرمة والجواز مخصوص بالازواج المطهرات وقیل ان المحرم ضعیف ضعفه السیوطی والجواز غیر مخصوص بالازواج المطهرات لان الخصائص لایثبت بالاحتمال وهو المختار عند العلامة اللکهنوی ویؤیده علی ورود الانکار علی من کن تعلمنها کما لا یخفیٰ علی من راجع الی مجموعة الفتاویٰ ص ۱۱۰،۱۱۱ جلد ۱ فالراجح هو جواز تعلم الکتابة والاصل ان کل مباح یتذرع به الی الحرام جزما او حزمًا فیکون حراماً .والتجربة شاهدة علی فساد دینهن فی تلک المجامع الا ما شذ وندر وبالجمله ان تعلم الکتابة وغیرها للنساء جائز لکن لا فی تلک المجامع الجامعة للفسادات المشاهدة. ﴿۱﴾ فقط

---

﴿۱﴾ ترجمه: نوبعضې علماء فرمائی چه ددې حکم دحرمت دې،اوجواز ازواج مطهرات سره مخصوص دې،اوبعضو وئیلی دی چه د منع والا حدیث ضعیف دې چه علامه سیوطی دا ضعیف ګرځولې دې،اود جوازحکم ازواج مطهرات سره مخصوص نه دې،ځکه چه خصوصیات احتمال سره نه ثابتیږی.اود علامه عبدالحئ په نزدهم دامختاردې،پس دلیکلو تعلیم ورکولوجواز راجح دې اوپه دې کښې اصل دادې چه هرمباح چه هغه حرام جزماً یا حزماً کوی نوهغه حرام وی، اوپه موجوده سکولونو اوکالجونو کښې ددې ددین په فساد باندې تجربه شاهدده، الاماشذوندر، پس خلاصه دا چه د کتابت وغیره تعلیم ښځو دپاره جائزدې لیکن په موجوده تعلیمی ادارو کښې د فساداتو د مشاهدې په وجه جائزنه دې.(وهاب)



## شاګرد ته قرآن اورولو سره شاګرد استاذ نه شی جوړیدې

**سوال:** یو استاذ حافظ قرآن خپل شاګرد ته دخپل شك ویستلو په وجه قرآن پاك اوروی،آیا دې سره استاذ باندې ددې شاګرد حقوق وغیره داستاذ په شان لازمیږی یا نه؟ اوکه استاذ ددې شاګرد دادب لحاظ کوی نودهغه تعلیمی حالت خرابیږی نوددې صورت څه حل دې؟

المستفتی: قاری محمد خان اچهړیاں....۱۰|دسمبر۱۹۷۴ء

**الجواب:** دې طریقې سره اورولو سره استاذی شاګردی نه ثابتیږی:
کما في مراجعة جبرئیل علیه السلام مع النبي صلی الله علیه وسلم في رمضان.

## د جینکو د تعلیم مسئله

**سوال:** (۱) که جینکۍ په سکولونو کښې دې دپاره تعلیم حاصلوی چه ډاکټره یا نرسه جوړه شی ځکه چه دښځو په علاج کولو کښې ددوی دخدمت نه انکار نه شی کیدې،نوآیا داجائزدې؟ (۲) که ښځه دې دپاره تعلیم حاصلوی چه دکور ماحول صحیح اوساتی،او زیات نه زیات مډل یا میټرك تعلیم اوکړی خو تعلیم دمعاش ذریعه جوړه نه کړی نوداسې کول څنګه دی؟
(۳) سکول ته چه کومې جینکۍ ځی راځی،اواسلام د پردې حکم ورکوی نوپه دې صورت کښې شرعی حیثیت څۀ دې؟ (۴) که یو سړې په خپل کور کښې خویندو اولونړو ته تعلیم ورکوی،چه په هغې کښې دینیات، جغرافیه، حساب، انګریزی، تاریخ وغیره وی،نوآیا په اسلام کښې به ددې ممانعت وی؟
(۵) زمونږ یوې جینۍ په سکول کښې مډل پاس کړې دې،اوس په کورکښې دبخاری، مسلم اوقرآن مجید مترجم شوق سره مطالعه کوی،اونورو خلقو ته هم تعلیم ورکوی اودکورکارهم کوی،نوداسې تعلیم چه په هغې کښې انګریزۍ ته هم دخل وی څنګه دې؟ (۶) که یوه جینۍ دینی تعلیم سره انګریزی تعلیم هم جاری اوساتی نوآیا داجائزدې؟ (۷) مونږ اصل کښې د انګریزانو نه نفرت کوو،یا دانګریزۍ نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: توکل خان پاړه چنار.....۱۹۷۵ء|۱|۳۰

**الجواب:** محترم السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چه ښځو دپاره تعلیم حاصلول یا ډاکټره جوړیدل وغیره بذات خود ناجائزنه دی، البته په دې کښې بې پردګی، بې باکی، بې دینی وغیره دمفاسدو په وجه دې لره ممنوع ګرځوی، پس که کور وغیره کښې د انګریزئ وغیره لوستلو انتظام کیدې شی نو په دې کښې به څه حرج نه وی. اوکومه جینئ چه سکول کښې د انګریزئ وغیره تعلیم حاصل کړی اوددې پورتنو مفاسدو نه بچ شی نو جزوی طور سره به دې ته جائزوئیلې شی. په حقیقت کښې اسلام د کافرانو دتهذیب خپلولو مخالف دې، دتعلیم اوتعلیم نه مخالف نه دې.

## تبلیغ به د قیامت ورځې پورې کولې شی

**سوال:** زید وائی چه تبلیغ په هرمسلمان باندې اوبالخصوص په اوامر او نواهی کښې ضروری دی، اوبکر وائی چه اوس دتبلیغ فریضه ساقط شوې ده، ځکه چه دا دپیغمبر علیه السلام خصوصیت وو، په امت باندې دا ذمه داری نشته، نو په دې کښې دچا قول صحیح دې؟

المستفتی: محمد عبدالله مهمند ایجنسی...... ۳ ارمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** بلغوا عنی ولو آیة (۱) وغیره نصوصو په وجه باندې به تبلیغ دقیامت ورځې پورې باقی وی. فقط

## وهابیت، پنج پیریت او مودودیت حامل سړې استاذ جوړول

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دشرع متین ددې مسئلې باره کښې چه وهابی، پنج پیری او مودودی عقائد لرونکې سړې استاذ جوړول څنګه دی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: عبدالله مدرسه منبع العلوم میرانشاه.... ۱۶ اصفر ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** دوی سره دنیاوی تعلق ساتل ممنوع نه دی، البته دوی لره استاذ جوړول د فتنې نه خالی نه دی. (۲) وهوالموفق

(۱) (رواه البخاری (مشکواة المصابیح ص ۳۲ جلد ۱ کتاب العلم)

(۲) قال الامام شاه ولی الله الدهلوی:. ان لا یصحب جهال الصوفیة ولا جهال (بقیه حاشیه پهراروانه صفحه)



..............................

(بقیه حاشیه د تیرمخ) المتعبدین ولا المتقشفة من الفقهاء ولا الظاهریة من المحدثین ولا الغلاة من اصحاب المعقول والکلام بل یکون عالماً صوفیا زاهداً فی الدنیا دائم التوجه الی الله منصبغاً بالاحوال العلیة راغبافی السنة متبعاً لحدیث رسول الله ﷺ واثار الصحابة طالباً لشرحها و بیانها من کلام الفقهاء المحققین المائلین الی الحدیث عن النظر و اصحاب العقائد الماخوذة من السنة الناظرین فی الدلیل العقلی تبرعاً .الخ

(القول الجمیل ص ۱۵۸ اداب العالم الربانی)

....

قال اللہ تعالیٰ:

وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ
وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ
لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ط



# باب التقلید

...

# باب التقلید

## د اهل سنت والجماعت عقیده ساتل ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دشرع متین دې مسئلې باره کښې چه عقیده داهل سنت والجماعت موافق ساتل ضروری دی یانه؟ یاکه هرڅه عقیده وی جواب راکړئ؟

المستفتی: قائم دین ډهوک زمان میاں والی.....۱۹۷۸ء|۷|۲۳

**الجواب:** داهل سنت والجماعت عقیده ساتل ضروری دی.﴿۱﴾ البته د سلفیه فرقې تشددات نه بچ کیدل هم ضروری دی.ابن تیمیه، ابن قیم، محمد بن عبدالوهاب چه د سلفیه فرقې سربراهان دی ددې د تفرداتو نه اهل سنت والجماعت نفرت کوی.

## صرف د اهل سنت والجماعت مذهب حق دې

**سوال:** آیا په دنیاکښې صرف داهل سنت والجماعت مذهب دالله اود الله د رسول ﷺ په نزد قابل قبول دې یابل څه مذهب هم شته؟ د وهابی مذهب او حنفی مذهب پوره وضاحت کولوسره د شکریه موقع راکړئ.

المستفتی: نامعلوم.......

**الجواب:** حق صرف دا یومذهب دې یعنی د اهل سنت والجماعت والا مذهب. وهم متبعوا الائمة الاربعة واهل الحدیث الغیر الغلاة، او وهابیان کوم چه دمحمد بن عبدالوهاب پیروی کوی، په خوارجو کښې داخل دی او مبتدع دی﴿۲﴾ (شامی ص۳۳۹ جلد ۳ باب البغاة) اوکوم اهل حدیث چه غلاة دی تقلید ته شرك او حرام وائی، ائمه ته اصنام او ارباب وائی نوهغه هم مبتدع دی.وهو الموفق

﴿۱﴾عن العرباض بن ساریه قال صلے بنا رسول الله ﷺ......فقال......فعلیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین تمسکوا بها وعضوا علیها بالنواجذوایاکم ومحدثات الامور......الخ الحدیث .وعن عبدالله بن عمر قال قال رسول الله ﷺ......وتفترق امتی علی ثلث وسبعین ملة کلهم فی النار الاملة واحدة قالوا من هی یارسول الله قال ما انا علیه واصحابی .وفی روایة احمد وابی داؤد عن معاویة ثنتان وسبعون فی النار وواحدة فی الجنة وهی الجماعة وانه سیخرج فی امتے اقواماًتتجاریٰ بهم تلك الاهواء کما یتجاری الکلب بصاحبه لایبقی منه عرق ولا مفصل الادخله (مشکواة المصابیح ص ۳۰جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة)

﴿۲﴾قال ابن عابدین اتباع عبدالوهاب الذین خرجوامن نجد وتغلبواعلی الحرمین و(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د مقلد د بل امام په رائې باندې چلیدل

**سوال:** که یوسړې د یوامام تقلید کوی نوهغه دپاره دبل امام په رائې باندې چلیدلو جواز شته یا نشته؟

المستفتی: سیف الرحمٰن پشاور یونیورستی.....۱۹۶۹ء|۲|۹

**الجواب:** ففهائې کرامو لیکلی دی چه کوم سړې مقلد شخصی نه وی او مقلدینو او ائمه ته بدنه وائی، نودا غیرمقلد غیرغالی اهل سنت والجماعت کښې داخل دې اودائې هم لیکلی دی چه د اتباع هویٰ په وجه دبل امام متبع کیدل ناجائزدی.اود آسان حکم د اتباع په بنیاد باندې مختلف فیه دې،اود اهل (اهل اجتهاد) دپاره قوت دلیل اود ضرورت په وخت بلا تقلید جائز دی.﴿۱﴾ وهوالموفق

## تقلید واجب لغیره دې

**سوال:(ا)** فخرالاماثل والاقران قدوة السالکین والعارفین جناب شیخ الحدیث صاحب مدظله چه میفرمایند آن حضرات درباره شخصے که ازمذاهب اربعه هریکے که بطبعیت او موافق باشد معمول گرداند

(بقیه حاشیه ) کانوا ینتحلون مذهب الحنابله لکنهم اعتقدوا انهم هم المسلمون وان من خالف اعتقادهم مشرکون واستباحوابذلک قتل اهل السنة وقتل علمائهم حتی کسرالله تعالیٰ شوکتهم وخرب بلادهم وظفربهم عساکر المسلمین ..........وحکم الخوارج عند جمهور الفقهاء والمحدثین حکم البغاة وذهب بعض المحدثین الیٰ کفرهم قال ابن المنذر ولااعلم احداً وافق اهل الحدیث علی تکفیرهم ..........ذکر فی المحیط ان بعض الفقهاء لا یکفر احداً من اهل البدع الخ

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۳۹ جلد۳ مطلب فی اتباع عبدالوهاب الخوارج فی زماننا باب المرتد)

﴿۱﴾ قال ابن عابدین ولوان رجلاً برئ من مذهبه باجتهاد وضح له کان محموداً ماجوراً اما انتقال غیره من غیر دلیل بل لما یرغب من غرض الدنیا وشهوتها فهو المذموم والاثم المستوجب للتادیب والتعزیر لارتکابه المنکر فی الدین واستخفافه بدینه ومذهبه ..........وفی اخر التحریر للمحقق ابن الهمام مسئلة لا یرجع فیما قلد فیه ای عمل به اتفاقا وهل یقلد غیره فی غیرالمختار نعم للقطع بانهم کانوا یستفتون مرة واحدة ومرةً غیره غیر ملتزمین مفتیا واحداً فلو التزم مذهبا معینا کابی حنیفة والشافعی فقیل یلزم لاوقیل مثل من لم یلتزم وهو الغالب علی الظن لعدم مایوجبه شرعاً ..........لیس للعامی ان یتحول من مذهب الی مذهب ویستوی فیه الحنفی والشافعی.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۹ جلد۳ مطلب فی ما اذاارتحل الی غیر مذهبه)

وازعلوم وفنون کلیۃً ماہر نبود یا بود؟ (۲) آنحضرت دربارہ تقلید دلائل از کتاب اللہ وسنت رسول اللہ مستحکم تحریر فرمائے کہ تقلید رادرجہ وجوب است یا سنت یا استحباب یانہ برائے شخص خواہ عالم باشد یا جاہل؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولوی رحمان الدین شمسی خان تالاش دیر پائیں

**جواب:** (۱) برائے اہل (اہل اجتہاد) جائز است ورنہ دراتباع ہوئی داخل است۔ ﴿۱﴾

(۲) قال الله تعالیٰ فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون. ﴿۲﴾ واطلاق الکتاب یشمل السوال عن الواحد فی الکل کما لا یابی عن شمول السوال عن الغیر المعین و یدل علی الجواز وقوع ذلک فی خیر القرون من غیر نکیر ثم هو واجب لغیره وان کان مستحباً فی نفسه. ﴿۳﴾

## د ضرورت په وخت په غیرمذهب اومسلک باندې فتوٰی ورکول

**سوال:** الٰی حضرت العالیة المحترم شیخ الحدیث مفتی صاحب دامت برکاتهم.

اما بعد هل یجوز لنا ان نفتیٰ علی مذهب غیر امامنا ابا حنیفة ام لا؟ وان جاز ففی اي موضع یجوز وفی اي موضع لا یجوز؟ فقط والسلام

المستفتی: سیدصفوة الله بلوچستانی متعلم حقانیه اکوړه خټک

﴿۱﴾ قال ابن عابدین ولو کان رجلاً برئ من مذهبه باجتهاد وضح له کان محموداً ماجوراً اما انتقال غیره من غیر دلیل بل لما یرغب من عرض الدنیا و شهوتها فهوا لمذموم الاثم المستوجب للتادیب والتعزیر لارتکابه المنکر فی الدین و استخفافه بدینه و مذهبه الخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۹ جلد ۳ قبیل مطلب العامی لامذهب له)

﴿۲﴾ (پ: ۱۴ سورة النحل رکوع: ۱۲ آیت: ۴۳)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین عن الفتاویٰ النسفیة الثبات علی مذهب ابی حنیفه خیرو اولیٰ قال وهذه الکلمة اقرب الی الالفة ......قال شارحه المحقق ابن امیرحاج بل الدلیل الشرعی اقتضی العمل بقول المجتهد وتقلیده فیه فیما احتاج الیه وهو فاسئلوا اهل الذکر والسوال انما یتحقق عند طلب حکم الحادثة المعنیة فاذاثبت عنده قول المجتهد وجب عمله به واما التزامه فلم یثبت من السمع اعتباره ملزماالخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۹ جلد ۳ مطلب فیما اذا ارتحل الی غیرمذهبه باب التعزیر)



**جواب:** قلت بتوفیقه نعم جاز الافتاء والقضاء بمذهب الغیر عند الضرورة ﴿۱﴾ قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ص ۲۳۹ جلد ۴ و فی جامع الفصولین قد اضطرب آراءهم و بیانهم فی مسائل الحکم للغائب و علیه و لم یصف و لم ینقل عنهم اصل قوی ظاهر یبنی علیه الفروع بلا اضطراب ولا اشکال فالظاهر عندی ان یتأمل فی الوقائع و یحتاط ویلاحظ الحرج والضرورات فیفتی بحسبها جوازاً او فسادا (الی ان قال) دفعا للحرج والضرورات و صیانة للحقوق عن الضیاع مع انه مجتهد فیه ذهب الیه الائمة الثلثة الخ و فی المجلد الثالث ص ۴۵۶ ﴿۲﴾ عن القهستانی لو افتیٰ به (مذهب احمد) و فی موضع الضرورة لا باس به علی ما اظن. فقط

## د مذاهب اربعه حصر امرتکوینی دي تشریعی نه دي

**سوال:** نرجوا منکم ان ترسلوا الینا دلیل حصر المذاهب الاربعة و اثبات الطرق الاربعة و تقلیدها وغیرها ردا علی غیر المقلدین و سائر فرق الضالین و المضلین؟

المستفتی: مولوی عمادالدین حرکت انقلاب اسلامی افغانستان ......۷/ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**جواب:** الحصر فی المذاهب الاربعة امر تکوینی. لیس امراً شرعیاً حتیٰ تقیم علیه الدلائل. نعم تعامل خواص الامة وقع علی التقلید الشخصی لا سیما علی تقلید الائمة

﴿۱﴾ قال فی البشریٰ لارباب الفتویٰ اعلم انه لایجوز الحکم والافتاء بالقول المرجوح و بمذهب سائر الائمة الا فی ثلاثة مواضع الاول عند الضرورة دون التشهی والتلهی فانه حرام کما حرم الحکم الملفق الخارق للاجماع فی عمل واحد کالحکم بصحة وضوء من ترک الترتیب ...... والثانی انه جاز الافتاء بالمرجوح و بمذهب سائر الائمة عند صحة الحدیث فیه ای عند کون الحدیث المخالف ثابتاً سنداً و متناً غیر منسوخ و غیر معلول و غیر معارض بحدیث آخر ...... والثالث انه جاز الافتاء بالمرجوح و غیره عند تبدل العرف کما فی معین الحکام عن القرافی الخ (البشریٰ لارباب الفتویٰ ص ۱۵، ۱۶، ۱۷، الفصل السادس) (و هکذا فی شرح عقود رسم المفتی لابن عابدین الشامی)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۷۷ جلد ۴ مطلب المسائل التی یکون القضاء فیها علی الحاضرالخ)

الاربعة واما للطرق فلاينحصر فى الاربعة لا شرعاً ولا تكوينا ولا تعاملاً. وهو الموفق ﴿۱﴾

## په دې دوركښې چاته د مذهب نه رجوع جائزنه ده

**سوال:** رجوع ازمذہب احناف چہ حکم دارد؟

المستفتی: قاری حافظ شریف احمد حنفی مہاجر پشاور......۱۹۸۹ء/۹/۲۳

**جواب:** شخصے کہ مقلد یکے از ائمہ اربعہ باشد ورجوع بعدم تقلید کند لائق تعزیر است۔

البتہ شخص محقق کہ اہل فہم و نقد (صاحب اجتہاد) باشد رجوع بہ مذہب امام کردہ شود ﴿۲﴾ لیکن این نوع مثل عنقا مفقود ست۔

## د غيرمجتهدينو د تقليد نه انكار جهل مركب دې

**سوال:** څه فرمائى علمائې دين د شرع متين دهغه سړى باره كښې چه هغه مسالكِ اربعه حق ګڼړى، او ورسره داهم وائى چه په دوى كښې ديو تقليد هم ضرورى نه دې بلكه څه چه په قرآن كښې مخې ته راشى په هغې باندې عمل كول پكاردى دداسې سړى څه حكم دې؟

المستفتي: زاهد قادر متعلم دار العلوم حقانيه اكوړه خټك.... ۱۹۹۰ء|۵|۱۵

---

﴿۱﴾ حضرت مولانا مفتى اعظم محمد فريد دامت بركاتهم فرمائى: تقليد شخصى په خير القرون كښې بلانكير موجود وو، دائمه اربعه په ژوند كښې به ددوى تقليد كيدلو. نودا به منكرنه وى. اوپه تقليد شخصى باندې سلفاً خلفاً تعامل شوې دې، نودابه حسن وى. لحديث ماراه المومنون حسنا فهو عندالله حسن رواه المحدثون موقوفا علي ابن مسعود وجعله الامام محمد مرفوعاً في بلاغاته. اوپيغمبرعليه السلام فرمائى اتبعوا السواد الاعظم (رواه ابن ماجة) او سواد اعظم خواص دامت مثلاً محدثين، مفسرين، فقهاء، شارحين داحاديثو او مصلحين، مقلدين وو تقليد شخصى سره. (مقالات ص ۳۰ تتمه مسئله تقليد)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين ولو ان رجلاً برئ من مذهبه باجتهاد وضح له كان محموداً ماجوراً اما انتقال غيره من غير دليل بل لما يرغب من غرض الدنيا و شهوتها فهو المذموم الآثم المستوجب للتاديب و التعزير لارتكابه فى الدين و استخفافه بدينه و مذهبه.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۰۹ جلد ۳ مطلب فيما اذا ارتحل الىٰ غير مذهبه)



**الجواب:** داسړې كه داجتهاد درجې ته نه وى رسيدلې نوجاهل مركب دې. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د موجوده دور غيرمقلدينو ته جمات او مدرسې د پاره ځائې وركول ائمه دين ته د كنځلو او بد رد وئيلو اډه جوړول دى

**سوال:** زمونږ په علاقه كښې دڅو كالو راسې دوه سړى غيرمقلد شوى دى دوى د عام خلقو په زړونو كښې شكوك اوشبهات اچوى، دتقليد مذمت اوشر او فساد خوروى، اوس هم داخلق داحنافو په دې كلى كښې د يو جدا جمات بنياد ايخودل غواړى، نوحنفيت پريخودل غيرمقلد جوړيدل د شريعت په روسره څنګه دى؟ اود مقلدينو په كلى كښې دغيرمقلدينو جمات اومدرسه جوړول څه حكم لرى؟

المستفتي: عبدالوهاب ګندف صوابى مردان ډويژن.. ۲۲| ذى قعده ۱۴۰۸هـ

**الجواب:** داخلق اهل حديث نه دى دا د شرالقرون د بې واګو (آزاد) خلقو مقلدين دى او بدتر مقلدين دى، داخلق د سواد اعظم نه دخارج كيدو باوجود سواد اعظم ملامت كوى، بهرحال دوى ته جمات يا مدرسې دپاره ځائې وركول سواد اعظم او ائمه دين ته د كنځلو اوبد رد وئيلو اډه جوړول دى. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## بغير دڅه وجې نه د احنافو مذهب پريخودل د تعزير لائق دې

**سوال:** یک مسلمان وحنفی مذہب کہ بتوسط دینارودراہم مذہب خودراترک میکند ازخطرخودراوہابی جورمیکند۔ آں شخص چہ حکم دارند؟ آن واقعہ درکمپ ہائے مہاجرین افغانستان اکنون واقع است۔ چہ حکم دارند؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: بازمحمد مهاجر افغانستان.... ۱۹۸۶ء|۱۲|۲۴

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدين قلت و ايضاً قالوا العامى لا مذهب له بل مذهبه مذهب مفتيه وعلله فى شرح التحرير بان المذهب انما يكون لمن له نوع و نظر و استدلال و بصر بالمذاهب على حسبه اولمن قرأ كتابا فى فروع فلك المذهب و عرف فتاوىٰ امامه واقواله واما غيره ممن قال انا حنفى لم يصر كذلک بمجرد القول كقوله انا فقيه او نحوى ...... يدل لذلک ما فى القنيه رامز البعض كتب المذهب ليس للعامى ان يتحول من مذهب الىٰ مذهب و يستوى فيه الحنفى والشافعى. (ردالمحتار ص ۲۰۹ باب التعزير مطلب العامى لامذهب له)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين قوله ارتحل الى مذهب الشافعى يعزر اى اذا كان ارتحاله لا لغرض محمود شرعاً لما فى التاترخانيه حكى ان رجل من اصحاب ابى حنيفة خطب الى رجل من اصحاب الحديث ابنته فى عهد ابى بكر الجوز جانى فابى الا ان يترک مذهبه فيقرأ خلف الامام ويرفع يديه عند الانحطاط ونحو ذلک فاجابه فزوجه فقال الشيخ بعدما سئل من هذه واطرق رأسه النكاح جائز ولكن اخاف عليه ان يذهب ايمانه وقت النزع لانه استخف بمذهبه الذى هو حق عنده وتركه لاجل جيفة منتنة ولو ان رجلاً برئ من مذهبه باجتهاد وضح له كان محموداً ماجوراً اما انتقال غيره من غير دليل بل لما يرغب من عرض الدنيا وشهوتها فهو المذموم الآثم المستوجب للتاديب التعذير لارتكابه المنكر فى الدين و استخفافه بدينه و مذهبه...... قلت وايضا قالوا العامى لامذهب له بل مذهبه مذهب مفتيه وعلله فى شرح التحرير بان المذهب انما يكون لمن له نوع نظر واستدلال وبصر بالمذاهب على حسبه الخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۹ جلد ۳ باب التعزير)

**جواب**: شخصے کہ مذہب امام ابوحنیفہ رحمۃ اللہ علیہ ترک کند لائق تعزیر است۔ خصوصاً کہ برائے حصول مال باشد۔ کمافی شرح تنویر مع ردالمحتار ص ۲۶۳ جلد ۳ ارتحل الیٰ مذهب الشافعی یعزر ای اذا کان ارتحاله لالغرض محمود شرعاً لما فی التاتر خانیه حکی ان رجلاً من اصحاب ابی حنیفة خطب الیٰ رجل من اصحاب الحدیث ابنته فی عهد ابی بکر الجوز جانی فابی الاان یترک مذهبه فیقرا خلف الامام ویر فع یدیه عند الانحطاط و نحو ذلک فاجابه فزوجه فقال الشیخ بعد ماسئل عن هذه واطرق رأسه النکاح جائز ولکن اخاف علیه ان یذهب ایمانه وقت النزع لانه استخف بمذهبه الذی هو حق عنده و ترکه لاجل جیفة منتنة. ﴿۱﴾ و هو الموفق

## تقلید واجب لغیره دي امام ابوحنیفه محدث کبیر وو

**سوال**: (۱) مسئلہ تقلید ثابت است یا نہ؟ (۲) اقرار شدند امام اعظم سترہ (۱۷) احادیث یاد داشتہ است این موضوع حقیقت دارد یا نہ؟

المستفتی: محمد ولی ترکستانی افغانستان......۱۹۸۵ء/۱۰/۱۳

**جواب**: تقلید شخصی خصوصاً برائے عوام لازم و واجب لغیرہ است ﴿۲﴾ و امام ابوحنیفہ محدث کبیر بود استدلال از حدیث و جواب احادیث خصم بغیر از محدث کبیر کردہ نمے شود ﴿۳﴾ و هو الموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار ص ۲۰۸ جلد ۳ مطلب فی ما ذا ارتحل الی غیر مذهبه باب التعزیر)

﴿۲﴾ قال الله تعالیٰ ولو ردوه الی الرسول والی اولی الامر منهم لعلمه الذین یستبطونه منهم. (النساء) تقلید په خیرالقرون کښې بلانکیر موجود وو، په دې باندې سلفاً خلفاً تعامل شوې دې، نو دا به حسن وی. لحدیث ماراه المومنون حسنا فهو عندالله حسن رواه المحدثون موقوفا علي ابن مسعود وجعله الامام محمد مرفوعاً في بلاغاته. حجت قرآن او حدیث دې او ائمه د وحی عبارت، اشارت، دلالت، اقتضاء او اعتبار شارحین دی شارعین نه دی، استاذان دی ارباب نه دی. والتفصیل فی المقالات للشیخ محمد فرید دامت برکاتهم.

﴿۳﴾ امام ابوحنیفه حدیث د حدیث په وجه پرېږدی د رائې په وجه نه، داسې یو مثال هم ثوك نه شی پیش کولې چه په هغې کښې امام صاحب د رائې په وجه حدیث پرېښې وی. والدلیل علی کونه محدثا کبیراً المسند للامام اعظم، واما یقولون المخالفین ان الاحادیث الامام الاعظم لیس بموجود فی البخاری والمسلم. فنقول ان الحجة حدیث ثابت لاالبخاری والمسلم فهم لیس باهل الحدیث بل هم اهل البخاری. واماالمقولةبان الصحیح البخاری اصح الکتب بعد کتاب الله. فهذه المقولة لا فی القرآن ولافی الحدیث ولافی خیر القرون لکن قالها احد فی شرالقرون. (والتفصیل فی المقالات للشیخ محمد فرید دامت برکاتهم) (ازمرتب)



## په څلورو مذاهبو کښې حصر تکوینی دې

**سوال**: څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقه کښې داسې خلق موجود دی چه هغوی بالکل د څلور مذهبونو نه منکر دی او وائی چه دا مذهبونه د کوم ځائې نه راغلی دی، اوس ستاسو په خدمت کښې عرض دې چه د دې څلور مذهبونو ثبوت بیان کړئ او د شکریه موقعه راکړئ؟

المستفتی: مولانا سراج الدین مدین سوات....۸/ فروری ۱۹۷۵ء

**الجواب**: په قرآن او حدیث کښې ټول احکام عبارةً او صراحةً مذکور دی بعضې حکیم مطلق اشارةً وغیره ذکر کړی دی، چه د اعتبار او رائې ګنجائش پاتې شی، او ورثة الانبیاء ته د جهد او اجتهاد موقع ملاؤ شی، او امت د مشقت نه خلاص شی. بهرحال صحابه رضی الله عنهم په مقام د رائې کښې خپلې رائې ښکاره کړې، او په دغه رائې کښې ائمه مجتهدینو انتخاب او کړو، تکوینی طور سره دهغې نه څلور آراء مشهور شوې، او باقی یا ختم شوې یا دهغې پیروی کونکی ډېر کم پاتې شو، خلاصه دا چه په دې څلور مذهبونو کښې انحصار یو تکوینی امر دې. او ممکن ده چه د امت تعامل او د خواصو داستحسان په وجه تشریعی امروی، وهوالموفق

## د دیوبند د اکابرینو په مینځ کښې اختلاف په ترجیح یا توجیه کښې وی اصول کښې نه وی

**سوال**: علمائې دیوبند چه ورته علماء حق وئیلې شی سره د دې چه په یو مسلك باندې متفق دی بیاهم بعضې د بعض سره اختلاف ساتی، مثلاً په حیات وغیره کښې، نو دا اختلاف ولې دې، او په دې کښې مونږ د چا اومنو؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: صوفی لعل خان......۱۹۷۰ء/۵/۲

**الجواب**: واضحه دې وی چه د دیوبند د ټولو اکابرینو مسلك یو دې. وهو مسلك اهل السنة والجماعة، البته بعض داسې مسائل چه د قدیم نه مختلف فیه دی مثلاً سماع موتٰی او یا بالکل جدید مسائل دی مثلاً مسئله د صلاة بآله مکبرالصوت (لاوډ سپیکر) و ردالسلام عند الاستبراء، نو په داسې مسئلو کښې اختلاف په حقیقت کښې ترجیح او توجیه کښې اختلاف دې، چه دا

بهرحال د اهل سنت والجماعت سره متصادم نه دي.

او چونکه مسلك دحیات جسمانی مسئله د دواړوپه نزد ثابته ده.

﴿۱﴾ وهی من الضروریات. لهٰذا ددې په کیفیت کښې اختلاف نشته.

**لانها من النظریات و اکثر الاکابر قائلون بالاولی و هو المؤید بروایات اوردها البیهقی فی رسالته فلیراجع . وهو الموفق**

---

﴿۱﴾ علامه محمد قاسم نانوتوی رحمة الله عليه فرمائی: بالفعل ګوش نهادن داخبره ده چه دانبیاء کرام علیهم السلام خصوصاً د سرورانبیاء عليه السلام په خصائصو کښې غور اوسوچ اوکړئ نود متوسط ذهن خاوندانو ته هم د بقاء حیات په نسبت دخصائصو او مذکوره خواصو باعث انشراح خاطر کیږی، ددې خبرې تشریح داده چه لکه څنګه اختلاف اوضاع...... دغسې سلامت اجساد انبیاء علیهم السلام علی الدوام او حرمت ابدی نکاح ازواج مطهرات رضوان الله علیهم اجمعین او عدم توریث انبیاء علیهم السلام نه ذهن د ارباب حدس اول خودې طرف ته منتقل کیږی چه دا مذکوره احکام او ثمرات دحیات دی، اوددې خبرې د بیان نه پس چه دا امور ثلاثه ثمرات دحیات دی.الخ

(آب حیات ص۲۲ للحجة الاسلام آیة من آیات الله حضرت قاسم نانوتوی رحمة الله عليه)

....



# کتاب ما یتعلق بالقرآن والتفسیر

.............

قال الله تعالى:

وَهٰذَا
ذِكْرٌ مُّبٰرَكٌ اَنْزَلْنٰهُ ؕ
اَفَاَنْتُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۵۰﴾

...



# کتاب مایتعلق بالقرآن والتفسیر

## په قرآن مجید کښې د تکلیف بمالایطاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین په دې مسئله کښې چه په قرآن مجید کښې چرته دې طرف ته اشاره ملاویږی چه الله تعالی د بنده ګانو دطاقت نه زیات حکم هم ورکړې وی؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتی: حنیف الله ډی آئی خان فاضل بنوری ټاؤن کراچی

**الجواب:** په جلالین شریف کښې لیکلی دی:

**ولا تحمل علینا اصراً کما حملته علی الذین من قبلنا من قتل النفس فی التوبة واخراج ربع المال وقرض موضعِ النجاسة انتهٰی بحذف یسیر.**

اودا عسیردې ﴿۱﴾ دطاقت نه زیات نه دې. ﴿۲﴾ فافهم

## قرآن ته نظم وئیل

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې د بعضې شاعرانو عقیده ده چه قرآن مجید هم نظم دې، لکه چه یو کتاب کښې لیکلی دی چه ,,نام څګرخون،، دا دایوب صابر تصنیف دې. دقرآن باره کښې ددوی الفاظ دادی:

,,څه ازادنظم دغزل نه زیات ګران شې ګنړم، غزل ماته داسې یو صندوق ښکاری چه په جوړو جاړو تختو کښې میخونه ټک وهلو نه پس تیارولې شی...

﴿۱﴾(جلالین پاره: ۳ سورة البقره رکوع: ۸ آیت: ۲۸۶)

﴿۲﴾ قال الملاعلی قاری ومنها ان تکلیف مالا یطاق غیر جائز خلافا للاشعری لقوله تعالیٰ "لا یکلف الله نفسا الا وسعها" ای طاقتها. واختلف اصحابه فی وقوعه. والا صح عدم الوقوع ثم تکلیف مالا یطاق هو التکلیف بما هو خارج عن مقدور البشر کتکلیف الاعمی بالابصار والزمن بالمشی بحیث لواتی به یثاب ولو ترکه یعاقب...... واما قوله تعالیٰ "ربنا ولا تحملنا مالا طاقة لنا به" فاستعاذه عن تحمیل مالا یطاق لاعن تکلیفه اذ عندنا یجوز ان یحمله جبلا لا یطیقه بان یلقی علیه فیموت ولا یجوز ان یکلفه بحمل جبل بحیث لو فعل یثاب ولو امتنع یعاقب الخ.

(شرح الفقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۲۱ تکلیف مالا یطاق غیر جائز)

اوپه دي کښې ماته ازادنظم له ښولونه څه کتاب د الله یعنی قرآن ښکاری.د ازاد نظم د الهام سره براه راست تعلق دې،،

کوم سړي چه د قرآن باره کښې دا عقیده ساتی چه ماته دښولونه ښه آزاد نظم قرآن یعنی کتاب الله په نظر راځی اود آزاد نظم الهام سره براه راست تعلق دې،نوددي سړي باره کښې څۀ حکم دې؟

المستفتی: بادشاه ګل لاچی کوهاټ...... ۱۷/۲/۱۹۸۶ع

**الجواب:** د السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چه شاید ددې مؤلف دنظم نه مراد مقفی کلام وی ﴿۱﴾ عربی شعرنه وی،پس داسې محتملاتونه د کفر یا د زندقه فتوی ورکول نامناسب دی.وهوالموفق

## په .. ختم الله علی قلوبهم .. باندې داشکال جواب

**سوال:** مونږ داوخت په یوغیرآباد ځنګل کښې د فوجی په غرض سره ملازمت کښې مشغول یو،مونږ سره د یو درمیانه درجې امام دې.دلته څوک عالم نشته.مونږ ددې امام نه تفسیر شروع کړې دې،کله چه مونږ دې آیت ,,ختم الله علی قلوبهم،، ته اورسیدو،نو زمونږ په ملګرو کښې یوکس اووئیل چه هرکله ددې کافرانو په زړونو باندې مهرونه لګیدلی دی نوبیا ددوی څه غلطی ده چه دوی ته عذاب ملاویږی،وضاحت سره مسئله اولیکئ اود شکریه موقعه راکړئ؟

المستفتی: حولدار رشیدخان اینجر ۲۵بلوچ رجمنټ

سی،اې،پی،او هیډ کوارټر کمپنی ....۲۴/شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دا یوه باریکه مسئله ده په دې باندې پوهیدو دپاره تاسو په دې مثال باندې نظر واچوئ.چه یوسړی چرس اوځکل نود عادت پخیدونه مخکښې دده نه د توبې اود واپس کیدو امید کیدې شی اوکله چه پوخ عادی شی نودې ته په زړه وغیره باندې مهر لګول وائی.﴿۲﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامه آلوسی انا النبی لا کذب انا ابن عبد المطلب ،لانا لانسلم انه شعر فقد عرفوه بانه الکلام المقفی الموزون علی سبیل القصد وهذا مما اتفق له علیه الصلاة والسلام من غیر قصد لوزنه ومثله یقع کثیراً فی الکلام المنثور ولا یسمی شعرا ولاقائله شاعرا. (تفسیر روح المعانی ص ۱۷ جلد ۱۳ سورة یٰس:۶۹)

﴿۲﴾ قال العلامه الوسی ثم ان اسناد الختم الیه عز وجل باعتبار الخلق والذم والتشنیع الذی تشیر الیه الآیة باعتبار کون ذلک مسببا عما کسبه الکفار من المعاصی کما یدل علیه قوله تعالیٰ بل طبع الله علیها بکفرهم ...... اقول ان ماهیات الممکنات معلومة له سبحانه ازلا فهی متمیزة فی انفسها تمیزًا ذا تیا غیر مجعول لتوقف العلم بها علی ذلک التمیز وان لها استعدادات ذاتیه غیر مجعولة ایضا مختلفة الاقتضاء ات . (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د شیعه سنی مشترکه ترجمې مخالفت په هر سنی باندې ضروری دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه دحکومت پاکستان د وزارت تعلیم دطرفه مشترکه ترجمه دقرآن مجید (شیعه سنی) د امت داتحاد دپاره کولې شی،چونکه شیعه ګان قرآن محرف ګڼړی،آیا دوی سره د قرآن ترجمه جائزده؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حفیظ الرحمٰن شارع عثمان،

علی سټریټ چوهړپړیاں راوالپنډی ۱۹۸۷ع ۹/۱۲/

**الجواب:** دقرآن دتحریف عقیده داهل تشیع په نزد دمسلمات اومتواترات څخه ده، ددوی په مشهورکتاب تفسیرصافی کښې لیکلی دی:

المستفاد من مجموع هذه الاخبار وغیره من الروایات من طریق اهل البیت علیهم السلام ان القرآن الذی بین اظهر نالیس بتمامه کما انزل علی محمد ﷺ بل منه ما هو خلاف ما انزل الله ومنه ماهو مغیر ومحرف وانه قدحذف منه اشیاء کثیرة منها اسم علی فی کثیر من المواضع ومنها غیر ذلک .

بلکه تردې پورې لیکی چه په قرآن پاک کښې اویا زره آیاتونه دی.

کما فی اصول الکافی ص ۶۷۱ عن ابی عبد الله قال ان القرآن جاء به جبرئیل الی محمد سبعة عشر الف آیة۔

که چرته شیعه ګانو دقرآن دتحریف نه انکارکړې دې نوهغه هم په تقیه باندې مبنی دې او تقیه ددوی په نزد دومره مؤکد ده چه ددې نه بغیر چاته مسلمان هم نه وائی.لا دین لمن لا تقیة له ولا ایمان لمن لا تقیة له .(اصول کافی ص۴۱۴) پس دا مشترکه ترجمه به د شیعه ګانو دکفریاتو او تحریفاتو دقابل اعتناء کیدو کامیابه ذریعه جوړه شی،په هرسنی باندې ددې مخالفت ضروری دې.﴿۱﴾ وهوالموفق

(بقیه حاشیه د تیر مخ) والعلم الالهی متعلق بها کاشف لها علی ما هی علیه فی انفسها من اختلاف استعدادا تها التی هی من مفاتیح الغیب التی لا یعلمها الا هو .واختلاف مقتضیات تلک الاستعدادات فاذا تعلق العلم الالهی بها علی ما هی علیه مما یقتضیه استعدادها من اختیار احد الطرفین الخیر والشر تعلقت الارادة الالهیة بهذالذی اختاره العبد بمقتضیٰ استعداده الخ .(تفسیر روح المعانی ص ۲۱۷ جلد ۱ آیت:۶:۱۰ سورة البقره)

وقال الملا علی قاری واما التکلیف بما هو ممتنع لغیره کا یمان من علم الله انه لا یؤمن مثل فرعون وابی جهل وابی لهب وسائر الکفار الذین ماتوا علی الکفر فقدا تفق الکل علی جوازه ووقوعه شرعا .

(شرح فقه الاکبر ص ۱۴۱ جلد ۱ لملا علی قاری تکلیف مالا یطاق)

﴿۱﴾ عن ابن عباس رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من قال فی القرآن برأیه فلیتبوأ مقعده من النار وفی روایه من قال فی القرآن بغیر علم فلیتبوأ مقعده من النار رواه الترمذی .

(مشکواة المصابیح ص ۳۵ جلد ۱ کتاب العلم)

**آیت ,,ویعلم مافی الارحام،، اود مشین په ذریعه د بچی نر اوماده معلومول**

**سوال:** داسې مشین ایجادشوې دې چه هغه په رحم کښې دننه د نر او ماده پته ورکوی، تقریباً یقینی طورباندې مونږته ددې آلې متعلق معلومات شوی دی نوبیا د کلام الهی ,,ویعلم مافی الارحام،، به څۀ مطلب وی؟

المستفتی: ارشدعلی پړانگ چارسده......۱۹۹۰ء/۱۰/۲

**الجواب:** واضحه دې وی چه کوم معلومات د مشینونوپه ذریعه حاصلیږی هغې ته په شریعت کښې ظن وائی علم اویقین ورته نه وائی.اوچونکه په هرمشین کښې دا احتمال موجود وی چه خراب نه وی.لهٰذا ددې احتمال په وجه دې ته یقین نه وئیلې کیږی.﴿۱﴾ وهوالموفق

**د شیعه سنی مشترکه د قرآن د ترجمې گنجائش نشته**

**سوال:** څۀ فرمائی علمائې دین په دې مسئله کښې چه دحکومت پاکستان د وزارت تعلیم دطرفه مشترکه د قرآن مجید ترجمه (شیعه سنی) اتحاد دپاره لیکلې کیږی.اوغالبًا څۀ حصه ئې پوره شوې هم ده.اوس عرض دادې چه شیعه گان د قرآن دتحریف قائل دی اود موجوده قرآن د منلو اقرار صرف تقیه (دروغ) دی.داسې خلقوسره چه په مشترکه کومه ترجمه کولې شی، نوآیا دې سره به د اهل سنت دطرفه دشیعه گانو تائیدنه وی؟ آیا شیعه گان هم د قرآن قائل او مفسر اومترجم دی.آیا داسې به د اهل سنت علماؤ (اراکین کمیټی) دطرفه د شیعه گانو تائید نه کیږی؟ سوال دادې چه آیا ددې کمیټۍ رکن جوړیدل اوداسې ترجمه کول جائزدی یا نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حفیظ الرحمٰن شارع عثمان،

علی سټریټ چوهړپړیاں راوالپنډی ۱۹۸۷ء/۱۱/۲۴

---

﴿۱﴾ قال العلامه الوسی وانه یجوزان یطلع الله تعالیٰ بعض اصفیائه علی احدی هذه الخمس ویرزقه عزوجل العلم بذلک فی الجمله وعلمها الخاص به جل وعلا ماکان علی وجه الاحاطة والشمول لاحوال کل منها وتفصیله علی الوجه الاتم ......قال علی القاری فی شرح الشفاء الاولیاء وان کان قدینکشف لهم بعض الاشیاء لکن علمهم لا یکون یقیناً والهامهم لا یفید الا امراً ظنیا ومثل هذا عندی بل هو دونه بمراحل علم النجومی ونحوه بواسطة امارات عنده بنزول الغیث وذکورة الحمل او انوثته او نحو ذلک ولا اری کفرمن یدعی مثل هذاالعلم فانه ظن عن امرعا دی ......واما ظن الغیب فقد یجوز من المنجم وغیره اذاکان عن امرعادی ولیس ذلک بعلم الخ.(تفسیر روح المعانی ص۱۶۸، ۱۶۹ جلد۱۲ سورة لقمان: ۳۳، ۳۴)



**الجواب:** داهل اسلام شیعه گانو سره مشترکه ترجمه اوتفسیرکول شرعاً، عرفاً او سیاسةً قبیح او ممنوع دی،شرعاً په دې وجه چه دا اقدام ددوی په کفریاتو باندې پرده اچول﴿۱﴾ او ددوی دتکفیر نه ژبه بندول دی.حالانکه په پاکستانی او ایرانی شیعه گانو کښې مسلمان نشته.اوعرفاً په دې وجه چه د عوامونه به بُغض فی الله ختم شی.﴿۲﴾ اود شیعه گانو دایجنټانو نه به نورهم متاثره شی.او سیاسةً په دې وجه چه اوس کلیدی او لوئې لوئې عُهدې د تناسب نه زیاتې دوی سره دی.اودې اقدام سره به اکثر بلکه زیاتو عُهدو باندې دوی قابض شی.﴿۳﴾ حکومت چه قادیانیان غیرمسلمه اوگرځول نوځۀ تناسب ئې قائم کړې دې.فافهم وهوالموفق

**نمر په چینه کښې ډوبیدل او سائنسی تحقیقات**

**سوال:** د نمرپه باره کښې قرآن پاک کښې په شپاړسمه سیپاره کښې چه د ذوالقرنین متعلق کوم بیان دې په هغې کښې دنمر باره کښې صفا وئیلې شوی دی چه نمر ډوبیږی، خواوس چه په عالم دنیاکښې سائنس ډیره زیاته ترقی کړې ده په دې باره کښې وضاحت سره دا پته لگی چه نمر او سپوږمۍ نه ډوبیږی اوپه خپل ځائې باندې مقیم اوسیږی، ځکه چه په یوځائې کښې کله شپه شی نود دنیا په یونه یوحصه کښې نمرضرور پرقیږی،نوپه دې آیت او موجوده مشاهده کښې تطبیق او وضاحت کولوسره زمونږ ذهنی پریشانی لرې کړئ؟

المستفتی: محمداشرف،ایم، او، ډی، سی، کینټین،

ایچ ډی،ایس،ایس ډی پشاور ۱۹۶۹ء

**الجواب:** د سورة کهف په تفسیرکښې مفسرینو تصریح کړې ده چه د نمرپه چینه او سمندرکښې ډوبیدل بادی (ظاهری) اور سرسری نظرکښې دی، گینی په حقیقت کښې معامله داسې نه ده، اوپه دې تعبیرکښې حکمت دادې چه عوام په دې حقیقت باندې مشکل سره پوهیږی.﴿۴﴾ لهٰذا په بې کاره مسئلو کښې

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری وذلک لانه رضی بالکفر والرضی بالکفر کفر سواء کان بکفر نفسه اوبکفرغیره .(شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص۱۵۴ منها استحلال المعصیة الخ)

﴿۲﴾ عن ابی امامه قال قال رسول الله ﷺ من احب لله وابغض لله واعطی لله ومنع لله فقد استکمل الایمان .(مشکواة المصابیح ص۱۴ جلد۱ کتاب الایمان الفصل الثانی)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین حاصله انهم لما کانوا مخالطین اهل الاسلام فلا بدّمن تمیزهم عنا کی لا یعا مل معاملة المسلم من التوقیر والاجلال وذلک لایجوز.(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۹۹ جلد۳ مطلب فی تمیز اهل الذمة فی الملبس فصل فی الجزیة)

﴿۴﴾ قال العلامه الوسی بان المراد وجدها فی نظر العین کذلک اذلم یرهناک الا الماء لا انها کذلک حقیقة ،وهذا کما ان راکب البحر یراها کانها تطلع من البحر وتغیب فیه اذالم یرالشط والذی ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

(مذهبی حیثیت سره) د مشغولیدو په ځائې په ظاهر او مسلم باندې اکتفا کړې شوې ده، چه د فتنې نه بغیر مقصود ته رسائی حاصله شی. فقط

**د قرآن د مفرد صیغوپه ځائې داقتباس په طور دجمع صیغې استعمالول جائزدی**

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین د شرع متین ددې آیت باره کښې ,,فاطر السمٰوٰت والارض انت ولیی فی الدنیا والآخرة توفنی مسلماً والحقنی بالصٰلحین،، که څوك دا آیت ددعا په ځائې کښې دجمع صیغوسره وائی یعنی ,,توفنا مسلماً والحقنا بالصالحین،، نوآیا دې سره څۀ ګناه کیږی بعضې خلق وائی چه دجمع صیغه استعمالول کفریه کلمات جوړیږی نوشرعی حکم لیکلوسره د شکریه اومننې موقعه راکړئ؟

المستفتی: قائم شاه نوتهین ضلع کیمل پوراتك.... ۱۹۶۹ء/۱۱/۲۷

**الجواب:** دا داقتباس یوقسم دې چه اجماعاً جائزدې:

قال فی خزانة الادب ثم اعلم انه یجوز ان یغیر لفظ المقتبس منه بزیادة ونقصان اوتقدیم او تاخیر او ابدال الظاهر من المضمر او غیر ذلک .(هکذا فی هوامش عقود الدرر ص ۴۵۰) فقط

**په سورة البقره کښې د بقره نه مراد غوا ده که غوئې**

**سوال:** په قرآن مجید کښې چه سورة بقره ده، نوپه دې کښې د بقره نه مراد غوا (مؤنث) ده یا غوئې (مذکر) دې. ځکه چه اکثرمفسرین هم په دې کښې مختلف دی چا غواسره اوچا غوئی سره تفسیر کړې دې. لهٰذا تعین کولوسره وضاحت اوکړئ.

المستفتی: نامعلوم.......... ۱۹۶۹ء

**الجواب:** د ابومنصور ماتریدی رحمة الله علیه نه منقول دی چه دا مذکردې. او ,,تا،، دوحدت دپاره ده او د اکثر مفسرینو په نزد تا د تانیث دپاره ده، د دواړو قرینې موجود دی. ﴿۱﴾ یولره هم غلط ګڼړل نه دی پکار. فقط

(بقیه حاشیه د تیرمخ) فی ارض ملساء واسعة یراها ایضا کانها تطلع من الارض وتغیب فیها ولا یرد علی هذا انه عبر بوجد والوجدان یدل علی الوجود لما ان وجد یکون بمعنی رای کما ذکره الراغب فلیکن هنا بهذاالمعنی ثم المراد بالعین الحمئة اما عین فی البحر اوالبحر نفسه وتسمیته عینا مما لاباس به خصوصاً وهو بالنسبة لعظمة الله تعالیٰ کقطرة وان عظم عندنا.(تفسیر روح المعانی ص ۳۶ جلد ۹ سورة الکهف :۸۶)

﴿۱﴾ قال العلامه الوسی "وقرایحیٰ" وعکرمه. والباقران الباقر .و هو اسم لجماعة البقر' والبقر اسم جنس جمعی یفرق بینه و بین واحده باالتاء و مثله یجوز تذکیره' و تانیثه' کنخل منقعر و النخل باسقات و جمعه اباقرو یقال فیه بیقور و جمعه بواقر و فی البحر انما سمی هذا الحیوان بذالک لانه یبقر الارض ای یشقها للحرث .(تفسیر روح المعانی ص ۲۵۷ جلد ۱ سورة البقره آیت : ۷۰)



**د نیکر اغوستونکو او سرتور سر خلقوته د قرآن تلاوت**

**سوال:** څۀ فرمائی علماء دشرع متین دې مسئلې باره کښې چه (۱) دقرآن د تلاوت اوریدونکی دقاری اومعلم مخې ته نیکر اغوستی ناست وی، چه دې کونډئ اونیمه پنډئ ښکاری، آیا دا دقرآن دتلاوت دآدابو خلاف نه دی، آیا قاری په دې صورت کښې قرآن لوستلې شی؟ (۲) آیا ددوی په وړاندې د قرآن ترجمه اومفهوم بیانولې شی؟ (۳) په دې حالت کښې قاری سره داخلق بسم الله وئیلې شی. یا قاری ئې په دوی وئیلې شی؟ کله چه دا ټول صورتونه قصداً او اهتمام سره وی لکه چه په بعضې ادارو کښې دسحر د پی ټی په حالت کښې ددې صورتونو اهتمام کولې شی.

المستفتی: شاپور محمد خطیب ...۱۹_ ایف، ایف رجمنټ ملیر کینټ کراچی

**الجواب:** په داسې حالت کښې قرآن وئیل اوپه خلقو وئیل بې ادبی ده، البته د بې دینئ په ماحول کښې د تبلیغ په طور یا داصلاح د توقع په خیال بې ادبی نه ده. ﴿۱﴾ فقط

**د توحید دآیاتونو په موجودګئ کښې په نورو آیاتونوکښې د تکلفاتو ضرورت نشته**

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ په جمات کښې یوحافظ صاحب د توحید درس ورکوی، کله چه هغه دې آیت ته راورسیده: ,,ان الذین کفروا ینادون لمقت الله اکبر من مقتکم انفسکم اذ تدعون الی الایمان فتکفرون،، الآیة. او دا ترجمه ئې اوکړه چه کوم خلق منکرشو هغوی ته به آواز کولې شی چه لکه څنګه تاسو دخپلو ځانونونه نفرت دې ددې نه ډیر زیات دخدائې نه نفرت وو، کله چه به تاسو ایمان طرف ته یعنی توحید طرف ته رابللی شوئ، نوتاسو به نه منلو، نویو سوال استاذ د عربئ نه ناخبره حافظ صاحب ته اووئیل چه دروغ وائې او غلط ترجمه کولوسره خلقوته دهوکه ورکوې، نوددې سړی د بې هودګئ باره کښې شرعی حکم څه دې؟

المستفتی: حافظ محمد طیب اتحاد بکډپو کهوټه ضلع راوالپنډی ۱۹۶۹ء/۴/۱۷

﴿۱﴾ وفی الهندیه الکلام منه ما یوجب اجراً کا لتسبیح والتحمید وقرأة القرآن والاحادیث النبویه وعلم الفقه وقد یأثم به اذا فعله فی مجلس الفسق وهو یعلمه لما فیه من الاستهزاء والمخالفة لموجبه وان سبح فیه للاعتبار والانکار ویشتغلوا عما هم فیه من الفسق فحسن و کذا من سبح فی السوق بنیة ان الناس غافلون مشتغلون بامور الدنیا وهو مشتغل بالتسبیح وهو افضل من تسبیحه وحده فی غیر السوق کذافی الاختیار شرح المختار. (فتاویٰ هندیه ص ۳۱۵ جلد ۵ الباب الرابع کتاب الکراهیة)

**الجواب:** مقت بُغض ته وائی او نفرت هم دې سره مناسبت ساتی.لیکن دا ترجمه چه ,,ددې نه زیات مو دالله نه نفرت وو،، که دیو معتمد سړی نه منقول نه وی نو د ګرفت قابل دې.《۱》 دتوحید باره کښې قرآن کښې ډیرآیاتونه دی ددې تکلف هیڅ ضرورت نشته،باقی پاتې شوه د فاسد العقیده سړی داصلاح طریقه نوهغه ته دصحیح عقیدې علماؤته د رجوع کولو اودهغوی د تصنیفاتو دمطالعې ترغیب ورکول کامیابه طریقه ده.فقط

## د ,,الله نور السمٰوٰت والارض،، تفسیر

**سوال:** د قرآن پاك ددې ارشاد متعلق وضاحت اوکړئ.چه ,,الله نورالسمٰوٰت والارض،، حالانکه الله تعالٰی خوپخپله نورنه دې،بلکه د نورخالق دې او نور دالله تعالٰی مخلوق دې،نوعرض دادې چه آیا الله تعالٰی نوردې که نه دې؟

المستفتی: محمد جاوید

**الجواب:** دالله تعالٰی یو اسم النورهم دې.《۲》(ترمذی) او الله تعالٰی دنورو اسباب، دنورخالق هم دې.

کما فی قوله تعالیٰ وجعل الظلمات والنور ـ《۳》الله نور السّمٰوٰت والارض《۴》الآیة

---

《۱》قال الالوسی ینادونِ :وهم فی النار وقد مقتوا انفسهم الامارة بالسوء التی وقعوا فیما وقعوا باتباع هواها حتی اکلوا انا ملهم من المقت کما اخرج ذلک عبد بن حمید عن الحسن وفی بعض الآثار انهم یمقتون انفسهم حین یقول لهم الشیطان فلا تلو مونی ولوموا انفسکم ......لمقت الله اکبر من مقتکم انفسکم ......معمول لقول مقدر بفاء التفسیر ای ینادون فیقال لهم لمقت الخ...... ای لمقت الله ایاکم اوانفسکم اکبر من مقتکم انفسکم واللام للابتداء او للقسم ،والمقت اشدالبغض ......لمقت، الله تعالیٰ انفسکم اکبر من مقتکم ایاها لانکم دعیتم مرة بعد مرة الی الایمان فتکرر منکم الکفر ......والمعنی لمقت الله تعالیٰ انفسکم فی الدنیا اذ تدعون الی الایمان فتکفرون اشد من مقتکم ایاها الیوم الخ.
(تفسیر روح المعانی ص۷۶ جلد ۱۳ سورة المؤمن : ۱۰)

《۲》عن ابی هریره قال قال رسول الله ﷺ ان لله تعالیٰ تسعة وتسعین اسماً......النور الهادی البدیع الباقی الوارث الرشید الصبور رواه الترمذی والبیهقی فی الدعوات الکبیر وقال الترمذی هذا حدیث غریب .(مشکواة المصابیح ص ۱۹۹ جلد۱ کتاب اسماء الله تعالیٰ الفصل الثانی )

《۳》(پاره : ۷ سورة انعام رکوع : ۷ آیت : ۱ )

《۴》(پاره : ۱۸ سورة النور رکوع : ۱۱ آیت : ۳۵)



## د عیسٰی علیه السلام پیدائش په مثل د پیدائش د آدم علیه السلام تفسیر

**سوال:** (۱) د علمائې کرامو دهدایت مطابق سورة آل عمران، مریم، انبیاء، تحریم، څلورواړه سورتونه مې اوکتل چرته هم آدم علیه السلام ته بې پلاره،بغیراب او بغیرباپ،بغیر والد یا والدین نه دی فرمائیلې شوی،نوبیا عیسٰی علیه السلام دهغوی په مثل کیدوسره څنګه بغیرپلاره اوګرځولې شو،آدم علیه السلام خوځکه بغیر مور او بغیرپلار تسلیم کړې شوې دې چه اول انسان وو،په اولیت کښې مورپلار مانع دی،پس عیسٰی علیه السلام په ولادت کښې مثل نه شو،ځکه چه آدم علیه السلام مولود نه دې،البته په دې کښې عیسٰی علیه السلام مثل دې چه ,,خلقه من تراب ثم قال له کن فیکون،، (آل عمران) نوددې مثلیت پوره وضاحت اوکړئ؟(۲) که د یوې ښځې تر اوسه پورې واده نه دې شوې،اوهغه حامله اوموندې شی یائې بچې پیداشی نو په دې باره کښې صریح الفاظو کښې داسلامی شریعت څه فیصله ده؟

المستفتی: حافظ مومن صفدرجنګ ګورنمنټ
نارمل سکول شاه پورشهر ۱۳ارجب ۱۳۹۳ه

**الجواب:** (۱) دقرآن طرزبیان د دلالت او اقتضاء په طور په دې حقیقت باندې ناطق دې چه حضرت آدم علیه السلام بغیر د مورپلارنه پیداشوې دې اوهم دا معنٰی سلف صالحینو مراد اخستې ده،اول استاذ ړومبو شاګردانوته هم دا ښودلی ده.《۱》اودحضرت عیسٰی علیه السلام باره کښې دالله تعالٰی هم داتقریر کافی دې لم یمسسنی بشر ولم اک بغیا.《۲》په دې کښې دجائز اوناجائز دواړه قسم دجماع د نفی باوجود د ولادت پیشکش موجود دې،(۲) کله چه دخارجی دلائلو نه دیو محتمل او مشتبه امر تعین اوترجیح ثابت شی نوشریعت مقدس ددې نه انکار نه کوی.وهو الموفق

---

《۱》قال الآلوسی المثل هنا لیس هو المثل المستعمل فی التشبیه والکاف زائدة بل بمعنی الحال والصفة العجیبة ای ان صفة عیسیٰ عند الله ای فی تقدیر ه وحکمه ...... کمثل آدم ای کصفته وحاله العجیبةالتی لا یرتاب فیها مر تاب ......وفی الآیة دلالة علی صحة النظر والاستدلال لانه سبحانه احتج علی النصاریٰ واثبت جواز خلق عیسیٰ علیه السلام من غیر اب بخلق آدم علیه السلام من غیر اب ولاام الخ.
(تفسیر روح المعانی ص۲۹۷، ۲۹۸ جلد ۳ سورة آل عمران: ۵۹)

《۲》(پاره:۱۶ سورة مریم رکوع : ۵ آیت : ۲۰)

**په معمول واحد باندې د عاملینو راتلل اود بعضې جمع صیغوسره دالف نه کیدو اشکال**

**سوال:** محترم مفتی صاحب! لاندې آیاتونه اوګورئ چه په یوفعل باندې دوه حروف عامل داخل دی نوپه هغې کښې ړومبی حرف عمل کړې دې اوکه دوئم، مثلاً ان لن نجمع عظامه (قیامه) ان لن نقدر (انبیاء) فان لم تفعلوا ولن تفعلوا (البقره) وغیره. (۲) په قرآن مجید کښې باء و(بقره) ۲، ۶۱ (آل عمران) ۳، ۱۱۲ فان فاء و(بقره) ۲، ۲۲۷ جاؤ (النمل) ۲۷، ۸۴ (نور) ۲۴، ۱۱ (فرقان) ۲۵، ۴ په آخر کښې دجمع الف ولې نه دې لیکلې شوې. جواب راکړئ؟

المستفتی: حافظ مومن صفدر جنګ ګورنمنټ
نارمل سکول شاه پورشهر ۱۳|رجب ۱۳۹۳هـ

**الجواب:** (۱) په دې کلماتو کښې دوه عامل په یومعمول باندې داخل نه دی بلکه د هریو معمول عامل جداجدا دې. والتقدیر ان الشان لن نجمع، انه لن نقدر وان شرطیه مجموعه لم تفعلوا وغیره باندې داخل دی. ﴿۱﴾ (۲) دقرآن مجید رسم الخط خلاف القیاس دې په دې کښې به داما م الصحائف صحیفه عثمان رضی الله عنه اتباع کولې شی، هم دا سلفاً خلفاً متعامل دې. کما صرح به الاتقان ص۱۲۷ جلد۲ ﴿۲﴾ وهوالموفق

**په قرآن مجید کښې د وحی په ذریعه نسخ واقع شوې ده**

**سوال:** زما یودوست دې هغه ماته ددې خبرې منلو اود ایمان دجزو جوړولو تاکید کوی، چه په قرآن مجید کښې څه آیاتونه داسې ووچه هغه نازل شو لیکن روسته د وحی په ذریعه منسوخ التلاوت شول، اوهغه آیاتونه په موجوده قرآن مجید کښې شامل نه دی، دهغه وینا ده چه داخبره د احادیثونه ثابته ده، لیکن دحدیث مکمل حواله نه شی ښودلې. نو آیا الله تعالی نعوذبالله څوک مصنف یا شاعردې چه په خپل کلام کښې تنسیخ یا ترمیم کوی مهربانی اوکړئ جواب راکړئ؟

المستفتی: محمدمسعود صدیقی شاهین کالونی مردان ۱۱۹|محرم ۱۳۹۲هـ

﴿۱﴾ قال العلامه الوسی ان مخففة من الثقیلة واسمها ضمیر الشان مخذوف ای ایحسب ان الشان لن نجمع بعد التفرق عظامه. (روح المعانی ص ۲۳۶ جلد ۱۶ سورة القیامة آیت : ۳)

﴿۲﴾ قال العلامه سیوطی فی الاتقان سئل مالک عن الحروف فی القرآن مثل الواو والالف اترى ان یغیر من المصحف اذا وجد فیه کذلک قال لا قال ابو عمر ویعنی الواو والالف لمزیدتین فی الرسم المعدومتین فی اللفظ نحو اولوا وقال الامام احمد یحرم مخالفة خط مصحف عثمان فی واو او یاء اوالف او غیر ذلک الخ. (الاتقان فی علوم القرآن ص۱۶۷ جلد۲ نوع فی مرسوم الخط واداب کتابته)



**الجواب:** واضحه دې وی چه دالله په کتابونو کښې نسخ یقیناً واقع شوې ده اوپه دې کښې هیڅ استبعاد نشته، ځکه چه دالله تعالی احکام د نفس داصلاح دوائی ده، نولکه څنګه چه یوحکیم حاذق د مرض، موسم او مزاج په وجه دوائی بدلوی نودغسې حکیم مطلق جل جلاله د انسانانوپه دوایئ کښې د مزاج او زمانې په وجه تبدیلی کوی. ﴿۱﴾ چه دهغې نه کول خلاف مصلحت وی، اود رجم متعلق دې واضحه وی چه داحکم په قرآن کښې موجودوو ددې نه پس منسوخ التلاوت شو. ﴿۲﴾ (رواه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجه وابوداؤد ومالك) اوپیغمبر علیه السلام او خلفائې راشدینو باقاعده حد درجم جاری کړې دې. فقط

**د هوالذی خلق السمٰوٰت والارض فی ستة ایام وکان عرشه علی الماء آیت تفسیر**

**سوال:** دعالم د پیدائش باره کښې ماسره یوتفسیر دې چه دهغې په دولسمه سیپاره کښې دویم آیت هوالذی خلق السمٰوٰت والارض فی ستة ایام وکان عرشه علی الماء،، په حاشیه کښې ئې دې سره لیکلی دی په بخاری شریف کښې دی چه اول اول دالله تعالی د ذات نه سوا اوبه یا عرش هیڅ نه وو، اول الله تعالی اوبه پیدا کړې بیائې عرش، بیا قلم، بیا ئې لوح محفوظ پیداکړو، مهربانی اوکړئ ددې حدیث عربی راته اولیکئ او اوفرمایئ چه آیا واقعی داحدیث ددې آیت تفسیردې؟

المستفتی: مبعوث الوارث اسسټنټ پروفیسر
کالج تهانه ملاکنډ ایجنسی ۴|اګست ۱۹۸۳ء

**الجواب:** دبخاری شریف حدیث صرف دومره دې: کان الله ولم یکن شئ وکان عرشه علی

﴿۱﴾ قال العلامه الوسی والآیات انما نزلت لمصالح العباد وتکمیل نفوسهم فضلامنه تعالیٰ ورحمة وذلک یختلف باختلاف الاعصار والاشخاص کا للدواء الذی تعالج به الا دواء فان النافع فی عصر قد یضر فی غیره والمزیل علة شخص قد یزیل علة سواه، فاذن قد یکون عدم الحکم او الاثقل اصلح فی انتظام المعاش وانظم فی اصلاح المعاد والله تعالیٰ لطیف حکیم الخ. (تفسیر روح المعانی ص۵۵۶ جلد۱ سورة البقرة:۱۰۶)

﴿۲﴾ عن عمر قال ان الله بعث محمداً بالحق انزل علیه الکتاب فکان مما انزل الله تعالیٰ ایة الرجم رجم رسول الله صلی الله علیه وسلم ورجمنا بعده والرجم فی کتاب الله حق علی من زنی اذا احصن من الرجال والنساء اذا قامت البینة او کان الحبل او الاعتراف. متفق علیه. (مشکواة المصابیح ص ۳۰۹ جلد۲ کتاب الحدود)

الماء(۱) زیاتی مضمون د نورو کتابونو داحادیثونه ثابت دي.(۲) وهوالموفق

## د قرآن مجید رسم الخط دعام رسم الخط نه جدادي

**سوال:** قرآن مجید کښي چه چرته دجمع صیغه ده مثلاً جاءو، هلته الف نه وی لیکلي شوي،حالانکه د صرف اونحو د قواعدو په لحاظ سره الف لیکل پکاردی ځکه چه دجمع علامت الف دي،جواب راکړئ؟

المستفتی: ابوسلمان ابوظهبی (U, A, E) ۱۹۹۰ء ۱۸|۸|

**الجواب:** دقرآن مجید رسم الخط د معروف رسم الخط نه جدادي (۳) کله د واؤ جمع نه پس الف نه لیکلي کیږی لکه په جاءو کښي،اوکله مفرد سره الف لیکلي کیږی لکه په یدعوا، ادعوا کښي،فلیراجع الی المصحف.وهوالموفق

## د ,,قل العفو،، آیت تفسیر

**سوال:** د الله تعالی ارشاد ,,قل العفـو،، د رسول الله ﷺ تول ژوند ددي حکم مطابق تیرشو،اود قرآن پاك په احکامو باندې عمل هغه وخت صحیح وی کله چه دحضور ﷺ په ژوند باندي عمل اوشی،او ډیرځل هغه زمکه چه هغي لره مالك پخپله نه شوه کرلي،نوهغه خلقوته ورکړي شوه ځوك چه دهغي حقدار وو ددي باوجود د ,,قل العفو،، کلمي حکم صفا وجوبی حکم نه ګرځولو څه وجه ده، اودا په استحبابی احکامو کښي دداخلولو څه دلائل دی؟

المستفتی: محمد ظهیرمحله ګوجر شینکي تحصیل وضلع اټك ۱۴۰۱۱ه|۷|۱۰

(۱)عن عمران بن حصين قال انى عند النبى ﷺ اذجاءه قوم من بنى تميم فقال اقبلوا البشرىٰ يابنى تميم قالوا بشرتنا فاعطنا فدخل ناس من اهل اليمن فقال اقبلوا البشرىٰ...... ونسألك عن اول هذا الامر ماكان قال كان الله ولم يكن شئ قبله وكان عرشه على الماء ثم خلق السمٰوات والارض وكتب فى الذكر كل شئ الخ.(صحيح البخارى ص۱۱۰۳ جلد۲ باب قوله وكان عرشه على الماء كتاب الرد على الجهميه)

(۲)عن عبادة بن الصامت قال قال رسول الله ﷺ ان اول ما خلق الله القلم .(مشكواة المصابيح ص ۲۱ جلد۱ باب الايمان بالقدر)اول ماخلق الله العقل ،ذكره فى الاحياء قال العراقى اخرجه الطبرانى والاوسط وابو نعيم باسنادين ضعيفين .(الموضوعات الكبرى ص۷۵ رقم :۲۶۷)

(۳)قال العلامه سيوطى فى الاتقان قد خالفها فى بعض الحروف خط المصحف الامام وقال اشهب سئل مالك هل يكتب المصحف على ما احدثه الناس من الهجاء فقال لا الا على الكتبة الاولىٰ......... سئل مالك عن الحروف فى القرآن مثل الواو والالف اترى ان يغير من المصحف اذا وجدفيه كذلك قال لا قال ابو عمر ويعنى الواو والالف المزيدتين فى الرسم المعدومتين فى اللفظ نحو اولوا وقال الامام احمد يحرم مخالفة خط مصحف عثمان فى واو او ياء او الف او غير ذلك .(الاتقان فى علوم القرآن ص۱۶۶ ،۱۶۷ جلد ۲ النوع فى مرسوم الخط واداب كتابته)



**الجواب:** که د ,,قل العفو،، نه معلوم شوي حکم وجوبی وي نوالله تعالی به زکوٰة نه فرض کولي،دا یوغیرمعقول کاردي چه په مکلف باندي ځلویښتمه حصه ورکول هم فرض دی،اوحاجت نه زیات مال ورکول هم فرض دي،اود سلف صالحینو د تعامل نه مخالفت دي.پس بهرحال یا دا امراستحبابی دي یا منسوخ دي، دا دصحابی ﷺ نه روایت دي.(۱)

**نوټ:** د امراستحبابی کیدوپه تقریر باندي دقرآن حکم انفاق العفو دي، نه چه مصادرة العفو.فافهم.وهوالموفق

## په قرآن مجید (کلام لفظی) باندي قسم کول جائزدی

**سوال:** قرآن مجید مخلوق دي که غیرمخلوق، اوپه دي باندي قسم کول څنګه دی؟بینوا وتوجروا

المستفتی: فضل رحیم مینګوره سوات.....۲۸|شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** چونکه دا کلام لفظی په کلام نفسی باندي دلالت کوی چه دا صفت واحده شخصیه اوغیرمخلوق دي،لهٰذا متاخرین مفتیانو په دي کلام لفظی باندي قسم کول جائز ګرځولی دی.(۲) وهوالموفق

## قرآن آیاتونه د ګس طرفه الټه لیکل جائزنه دی

**سوال:** من كتب اية القرآن مقلوباً من الجانب الايسر اى هكذا "[illegible]" فما حكمه الجواز اوالمنع -بينواوتوجروا

المستفتی :نامعلوم......۱۴۰۱/۵/۲۹ھ

**جواب:** لاتجوز قرأة القرآن مغايرة عن رسم خط المصحف العثمانى كما فى

(۱)قال العلامه ابن كثير اى ذلك الا يجهد مالك ثم تقعد تسال الناس . و يدل على ذلك ما رواه ابن جرير ...... عن ابى هريرة قال قال رجل يا رسول الله عندى دينار قال انفقه على نفسك قال عندى آخر قال انفقه على اهلك قال عندى آخر قال انفقه على ولدك قال عندى آخر قال فانت ابصر وقد رواه مسلم و ايضاً عن جابر ان رسول الله ﷺ قال لرجل ابدأ بنفسك فتصدق عليها فان فضل شئ لاهلك فان فضل شئ عن اهلك فلذى قرابتك فان فضل عن ذى قرابتك شئ فهكذا و هكذا الخ (تفسير ابن كثير ص ۳۳۴ جلد ۱ پ : ۲ سورة البقرة آيت : ۲۱۹ )

(۲)قال العلامه ابن عابدين (قال الكمال الخ) مبنى على ان القرآن بمعنى كلام الله فيكون من صفاته تعالىٰ كما يفيده كلام الهداية حيث قال ومن حلف بغير الله تعالىٰ لم يكن حالفاً كالنبى والكعبة لقوله عليه الصلاة و السلام من كان منكم حالفا فليحلف بالله اوليذر وكذا اذا حلف بالقرآن لانه غير متعارف فقوله وكذا يفيد انه ليس من قسم الحلف بغير الله تعالىٰ بل هو من قسم الصفات ولذا علله بانه غير متعارف.....وتعليل عدم كونه يمينا بانه غيره تعالىٰ لانه مخلوق لانه حروف وغيرالمخلوق هو الكلام النفسى منع بان القرآن كلام الله منزل غير مخلوق ولا يخفىٰ ان المنزل فى الحقيقة ليس الا الحروف المنقضية المنعدمة وماثبت قدمه استحال عدمه غير انهم اوجبوا ذلك لان العوام اذا قيل لهم ان القرآن مخلوق تعدوا الى الكلام مطلقاً الخ.(ردالمحتار هامش الدر المختار ص۵۶ جلد ۳ مطلب فى القرآن كتاب الايمان)

الاتقان وقال اشهب سئل مالک هل یکتب المصحف علی ما احدثه الناس من الهجاء فقال لا الا علی الکتبة الاولیٰ رواه الدانی فی المقنع ثم قال ولا مخالف له من علماء الامة وقال الامام احمد یحرم مخالفة خط مصحف عثمان فی واو او یا او الف او غیر ذلک ﴿۱﴾قلت القرآن عربی لفظاً وکتبا وهذ المقلوب لایسمی عربیا. فافهم ـ وهوالموفق

## تفسیر ته بې اودسه لاس وړل

**سوال:** څۀ فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه تفسیر یا نور اسلامی کتابونه چه په هغې کښې قرآنی آیاتونه وی هغې ته بې اودسه لاس وړل څنګه دی؟ وضاحت اوکړئ

المستفتی: حبیب الله فقیرآباد پشاور..... ۱۹/ذی قعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** کله چه دآیات نه نور لیکل زیات وی نوبې اودسه لاس وړل ناجائز نه دی. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## قرآن مجید منکوس (الټه) چهاپ کولوکښې څه مصلحت نشته

**سوال:** محترم مفتی صاحب! حمید بك ډپو قرآن پاك دمصحف عثمانی نه خلاف چهاپ کړې دې یعنی د سورة الناس نه ئې شروع کړې اوپه سورة نباء باندې ئې ختم کړې دې. په شریعت کښې ددې څه حکم دې؟ بینوا وتوجروا

**الجواب:** د قرآن مجید منکوس لوستل د بعضې مصلحتونو په وجه جائزدی. کمافی ردالمحتار (ص ۵۴۶ جلد ۱) ﴿۳﴾ قوله وان یقرأ منکوساً وانما جوز للصغار تسهیلاً لضرورة التعلیم.

---

﴿۱﴾ (الاتقان فی علوم القرآن للعلامه سیوطی ص۱۶۷ جلد۲ النوع فی مرسوم الخط واداب کتابته)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین ویکره مس المحدث المصحف کما یکره للجنب وکذا کتب الاحادیث والفقه عندهما والاصح انه لا یکره عنده ......فتلخص فی المسئلة ثلاثة اقوال ......بهذاالتفصیل بان یقال ان کان التفسیر اکثر لا یکره وان کان القرآن اکثر یکره والاولیٰ الحاق المساواة بالثانی وهذاالتفصیل ربما یشیر الیه ماذکرناه عن النهروبه یحصل التوفیق بین القولین. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۱۳۰ جلد ۱ قبیل باب المیاه)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۰۴ جلد ۱ قبیل باب الامامة)



لیکن په منکوس لیکلو کښې هیڅ مصلحت نشته. بلکه په دې کښې فساد دې. وهو ان یعسر علیه القرأة مرتبا فی الصلاة. وهوالموفق

## د ملازمت په دوران کښې دتلاوت کولوحکم

**سوال:** زه سرکاری ملازم یم، ډیوټی کله د شپې وی کله د ورځې. آیا د ډیوټۍ په دوران کښې دقرآن پاك تلاوت جائزدې اوپه دې تلاوت به ثواب ملاویږی؟ زه تلاوت هغه وخت کوم کوم وخت چه هیڅ کارنه وی. اوزه فارغ یم؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمد حنیف محکمه موسمیات خیبر روډ پشاور ۱۹۸۴ء/۶/۹

**الجواب:** که د سرکارپه نزد دا تلاوت د اعتراض قابل وی نوپه یادو تلاوت کول پکاردی. ﴿۱﴾ فافهم وهوالموفق

## د تعلیم د آسانئ دپاره د آخری سیپارې معکوس چهپائی

**سوال:** نن صبا په اکثرومدرسو کښې د تجویدالقرآن په شعبو کښې د ماشومانو د تدریس دپاره خصوصاً د آخری سیپارې ,,عم یتساءلون،، چهپائی داسې کیږی چه دهغې ابتداء د سورة فاتحې نه کیږی اود ,,ولا الضالین،، نه پس سورة الناس او ددې نه پس سورة الفلق ترآخره پورې خلاف ترتیب د سورة نباء پورې سیپاره مکمل کړې شوې ده. نوآیا په دې مذکوره ترتیب سره دعم سیپارې چهاپ کول د شریعت په رو سره جائزدی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: قارې فیاض الاسلام مردان..... ۱۹۸۴ء/۶/۱۱

**الجواب:** دا ترك ترتیب ماشومانو دپاره جائزدې. کما فی ردالمحتار ص۳۶۷ ج۱ قوله ولا یقرا منکوساً وانما جوز للصغار تسهیلاً لضرورة التعلیم انتهیٰ. لیکن داسې تالیف ته آخری سیپاره وئیل

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین ولیس للاجیرالخاص ان یعمل لغیره بل ولا ان یصلی النافلة قال فی التتار خانیه وفی فتاویٰ الفضلی واذا ستأجر رجلاً یوما یعمل کذا فعلیه ان یعمل ذلک العمل الی تمام المدة ولایشتغل بشئ آخر سوی المکتوبة وفی فتاویٰ سمرقند وقدقال بعض مشائخنا له ان یؤدی السنةایضاً واتفقوا انه لا یؤدی نفلا وعلیه الفتویٰ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸ جلد۵ باب ضمان الاجیر)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۰۴ جلد۱ قبیل باب الامامة)

د تالیف عثمانی نه ښکاره مخالف دي.﴿۱﴾ بخلاف القرأة. فافهم. وهوالموفق

## د معراج نبوی متعلق د اداره فروغ اردو لاهور ,,رسول نمبر،، زړه ورتیا

**سوال:** اداره فروغ اردو لاهور یوه رساله اوباسی، تیرکال ددې رسالې ,,رسول نمبر،، شائع کړې شو. حکومت ورته په لکهونو انعام ورکړو. په اخباراتو، ریډیو، ټی وی باندې ددې نمبر ډیره مشهورتیا اوشوه، په رساله ,,رسول نمبر،، جلددوئم شماره نمبر ۱۳۰، دسمبر ۱۹۸۲ء باب اول ص ۶۰ پیراګراف نمبر ۱۲۲ باندې ډاکټر حمیدالله لیکی:

نبی کریم ﷺ شپه خپل مرحوم تره سره تیره کړه، هلته هغوی یو متبرك خوب اولیده، وروسته ډاکټر صاحب لیکی: پیراګراف نمبر ۱۲۴ ,,خدائې چونکه هرځائې کښې موجوددې لهٰذا دمادی فاصلې طې کولو هیڅ سوال نه پیدا کیږی، قرآن پاك دمعراج دپاره لفظ رؤیا استعمال کړې دې پخپله رسول الله ﷺ فرمائی دمعراج په وخت زه دخوب او بیدارئ په مینځ حالت کښې ووم دحضرت خدیجه ؓ نه روایت دې چه دا یو روحانی سفر اوخوب وو،، ددې مضمون څۀ حکم دې؟

المستفتي: چوهدری سردارمحمد لیه پنجاب...۱۸|شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دا مضمون قرآن اوصحیح احادیثو سره متصادم دې.﴿۲﴾ حکومت همیشه د اهل زیغ اواهل الحاد په شاباشئ کښې مبتلا وی. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال السیوطی واما ترتیب السور فهل هو توقیفی ایضا او هو باجتهاد من الصحابة خلاف فجمهور العلماء علی الثانی ..........ویوقف جبریل النبی ﷺ علی موضع الآیة و السورة فاتساق السور کاتساق الآیات والحروف کله عن النبی ﷺ فمن قدم سورة او اخرها فقد افسد نظم القرآن الخ. (الاتقان فی علوم القرآن ص ۶۲ جلد ۱ فصل فی ترتیب السور)

﴿۲﴾ قال العلامه الوسی وذهب الجمهور الیٰ انه فی الیقظة ببدنه وروحه ﷺ والرؤیا تکون بمعنی الرؤیة فی الیقظة کما فی قول ..........وقال الواحدی انها رؤیة الیقظة لیلا فقط وخبر شریک لا یعول علیه علی ما نقل عن عبدالحق وقال النووی واما ما وقع فی روایة عن شریک وهو نائم وفی اخریٰ عنه بینا انا عند البیت بین النائم والیقظان فقد یحتج به من یجعلها رؤیا نوم ولا حجة فیه اذ قد یکون ذلک اول وصول الملک الیه ولیس فی الحدیث ما یدل علی کونه ﷺ نائما فی القصة کلها واحتج الجمهور لذلک بانه لو کان مناما ماتعجب منه قریش ولا استحالوه لان النائم قد یری نفسه فی السماء ویذهب من المشرق الی المغرب ولایستبعده احد. وایضا العبد ظاهر فی الروح والبدن وذهبت طائفة منهم .الخ (تفسیر روح المعانی ص ۱۱ جلد ۹ سورة الاسراء :۱)



## په قرآنی آیاتونو کښې دخپل طرفه دیوقوم تخصیص تحریف معنوی دې

**سوال:** یوه ماهنامه رساله (Muslim News) د فرورئ ۱۹۷۰ء ص ۲۷ باندې یو مضمون (Juler Halima and the Quran Inans tnook javruay) چهاپ شوې دې. چه په دې کښې پاره نمبر ۲۷ سورة رحمٰن آیت ۳۳، ۳۵ کښې د لفظ سلطان غلطه ترجمه، دغسې د سورة نحل آیت ۸۱ کښې دلفظ سرابیل غلطه ترجمه کولو سره ئې ددې خودلو زړه ورتیا کړې ده، چه الله تعالیٰ د امریکی خلقو سپوږمئ ته دتلو پیشنګوئی دنن نه څوارلس سوه کاله مخکښې کړې ده، اویوځائې سیپاره نمبر ۳۰ سورة نمبر ۹۱ آیت نمبر ۲ کښې د لفظ طلحه نه دا مطلب دې چه هلته به دوه پارټئ یو محفوظ لوبه کوی، اوهغه دواړه پارټئ د روس او امریکې دی. بهرحال په دې مضمون کښې د روس او امریکې د اوچتوالی طرف داری شوې ده. اوپه دې کښې ماده پرست قوم افضل خودلې شوې دې. ما مولانا ابوالاعلیٰ مودودی صاحب، مولانا عبیدالله انورصاحب اومولانا محمد ادریس صاحب سره هم رابطه کړې ده. لیکن هغوی هیڅ جواب رانکړو. البته مولانا مودودی صاحب صرف دومره لیکلی دی چه داسې لیکل ګمراه کونکی وی، لهٰذا عرض دادې چه تاسو ددې مضمون نګار پوره رد لیکلو سره شائع کړئ. اوماته هم مطمئن کولو سره جواب راکړئ؟

المستفتي: تاج محمد اکونټنټ پائیند کارپوریشن
شاهراه قائداعظم لاهور ۱۹۷۰ء|۴|۶

**الجواب:** مونږ سره دا رساله نشته، لهٰذا مونږ ددې دتفصیلی ردنه معذوره یو، البته دومره به ضرور اووایو چه دغه سړی تحریف معنوی کړې دې په دې شرط که هغه د امریکې وغیره تخصیص کړې وی. وهوالموفق

## د عربئ نه د ناخبره هلکانو او لاؤډ سپیکر په ذریعه دقرآن ترجمه کول

**سوال:** زمونږ په کلی کښې یو مولوی صاحب په لاؤډ سپیکر کښې یو څو هلکانو ته د قرآن کریم ترجمه شروع کړې ده، هغه هلکان د عربئ نه بالکل ناخبره دی هغوی ترجمه څۀ چه د قرآن مجید صحیح تلفظ هم نه شی کولې، په دې وجه خلق دوه ډلې شول، یوه ډله وائی چه دا ترجمه بندول پکاردی. ځکه چه دا

هلکان د عربئ نه هم ناخبره دی خلاصه اومنیه هم نه ورځی، اوبله وجه دا چه داخلق استماع نه کوی چه ددې په وجه ټول خلق ګناهګاریږی، دویمه ډله وائی چه مونږ به په لاؤډ سپیکر باندې ترجمه کوو، ځکه چه دعوت بالجهر راغلې دې، نوآیا دا ترجمه کول غوره دی اوکه نه کول غوره دی؟

المستفتی: احمدشاه زنډو بانډه.....۱۵| دسمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** بهتره داده چه داسې هلکان دې دعربئ وغیره نه خبردارکړې شی لیکن د ناخبرئ په صورت کښې به ددوی ترجمه کول ګناه نه وی، اومناسبه داده چه بې ضرورته په لاؤډ سپیکر کښې ترجمه کول نه دی پکار. لیکن دچا غوږ اینښودلو سره بهٔ جهرکونکې ګنهګار نه وی. اود آوازونو د تصادم په صورت کښې به لاؤډ سپیکر نه شی استعمالولې. فقط

## د ,,الیوم ننجیک ببدنک،، آیت تشریح

**سوال:** قرآن کریم کښې په یوولسمه سیپاره سورة یونس کښې چه د فرعون باره کښې کوم آیت کریمه راغلې دې چه اې فرعون مونږ ستا لاش محفوظ ساتلې دې اوپه آخری زمانه کښې به ستا لاش ښکاره کوو، مهربانی اوکړئ ددې آیت متعلق مونږته تفصیل سره جواب راکړئ؟

المستفتی: اهلیان دره آدم خیل.......۱۹۷۸ء| ۸| ۲۲

**الجواب:** ,,الیوم ننجیك ببدنك،، ﴿۱﴾ الایه، دنجات مطلوبه په ځائې نن مونږ ستا لاش ته د اوبو لاندې ډوبیدو نه نجات درکوو، چه ته هغه چا دپاره عبرت اوګرځې، کوم چه ستانه روسته موجود دی. چه ستا بدحالی او تباهی کتلوسره د الله تعالٰی داحکامونه اویریږی. (بیان القرآن ص ۳۰ جلد ۵) ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (پ: ۱۱، سورة یونس رکوع: ۱۴، آیت: ۹۱)

﴿۲﴾ دمصر په عجائب ګهرکښې چه کوم لاش پروت دې، چه په هغې باندې خلق د فرعون معهود ګمان کوی اود سورة یونس آیت باندې دلیل نیسی لیکن دا دتحقیق خلاف دی، علامه شبیراحمدعثمانی په فوائدعثمانیه تفسیرعثمانی کښې لیکی: دجدید تحقیقاتو نه ثابتیږی چه د فرعون لاش ترنن پورې محفوظ راروان دې. لیکن د قرآنی الفاظو صحت ددې په ثبوت باندې موقوف نه دی. بهرحال په ۱۹۲۶ کښې چه مصریانو ته کوم حنوط شوی لاشونه ملاؤشوی دی، تراوسه پورې داخبره ثبوت ته نه ده رسیدلې، چه واقعی دا دهغه معهود فرعون لاش دې، یا دمصر په فرعونیانو کښې دبل فرعون، اود آیت دامطلب بالکل نه دې چه د فرعون لاش به ترقیامته پورې محفوظ وی. (ازمرتب)



## د ختم قرآن نه پس فاتحه اود سورة بقره پنځه آیاتونه لوستل مستحب دی

**سوال:** که یوکس مجموعی طورسره قرآن کریم ختم کړی. یعنی د الحمد نه والناس پورې، نوهغه به دختم په وخت صرف والناس پورې وائی. یا نورهم د شروع نه وئیل پکاردی. یعنی دالحمدلله نه، وضاحت اوکړئ؟

المستفتی: رسول خان لیب ټیکنیشن کمبائنډ ملټری هسپتال ۱۹۶۹ء|۷|۳۱

**الجواب:** دختم قرآن نه پس مستحب دی چه فاتحه اود سورة بقره پنځه آیاتونه اولوستلې شی.

کمافی شرح الاحیاء والاتقان بروایة الدارمی بسند حسن عن ابن عباس عن ابی بن کعب رضی الله عنه تعالیٰ عنهما ان النبی ﷺ اذا قرء قل اعوذ برب الناس افتتح من الحمد ثم قرء البقره الی اولئک هم المفلحون و فی مجمع البحار قراء مکه اذا ختموا القرآن ابتدوا و قرءو الفاتحة و خمس آیات من اول البقرة الی المفلحون. ﴿۱﴾ و هو الموفق

## د ختم القرآن په موقع باندې اجتماع اود دعا شرعی حیثیت

دسنن دارمی جلد دوئم په آخر (باب فی ختم القرآن) کښې دابوقلابه نه مرفوعاً روایت دې چه څوك دختم قرآن په مجلس کښې حاضرشی. فکانما شهد الغنائم حین یقسم. دحضرت قتاده نه نقل دی چه یوسړی په مسجدنبوی کښې قرآن لوستلو، او ابن عباس رضی الله عنهما به دهغه دختم په انتظارکښې اوسیدلو، اوکله چه به دختم وخت راغې، نوپاسیدلو به اوهغه ته به ورتلو، دحضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه کله به ابن عباس رضی الله عنهما ختم کولو نوټول اولاد اواهل بیت به ئې جمع کړل اودهغوی د پاره به ئې دعاکوله، دحکم نه روایت دې چه مجاهدماته دعوت راکړو اووې فرمائیل چه زمونږ دختم کولو اراده ده، په هغې کښې د شرکت دپاره تاسوته دعوت دې، دا روایات په سنن دارمی کښې سندسره رانقل دی، اوپه فتاوٰی هندیه جلد ۵ کښې دمحیط نه ددې دعا اواجتماع کراهت رانقل دې. چه په دې باندې تعامل نه دې واردشوې، داپه خیرالقرون کښې معمول نه وو، لیکن د نوروفقهاؤ نه روایت دې چه په دې عدم جوازبه فتوٰی نه شی ورکولې، اوددې آثاروپه وجه دا آخری قول قوی دې. اود یوحکم د جواز اواستحباب دپاره

---

﴿۱﴾ (الاتقان فی علوم القرآن ص ۱۱۱ جلد ۱ قبیل فی الاقتباس وما جرٰی مجراه)

دصحابی قول کافی وی، اګرچه په هغې باندې تعامل واردنه وی. (ملفوظات حضرت مفتی اعظم) (ازمرتب)

**د خطاطئ په ذريعه د جاندار ځيزونو په صورت کښې قرآنی آياتونه ليکل**

**سوال:** يعنې خوشنويس او خطاط قرآنی آياتونه دجاندار ځيزونو په صورت کښې جوړوی، چه هغه په کتلو سره حيوانی شکل په نظر راځی. ددې شرعی حکم څه دې؟

المستفتی: مياں محمدشاه ڈائريکٹر اداره تعليم وتحقيق پشاوريونيورسٹی ۱۶|۱۲|۱۹۷۰ء

**الجواب:** مبارك كلمات دجاندار په شکل کښې ليکل ممنوع دی، په عُرف کښې داسې مکتوب ته تصوير وئيلې کيږی خط ورته نه وئيلې کيږی. د سروزرو جوړشوی انسان ته بُت وئيلې شی سره زر نه، بهرحال کله چه دغيرمبارك نقطو او خطونونه حيوانی تصوير جوړکړې شی او هغه دهيچا په نزد جائزنه وی نود مبارکو نقطو او خطونونه جوړشوې تصوير به په طريقه اولې حرام وی. وهوالموفق

..........................

..............

......






...

قال الله تعالیٰ

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝٣

إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحٰى ۝٤

...



# کتاب مایتعلق بالحدیث والسنة

## ,,لا فتیٰ الا علی،، حدیث نه دې

**سوال:** څه فرمائی مفتیان دشرع متین په دې باره کښې چه اکثرحضرات فرمائی چه ,,لا فتیٰ الا علی،، حدیث دې، که واقعی حدیث دې نوددې شرعی حیثیت څه دې اوپه کومه موقع باندې حضور ﷺ ارشاد فرمائیلې وو. وضاحت اوفرمایئ؟

المستفتی: میاں محمدصدیق مغل دهلی کالونی کراچی نمبر۶..۵|شعبان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** ددې حضراتو دپاره ضروری ده چه ددې حدیث سند ذکرکړی اویا دحدیث دکتابونو نه دمتعلقه کتاب حواله اوښائی.فقط ﴿۱﴾

## ددرس حدیث په وخت سوال کښې ذکر شوی کیفیات او واردات شریعت سره متصادم نه دی

**سوال:** دخط کشیده جملو باره کښې شریعت مطهره څه فیصله ورکوی: ,,دغه شان ددرس حدیث د اول قرن د محدثینو ګمان کیدلو چه دآسمان نه وحی راځی، دغسې به ددرس حدیث په وخت زړونو باندې داسې معلومیدله چه رسول پاك ﷺ صحابو سره په مجلس کښې تشریف فرمادې.اود قال الرسول ﷺ بازارګرم دې.د موجوده دور دیوعالم متعلق داسې وئیل څنګه دی؟

المستفتی: مولانا عزیزالرحمٰن جامعه رحیمیه ډهکی چارسده امیرجمعیت علماء اسلام چارسده ....۲۶|رجب ۱۴۰۸ھ

---

﴿۱﴾قال الملاعلی قاری حدیث لا فتی الا علی ولا سیف الا ذوالفقار .لا اصل له مما یتعمد علیه نعم یروی فی اثر واه عن الحسن بن عرفة العبدی من حدیث ابی جعفر محمد بن علی الباقر قال :نادی ملک من السماء یوم بدر یقال له رضوان ,,لا سیف الا ذوالفقار لا فتی الاعلی وذکره کذا فی الریاض النضرة ...... اقول مما یدل علی بطلانه انه لو نودی بهذا من السماء فی بدر لسمعه الصحابة الکرام ونقل عنهم الائمة الفخام وهذا شبیه ما ینقل من ضرب النقارة حوالی بدر وینسبونه الی الملائکة علی وجه الاستمرار من زمنه علیه السلام الی یومنا هذا وهو باطل عقلاً ونقلاً .........من مفتریات الشیعة الشنیعه الخ

(الموضوعات الکبری للقاری ص۲۶۵ رقم حدیث :۱۰۶۰)

**الجواب:** دداسي وارداتو او کیفیاتو قرآن اوحدیث سره هیڅ تصادم نشته.
وله نظائر منها قال الصحابه رضي الله عنهم عند ما قرء ه الصديق الاكبر رضى الله عنه عند وفاة النبى ﷺ. ﴿۱﴾ و هو الموفق

## د پیغمبر عليه السلام د عمر مبارك په مختلف روایاتوکښې تطبیق

**سوال:** ددې آیاتونو باره کښې وضاحت اوکړئ چه ټولو انبیاء علیهم السلام باندې صحیفې هغوی سره نازل شوې وې، اوکوم احادیث چه دحضور ﷺ باره کښې ذکردی. په هغې کښې درې واړه اقوال مختلف دی. دهغې باره کښې وضاحت اوکړئ څکه چه دا درې واړه احادیث صحیح دی. په دې کښې به دتطبیق څۀ صورت وی؟ آیاتونه دادی:

واتبعوا النور الذى الخ الاية سورة اعراف پ: ۹ آيت ۱۵۷ . فبعث الله النبين . الاية . سورة البقره آيت : ۲۱۳ .اواحاديث دادي: (۱) فهاجر عشر سنين و مات و هو ابن ثلاث و ستين سنة متفق عليه (۲) قال اقام رسول الله ﷺ بمكة خمس عشرة سنة ...... وتوفى وهو ابن خمس و ستين سنة متفق عليه (۳) و عن انس رضى الله عنه قال تو فا الله على رأس ستين سنة متفق عليه.
(مشكواة المصابيح باب المبعث وبدء الوحى الفصل الاول ص ۲۵۷،۲۵۸ جلد ۲)

نوپه دې احادیثوکښې به څۀ تطبیق وی؟ اوپه آیاتونوکښې وئیلې شوی دی چه ټولو انبیاؤ سره صحیفې نازل شوې دی؟

المستفتی: محمدصدیق آدم جی ایسوسی ایشن راوالپنډی ۱۰|شعبان ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** آیت واضح المراد دې اود احادیثو تطبیق دادې چه د پیغمبر عليه السلام د ولادت کال اود وفات کال چه دانامکمل دی. که دامکمل شمار کړې شی. نود پنځه شپیته کال روایت به صحیح وی. اوکه کسر (درې کاله) ساقط کړې شی. نود شپیتو کالو روایت به صحیح وی. (لمعات وشرح شمائل)

**نوټ:** دا اختلاف یا دمکی ژوند په مقدار کښې اختلاف باندې مبنی دې. دا مقدار د بعضو په نزد پنځلس کاله اود بعضو په نزد

﴿۱﴾ قال الحافظ عماالدين ابن كثير: وقال الزهرى حدثنى ابو سلمة عن ابن عباس ان ابابكر خرج وعمر يحدث الناس فقال اجلس ياعمر فابى عمر ان يجلس فاقبل الناس اليه وتركوا عمر، فقال ابوبكر اما بعد من كان يعبد محمداً فان محمداً قد مات ومن كان يعبدالله فان الله حى لايموت قال الله تعالىٰ وما محمد الا رسول قد خلت من قبله الرسل الى قوله وسيجزى الله الشاكرين . قال فوالله لكان الناس لم يعلموا ان الله انزل هذه الاية حتى تلاها عليهم ابوبكر فتلقا هامنه الناس كلهم فما سمعها بشر من الناس الا تلاها واخبرنى سعيد بن المسيب ان عمر قال والله ماهو الا ان سمعت ابابكر تلاها فعقرت حتىٰ ما تقلنى رجلاى وحتى هويت الى الارض . (تفسير ابن كثير ص ۵۳۳ جلد ۱ سورة ال عمران ايت : ۱۴۴)



دیارلس کاله اود بعضو په نزد لس کاله دې. ﴿۱﴾ (لمعات)

## په مسلم شریف کښې د بنی اسرائلو دقاتل د معافئ والا حدیث وضاحت

**سوال:** څه فرمائی علمائې کرام اومفتیان حضرات په دې کښې چه یوسړې صراحت سره انکارکوی. حدیث په مسلم شریف ص ۳۵۹ جلد ۲ دحدیث نبوی لیکلې شوې دې. د بنی اسرائیلو د یوسړی دتوبې باره کښې چه هغه باندې ۹۹ قتلونه کړی وو، او روسته ئې یوبل قتل کولوسره ۱۰۰ پوره کړل. بیا د توبې په غرض سره یو الله والا ته ور روان وو، چه په لاره کښې دهغه انتقال اوشو. د فرشتو د تکرارپه وجه دالله تعالی په حکم سره زمکه پیمائش کړې شوه، او فیصله دهغه په حق کښې اوشوه دغه سړې جنتی شو، ددې مسئلې وضاحت اوکړئ چه کوم سړې ددې حدیث نه انکار اوکړی دهغه باره کښې د شریعت څۀ حکم دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حافظ محمد افرازعباس مقام باسیان
بیروټ مری ...۱۵| جمادی الثانی ۱۴۰۸هـ

**الجواب:** داحدیث صحیح دې. ﴿۲﴾ دا اصول دین سره متصادم نه دې. الله تعالی چه کله قاتل معاف کوی. نودهغې نه مخکښې مقتول راضی کوی. وهوالموفق

## د امت محمدیه په ۷۲ فرقوکښې تقسیمدل اودصلوة وتراحادیث موجودی

**سوال:** ډیرځل مې اوریدلی دی چه حضور ﷺ فرمائیلی دی چه زما امت به ۷۲ ډلو کښې تقسیمیږی آیا داحدیث صحیح دې. اود صلوة وتر باره کښې احادیث مروی دی یا نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: افضل قریشی پوسټل کلرك مانرکیمپ اټك... ۲۴|شوال ۱۴۰۴هـ

﴿۱﴾ قال الحافظابن حجر عسقلانى قوله لبث بمكة عشر سنين الخ . هذا يخالف المروى عن عائشة عقبه انه عاش ثلاثا و ستين الا ان يحمل على الغاء الكسر كما قيل مثله فى حديث انس ...... و اكثر ماقيل فى عمره انه خمس و ستون سنة اخرجه مسلم ...... لان مقتضاه ان يكون عاش ستين الا ان يحمل على انه مكث بمكة ثلاث عشر و مات ابن ثلاث و ستين وفى رواية هشام ...... لبث بمكة ثلاث عشرة و بعث لاربعين ومات و هو ابن ثلاث و ستين و هذا موافق لقول الجمهور ...... والحاصل ان كل من روى عنه من الصحابة مايخالف المشهور و هو ثلاث و ستون جاء عنه المشهور ...... وقد جمع بعضهم بين الروايات المشهورة بان من قال خمس و ستون جبرا لكسر وفيه نظر لانه يخرج منه اربع و ستون فقط ...... الخ
(فتح البارى شرح صحيح البخارى ص ۷۹۹ جلد ۹ كتاب المغازى باب وفات النبى ﷺ)

﴿۲﴾ عن ابى سعيد ن الخدرى قال قال رسول الله ﷺ كان فى بنى اسرائيل رجل قتل تسعة وتسعين انسانا ثم خرج يسأل فاتى راهبا فسأله فقال اله توبة قال لا فقتله وجعل يسأل فقال له رجل ائت قرية كذا وكذا فادركه الموت فنآء بصدره نحوها فاختصمت فيه ملائكة الرحمة وملائكة العذاب فاوحى الله الى هذه ان تقربى والى هذه ان تباعدى فقال قيسوا ما بينهما فوجد الى هذه اقرب بشبر فغفرله متفق عليه.
(مشكواة المصابيح ص ۲۰۳ جلد ۱ باب الاستغفار الفصل الاول)

**الجواب:** تاسو مشکوٰة شریف باب الوتر ص ۱۲۰ ﴿۱﴾ اوباب الاعتصام بالکتاب والسنة ص ۳۱ اوګورئ.﴿ ۲﴾ دا احادیث په دغه بابونو کښې لیکلی شوی دی.وهوالموفق

## د حدیث ,,لولاک لولاک لما خلقت الافلاک،،

## الفاظ موضوعی او مضمون ثابت دي

**سوال:** د,,لولاك لولاك لما خلقت الافلاك،،حدیث د سند څه حکم دي چه داحدیث صحیح دي یا نه؟

المستفتی: محمد مسلم کوهاټ.....۵/شعبان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** اکثرعلماء فرمائی چه دا الفاظ موضوعی دی لیکن دا مضمون د نورو روایاتونه ثابت دي.﴿ ۳﴾

واما قوله تعالی و ما خلقت الجن والانس الالیعبدون﴿۴﴾ فذکر فیه الغایة دون الباعث . فقط

## دحدیث ,,فی الفاتحة اسماء من اسماء الشیطن،،

## وضاحت اود ابواللیث سمرقندی مقام

**سوال :** فصل فی اسماء الشیطن روی عن شیخ امام ابواللیث سمر قندی رحمة الله علیه عن ابی سعید ن الخدری رضی الله عنه عن رسول الله ﷺ ان فی سو رة الفا تحه ثمانیة اسماء من اسماء الشیطن الاول دلل والثانی هر ب والثالث کیو م والرابع کنع والخامس

﴿۱﴾عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ الوتر ركعة من اخر اليل رواه مسلم . و كل احاديث الوتر فی هذا الباب فليراجع (مشكواة المصابيح ص ۱۱۱ جلد ۱ باب الوتر)

﴿۲﴾عن عبد الله بن عمر قال قال رسول الله ﷺ لياتين علی امتے كما اتی علی بنی اسرائیل حذوالنعل بالنعل حتی ان كان منهم من اتی امه علانية لكان فی امتے من يصنع ذلک و ان بنی اسرائيل تفرقت علی ثنتين وسبعين ملة وتفترق امتے علی ثلث وسبعين ملة كلهم فی النار الا ملة واحدة قالوا من هی يارسول الله قال مااناعليه واصحابی رواه الترمذی الخ.
(مشكواة المصابيح ص ۳۰ جلد ۱ باب الاعتصام بالكتاب والسنة)

﴿۳﴾قال العلامه قاری حديث لولاک لما خلقت الافلاک ،قال الصنعانی انه موضوع كذا فی الخلاصة لكن معناه صحيح فقد روی الديلمی عن ابن عباس رضی الله عنه مرفوعاً اتانی جبريل فقال يا محمد :لولاک ماخلقت الجنة ولولاک ماخلقت النار (كنز العمال )وفی رواية ابن عساكر لولاک ماخلقت الدنيا .
(الموضوعات الكبریٰ ص ۱۹۴ رقم حديث : ۷۵۴)

﴿۴﴾(پاره : ۲۷ سورة الذٰريٰت ركوع : ۲ آيت : ۵۶)



کنس والسادس دنا والسابع تعل والثامن بعل ومن ادخل اسماء الشیطن فی صلاته تفسد صلاته. الحدیث ویعلم بعبارةالنص من هذا الحدیث لو کا ن القاری للسو رة الفاتحه اما ما ولم یتمیز السورة الفاتحة من اسماء الشیطن افسد صلاة القوم بفساد صلواته وفی هذا اتفاق من المجتهدین-

نوآیا واقعی دي سره مونځ فاسد یږی؟ حالانکه ددي نه ځان ساتل ممکن دی. او ددي راوی ابواللیث سمرقندی دي.په فتاویٰ اوفن حدیث کښې ددوی څه مقام دي اوکه دا حدیث په بل کتاب کښې مذکوروی نوحواله تلاش کولوسره د شکریه موقعه راکړئ؟

المستفتی:امیرالرحمٰن مهتمم مدرسه رحمانیه اسلام پورسوات۱۷/ستمبر ۱۹۷۹ء

**الجواب:** ابواللیث سمرقندی د اوچتې درجې امام دي.(مقدمه هدایه اولین واخرین) خوددوی فتاویٰ دغیرمتداوله کتابونونه ده. کما لایخفٰی.اوددې حدیث نه مخرج معلوم دې اونه سند، البته قابل دتاویل دي.اودا چه دا سم شیطان وئیلونه مقصود اظهار دقباحت دي.کما ورد فی بیر ذروان ان نخلها کرءوس الشیٰطین.﴿ ۱﴾ دخلاصة الفتاویٰ نه هندیه ص۸۳ جلد ۱ کښې نقل دی.﴿ ۲﴾ چه دا تغیرمفسد دصلوٰة نه دي.وهوالموفق

## د مهاجرین اوانصارو په مواخاة کښې

## د مدینې د انصارو بې مثاله فراخدلی

**سوال:** کله چه صحابه کرامو رضی الله عنهم دمکې مکرمې نه هجرت اوکړو نوپه مدینه منوره کښې بعضې انصارو دمواخاة په طور دچا چه دوه ښځې وې یوه ښځه ئې مهاجر رورته پیش کړله،ددې څه روایت موجود دي یانه، حواله راته اوښایئ؟

المستفتی: قاری فضل عظیم اکبرپوره پشاور...۲۵/جمادی الثانی ۱۳۹۹ھ

﴿۱﴾عن عائشه رضی الله عنها قالت سحر النبی ﷺ ..........فخرج اليها النبی ﷺ ثم رجع فقال لعائشة حين رجع نخلها كانه رؤوس الشياطين .الی اخر الحديث
(صحيح البخاری ص ۴۶۲ جلد ۱ باب صفة ابليس وجنوده كتاب بدء الخلق )

﴿۲﴾فی الهنديه ان وصل حرفا من كلمة بحرف من كلمة اخریٰ نحو ان قرأ اياک نعبد ووصل الكاف بالنون او غير المغضوب عليهم وو صل الباء بالعين او سمع الله لمن حمده ووصل الهاء من الله باللام فا للام فالصحيح انه لايفسد ولو تعمد ذلک هكذا فی الخلاصة .
(فتاویٰ هنديه ص ۷۹ جلد ۱ الفصل الخامس فی زلة القاری )

**الجواب:** بعضې انصارو یعنی سعدبن ربیع رضی الله عنه بعضې مهاجرینو یعنی عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه ته دا پیشکش کړې وو.لیکن مهاجرینو قبول نه کړو.(بخاری شریف ص۲۷۵ جلد ۱)

## دقائق الاخبار د رطب ویابس اود بې سنده احادیثو مجموعه ده

**سوال:** محترم مفتی صاحب! دقائق الاخبار نومې کتاب د احادیثو په کتابونو کښې شمارېږی یا نه؟ اودا د کومې طبقې کتاب دې او مذهباً کوم مسلك سره دې؟

المستفتی: محمدثناء الله کتوزی چارسده پشاور.... ۱۹۷۳ء|۷|۹

**الجواب:** په دې کتاب کښې رطب ویابس او بې سنده احادیث دی دا چاهم د احادیثو په کتابونو کښې نه دې شمار کړې.فقط

## په مرض موت کښې سختی مذموم نه ده

**سوال:** په بعضې احادیثو کښې دی چه د صالحینو مؤمنانو روح ډیر آسانئ سره وځی اود کافرانو په سختئ سره، لیکن داسې روایات هم شته چه په هغې کښې دموسیٰ علیه السلام او د محمد صلی الله علیه وسلم د مرګ د سختئ ذکرشوې دې.په دې روایاتو کښې تعارض معلومیږی، وضاحت اوفرمایئ؟

المستفتی: ارشدعلی چارسده... ۱۹۹۰ء|۳|۱۵

**الجواب:** د مرض موت سختی مذموم نه ده البته د روح وتلو (د زنکدن) سختی ممدوح نه ده.دا داحادیثو خلاصه ده.﴿۲﴾ اود بې سنده حکایاتونه دلیل نیول داهل علمو دستورنه دې.وهو الموفق

---

﴿۱﴾عن عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه قال لما قد منا المدینة اخیٰ رسول الله صلی الله علیه وسلم بینی وبین سعد بن الربیع فقال سعد بن الربیع انی اکثر الانصار مالاً فاقسم لک نصف مالی وانظر ای زوجتی هویت نزلت لک عنها فاذا حلت تزوجتها .فقال له عبد الرحمن لاحاجة لی فی ذلک هل من سوق فیه تجارة قال سوق قینقاع قال فغدا الیه عبدالرحمن فاتی باقط وسمن قال ثم تابع الغدو وفما لبث ان جاء عبدالرحمن علیه اثر صفرة فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم تزوجت قال نعم قال ومن قال امرأة من الانصار قال کم سقت قال زنة نواة من ذهب او نواة ذهب فقال له النبی صلی الله علیه وسلم اولم ولو بشاة.(صحیح البخاری ص۲۷۵ جلد ۱ کتاب البیوع)

﴿۲﴾قال العلامه الوسی اقسام من الله تعالیٰ بطوائف من ملائکة الموت علیهم السلام ،اللذین ینزعون الارواح من الاجساد علی الاطلاق کما فی روایة عن ابن عباس ومجاهد،او ارواح الکفرة علی ما اخرجه سعید بن منصور ......وینشطونها ای یخرجونها من الاجساد من نشط اللدلو من البئر اذا اخرجها ویسبحون فی اخراجها سبح الذی یخرج من البحر ما یخرج فیسبقون ویسرعون بارواح الکفرة الی النار ......ومال بعضهم الی تخصیص النزع بارواح الکفار والنشط والسبح بارواح المؤمنین لان النزع جذب بشدة ......وقال ابن مسعود تنزع الملائکة روح الکافر من جسده من تحت کل شعرة ومن تحت الاظافر واصول القدمین ثم تغرقها فی جسده ثم تنزعها حتیٰ اذا کلات تخرج یردها فی جسده وهکذا مراراً فهذا عملها فی الکفار والنشط الاخراج برفق وسهولة وهو انسب بالمؤمنین الخ (تفسیر روح المعانی ص ۴۰ جلد ۱۶ سورة النازعات : ۱)



## د,,الصاق الکعبین عندالرکوع والسجود.. په احادیثوکښې تطبیق

**سوال:** په اعلاء السنن ص۸ جلد ۳ باندې ذکردی:

(۱) عن انس مرفوعا اعتدلو فی الرکوع والسجود ولا یبسط احدکم ذراعیه انبساط الکلب . رواه الدارمی فی مسنده (۲) وعن ابن مسعود رضی الله عنه قال قال رسول صلی الله علیه وسلم لا صلوٰة لرجل لا یقیم صلبه فی الرکوع والسجود . رواه دارقطنی - بیا دده عبارت لاندې دا اشاره ده: عبد الله ابن مسعود اصلی خلفکم قالا نعم فقام بینهما وجعل احدهما عن یمینه والاخر عن شماله ثم رکعنا فوضعنا ایدینا الخ

په دې احادیثو کښې به دتطبیق څه صورت وی؟

المستفتی: سلطان محمد حقانی شریك دوره حدیث

دارالعلوم حقانیه ...۶|جمادی الثانی ۱۴۰۵هـ

**جواب:** اعلم ان مؤلف الشرح الکبیر والدر المختار وغیرهما صرحوا النسبة الصاق القدمین فی الرکوع والسجود لکن الحدیث الصریح وجد فی حق الالصاق عند السجود وهو حدیث ابن حبان من حدیث عائشه .ولم نجد الحدیث فی سنیة هذا الالصاق عند الرکوع والمسطور فی حاشیة اعلاء السنن الفهم والاستخراج من الحدیث دون الحدیث الصریح واللازم من التطبیق الصاق الفخذین دون الصاق الکعبین کما لا یخفیٰ. ﴿۱﴾وهو الموفق

---

﴿۱﴾قال الشیخ محمد فرید دامت برکاتهم (ف) لم یثبت الصاق الکعبین عند الرکوع فی الروایات الحدیثیة والاثار وزبر المتقدمین والمحققین بل قالوا بالفصل بین القدمین نحو اربعة اصابع فما ذکره الزاهدی فی المجتبیٰ وتابعه کثیر من الفقهاء انه من السنن فمن اوهام الزاهدی توهمه من ما ورد ان الصحابة کانو یهتمون بسد الخلل حتی یضمون الکعاب والمناکب ولا یخفی ان المراد منه الصاق الکعب بکعب صاحبه لا بکعبه او مراده من الالصاق المحاذاة نعم ثبت رصوص العقبین عند السجود عن عائشة مرفوعا فی روایة ابن حبان کما ثبت طأطأة الراس عند القیام فی حدیث ابی هریرة عند الحاکم وحدیث ام سلمة عند ابن ماجة. کان الناس فی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا قام المصلی یصلی لم یعد بصر احدهم موضع قدمیه یقتضیها ایضاً فلعل مراد من انکر علیها المبالغة فیها .

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۴۴ جلد ۲ باب ما جاء انه یجافی یدیه عن جنبیه فی الرکوع)

## ,,فقیه واحد اشد علی الشیطن من الف عابد،، حدیث دي

**سوال:** فقیه واحد اشد علی الشیطن من الف عابـد،، دا عبارت حدیث دي یا مقوله ده، که مقوله ده نود کوم ځائي نه ثابته ده، بعضي خلق وائی چه دا مقوله ده حدیث شریف نه دي.جواب راکړئ؟

المستفتی: قاضی حبیب السلام پیرسباق نوشهره ۲۹| جمادی الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** داحدیث شریف دي اود مشکوة شریف په کتاب العلم فصل ثانی کښي لیکلي شوي دي،وقال رواه الترمذی وابن ماجه ﴿۱﴾ وهو الموفق

## دحدیث اقسام، دشاذ تعریف اود تدوین حدیث باره کښي کتابونه

**سوال:** دحدیث شاذ تعریف څه دي، اود تدوین حدیث اوفقهي باره کښي دڅه خاص اوښۀ کتاب باره کښي اولیکئ،اودحدیث څو اقسام دي؟ والسلام

المستفتی: نامعلوم ...... ۱۹۷۸ء|۹|۱

**الجواب:** دحدیث شاذ دري معاني دی مشهوره معنٰی ئي داده چه یو کمزور ضعیف راوی د یو قوی اومعتمد راوی نه مخالف حدیث نقل کړی.﴿۲﴾ اوپه تدوین حدیث اوفقه باندي مستقل کتابونه لیکلی شوی دی.د یوي کتب خاني نه دغه کتابونه واخلئ.اودحدیث ډیراقسام دی.صحیح لذاته، صحیح لغیره، حسن لذاته، حسن لغیره وغیره وغیره ﴿۳﴾

﴿۱﴾عن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ فقیه واحد اشد علی الشیطان من الف عابد رواه الترمذی وابن ماجه. (مشکواة المصابیح ص۳۴جلد۱ کتاب العلم الفصل الثانی)

﴿۲﴾قال الشیخ المفتی اعظم محمد فرید دامت برکاتهم اعلم ان الشاذ یطلق علی معان ثلثة الاول ما رواه الثقة مخالفا لما رواه الناس وهو المروی عن جماعة من علماء الحجاز والثانی مالیس له الا اسناد واحد یشذبذلک شیخ ثقة کان او غیر ثقة وهو المروی عن ابن یعلی الخلیلی والثالث ما تفرد به ثقة من الثقات ولیس له اصل متابع لذلک الثقة قال به الحاکم الخ(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۷ جلد۱ مبحث الشاذ)

﴿۳﴾قال الشیخ المفتی اعظم محمد فرید دامت برکاتهم فاعلم ان الحدیث الصحیح ما ثبت بنقل عدل تام الضبط غیر معلل ولا شاذ فان کانت هذه الصفات علی وجه الکمال والتمام فهو الصحیح لذاته وان کان فیها نوع قصور ووجد ما یجبر ذلک القصور من کثرة الطرق فهو الصحیح لغیره وان لم یوجد فهو الحسن لذاته وماافقد فیه الشرائط المعتبرة فی الصحیح کلاً او بعضاً فهو الضعیف والضعیف ان تعدد طرقه وانجبر ضعفه یسمی حسنا لغیره الخ(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۳۸ جلد۱ مبحث تعریف الصحیح والحسن)



## بیت الله شریف ته ام المساجد وئیل

**سوال:** بیت الله شریف ته په یو حدیث یاد سلف صالحینو په یو قول کښي اُم المساجد او نوروته لونړه وئیلي شوی دی یا نه، وضاحت اوحوالي سره اوښایئ؟

المستفتی: احسان الحق رائي ونډ لاهور... ۱۳۹۸|۶|۳۰ء

**الجواب:** د روایاتو په اعتبارسره معلومه نه ده اود کافی تتبع نه پس هم روایت ملاؤنه شو،البته د قواعدو په اعتبارسره ﴿۱﴾ ام المساجد وئیل لکه څنګه چه مکة المکرمة ته ام القرٰی وئیل جائزدی.﴿۲﴾ وهو الموفق

## د مولانا روم شعر حدیث نه دي خواحادیثوسره معارض هم نه دي

**سوال:** دوه شعرونه د مولانا روم د مثنوی شریف دفتراول نه په خدمت کښي لیکلي شی:

چوں زلقمہ تو حسد بینی ودوام ......... جہل وغفلت زاید آں را داں حرام

آیا د مولانا روم په دې شعرونو کښي دیو حدیث شریف دمفهوم بیان دي یائي دخپلي تجربي خبري بیان کړی دی که دیو حدیث مفهوم وی نو دصفحي اوکتاب حواله اولیکئ اود شکریه موقعه راکړئ؟

المستفتی: میاں احسان الله ډاك اسماعیل خیل نوشهره ۳۰| جولائی ۱۹۷۳ء

**الجواب:** دامضمون دتجربي اوایمانی فراست سره ثابت دي او هیڅ یو حدیث سره معارض نه دي.﴿۳﴾ فقط

## ,,حب الوطن من شعبة الایمان،، حدیث نه دي

**سوال:** آیا دا د عربئ جمله ,,حب الوطن من شعبة الایمان،، دحدیث نبوی ﷺ

﴿۱﴾قال الحافظ عمادالدین یخبر تعالیٰ ان اول بیت وضع للناس ای لعموم الناس لعبادتهم ونسکهم یطوفون به ویصلون الیه ویعتکفون عنده للذی ببکة ...............عن ابی ذر رضی الله عنه قال قلت یارسول الله ﷺ ای مسجد وضع فی الارض اول؟قال المسجد الحرام...........عن عبد الله بن عمرو بن العاص مرفوعاً بعث الله جبریل الیٰ ادم وحواء فامرهما ببناء الکعبة فبناه آدم ثم امر بالطواف به وقیل له انت اول الناس وهذا اول بیت وضع للناس الخ(التفسیر الابن الکثیر ص ۵۰۰ جلد۱ سورة ال عمران:۹۶)

﴿۲﴾قال الله تعالیٰ وکذلک اوحینا الیک قرانا عربیا لتنذر ام القریٰ ومن حولها وتنذر یوم الجمع لاریب فیه.

﴿۳﴾عن ابن سعید ن الخدری قال قال رسول الله ﷺ اتقوا فراسة المؤمن فانه ینظر بنور الله .ثم قرأ ان فی ذلک لایات للمتوسمین. (جامع ترمذی ص ۱۴۰ جلد۲ ابواب التفسیر سورة الحجر)

تکره ده یا نه ده. که وی نو حدیث په کوم کتاب کښې راغلې ده نوم او صفحه اولیکئ؟

المستفتی: میاں احسان الله ډاك اسماعیل خیل نوشهره
۲۸|جمادی الثانی مطابق ۳۰|جولائی ۱۹۷۳ء

**جواب:** دا حدیث نه دے۔ قال القاری فی المصنوع فی احادیث الموضوع ص۱۱ حدیث حب الوطن من الایمان لا اصل له عند الحفاظ.﴿۱﴾ وهو الموفق

## په بعضې اسنادو کښې د درج شوی حدیث باره کښې استفسار

**سوال:** د جامعه حقانیه د یو سند د نقل د تصدیق په موقع باندې احقرته یو عبارت د سند په شروع کښې پښ شان په نظر راغي ,,خیر کم من تعلیم القرآن وعلمه،، هم دا عبارت د جامعه اسلامیه په یو سند کښې هم په دې شکل سره دې، احقرته یو حدیث شریف یاد دې چه ,,خیر کم من تعلم القرآن وعلمه،، اوس معلومه نه ده چه په اسنادو کښې کوم عبارت درج دې هغه هم دغه حدیث دې یا دهغې څه بل مطلب دې. په اول صورت کښې په حدیث کښې تحریف او د علمی درسگاه د بې پرواهئ احساس کولو سره څو کرخې درلیږم امید دې چه وضاحت کولو سره به د شکریه موقع راکړئ.

المستفتی: حسین علی شاه سول هسپتال صوابی ۱۹۷۳ء|۱|۸

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتهم! السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چه د حدیث شریف الفاظ دادی: ,,خیر کم من تعلم القرآن وعلمه،،﴿۲﴾ اوزمونږ په سند کښې دا الفاظ نه دی لیکلې شوی شاید تاسو د بل دار العلوم د سند نقل کتلې وی. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری حدیث حب الوطن من الایمان قال الزرکشی لم اقف علیه وقال السید معین الدین الصفوی لیس بثابت وقیل انه من کلام بعض السلف وقال السخاوی لم اقف علیه ومعناهٗ صحیح قال المنو فی ما ادعاه من صحة معناه عجیب اذلا ملازمة بین حب الوطن وبین الایمان ویرده قوله تعالیٰ ولو انا کتبنا علیهم فانه دل علی حبهم لوطنهم مع عدم تلبسهم بالایمان اذضمیر علیهم للمنافقین الخ (الموضوعات الکبریٰ للقاری ص۱۰۹ رقم حدیث: ۱۳۴)

﴿۲﴾ عن عثمان قال قال رسول الله ﷺ خیر کم من تعلم القرآن وعلمه رواه البخاری . (مشکواة المصابیح ص۱۸۳ جلد۱ کتاب فضائل القران)



## قوت حافظې دپاره نبوی نسخه دحدیث نه ثابته ده

**سوال:** یو ځل حضرت علی کرم الله وجهه نبی کریم ﷺ ته دحافظې د کمزورئ شکایت اوکړو نو حضور ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته پټ یو څو کلمې اوښودلې، څو اسماء حسنیٰ ئې ورته اوښودل چه دهغې په وردسره دحضرت علی رضی الله عنه د حافظې کمزوری ختمه شوه، بیا روسته د یو صحابی په تپوس باندې حضرت علی رضی الله عنه هغه کلمات اوښودل. مهربانی اوکړئ هغه کلمات سره دحوالې راولیږئ؟

المستفتی: محمد عثمان ایم اې بی ایډ هائی سکول شبقدر پشاور

**الجواب:** په ترمذی جلد ثانی باب دعاء الحفظ کښې دا حدیث مذکور دې.﴿۱﴾ دهغه ځائې نه ئې یاد کړئ. فقط

## د تبلیغ اود ترغیب ترهیب په حدیثونوکښې فرق

**سوال:** مایقول العلماء العظام فی هذه المسئله: عن عبد الله بن عمر رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ بلغوا عنی ولو آیة وحدثوا عن بنی اسرائیل ولا حرج ومن کذب علیّ متعمداً فلیتبوأ مقعده من النار رواه البخاری . یعلم من هذ الحدیث جواز التبلیغ لکل شخص مامورا کان او امیراً او غیرهما وعن عوف بن مالک الاشجعی قال قال رسول الله ﷺ لایقص الامیر او مامور اومختال وفی روایة او مراءٍ الحدیث .فیعلم من هذا الحدیث تخصیص التبلیغ بالامیر الخ المطلوب منکم الجواب المشفی للقلب بینوا وتوجروا

المستفتی: مولانا عبد القادر مسجد میرحتم شبقدر پشاور.. ۱۹۶۹ء|۵|۳

﴿۱﴾ عن ابن عباس انه قال بینهما نحن عند رسول الله ﷺ اذاجاء علی ابن ابی طالب فقال بابی انت وامی تفلت هذا القرآن من صدری فما اجدنی اقدر علیه فقال له رسول الله ﷺ یا اباالحسن افلا اعلمک کلمات ینفعک الله بهن وینفع بهن من علمته ویثبت ما تعلمت فی صدرک قال اجل یارسول الله ﷺ فعلمنی قال اذا کان لیلة الجمعه............ثم قل فی آخر ذلک اللّٰهم ارحمنی بترک المعاصی ابداً ما ابقیتنی وارحمنی ان اتکلف مالایعنینی وارزقنی حسن النظر فی ما یرضیک عنی اللّٰهم بدیع السمٰوات والارض ذاالجلال والاکرام والعزة التی لاترام اسألک یا الله یارحمن بجلالک ونوروجهک ان تلزم قلبی حفظ کتابک کماعلمتنی وارزقنی ان اتلوه علی النحوالذی یرضیک عنی اللّٰهم بدیع السموات والارض ذاالجلال والاکرام فالعزة التی لاترام اسألک یاالله یا رحمن بجلالک ونور وجهک ان تنور بکتابک بصری وان تطلق به لسانی وان تفرج به عن قلبی وان تشرح به صدری وان تغسل به بدنی فانه لایعیننی علی الحق غیرک ولایوتیه الا انت ولا حول ولاقوة الابالله العلی العظیم .الیٰ اخر الحدیث (ترمذی شریف ص۱۹۶ جلد۲ ابواب الدعوات باب دعاء الحفظ)

**جواب**: التبليغ مغائر من القصص لان التبليغ هو الايصال باللفظ او المعنى من غير امرٍ زائد والقصص هوا لترغيب و الترهيب او الخطبة على الاختلاف فالتبليغ اهون و اسهل من القصص بخلاف القصص فانه لا بد فيه من مراعاة مصالح القوم ومصالح الوقت فافهم. فقط ﴿۱﴾

## د صلاة البروج، والنور حديث موضوعی اود بعضې نورواحاديثوحوالې

**سوال**: بنده په يو كتاب كښې لوستلی دی: (۱) حديث شريف دي چه كله ماښام شی نويوه فرشته دخانه كعبې په چهت باندې نازلیږی اودا آوازكوی چه اې دالله تعالى بنده ګانو! اود محمد مصطفى ﷺ امتيانو! تاسوباندې يو ژوند راروان دې چه دهغې نوم ګوردې تاسوباندې لازم دی چه دآخرت دپاره ذخيره تياره كړئ. دوه ركعته صلاة البروج اوصلاة نور اداكوئ اودوه ركعته نفل هره شپه كوئ، ددې په كولوسره قبركښې رڼاوی. (۱) تركيب دصلاة البروج: اول ركعت كښې دفاتحه نه پس والسماء ذات البروج اوپه دويم ركعت كښې د فاتحه نه پس والسماء والطارق، (۲) تركيب دصلاة نور: اول ركعت كښې د فاتحه نه پس دوه آياتونه د سورة انعام اوپه دويم ركعت كښې دفاتحه نه پس اولم يرو كم اهلكنا...نه...محضرون، پورې. (۳) تركيب دنفل مونځ: اول ركعت كښې دفاتحه نه پس پنځه ځل سورة الكافرون اوپه دويم ركعت كښې هم، بيا كله چه ورځ شی هم دغه فرشته بيا دبيت المقدس په چهت راځی اوآوازكوی چه اې دالله تعالى بنده ګانو اودمحمد مصطفى ﷺ امتيانو! الله تعالى تاسوته دا ورځ دركړې ده ددې نه سوا تاسوته يوه ورځ بله هم راتلونكې ده چه دهغې نوم دمحشر ورځ ده، په تاسوباندې لازم دی چه دهغې دپاره ذخيره جمع كړئ په دې كښې هم دمختلف مونځونو طريقه خودلې شوې ده مهربانی اوكړئ ددې حديث عربی الفاظ اومعتبرحواله اوليكئ؟

(۲) د ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې: كنت في عصابط من ضعفاء المهاجرين

---

﴿۱﴾ ترجمه: په تبليغ اوقصص كښې فرق دې، ځكه چه تبليغ الفاظ اومعنی رسولوته وائی چه ددې نه علاوه دې باندې امرزائد نه وی. اوقصص ترغيب، ترهيب ته وائی او په بناء داختلاف خطبې ته وائی. نوتبليغ دقصص نه اهون او آسان دې. اوكوم چه قصص دی په هغې كښې دقوم اووخت دمصلحتونو رعايت ساتلې شوې دې. (وهاب)



وان بعضهم ليستتر ببعض من العرى وقارئ يقرأ علينا ونحن نستمع القرأة قال فجاء رسول الله ﷺ حتى قام علينا فلما راٰه القارى سكت قال فسلم فقال ماذا كنتم تصنعون قلنا كان قارئ يقرأ علينا ونحن نستمع بقراته فقال النبی ﷺ الحمد لله الذی جعل من امتی امرت ان اصبر بقراء ته نفسی معهم قال ثم جلس وسطنا ليعدل نفسه فينا ثم قال بيده هكذا فتحلف القوم فلم يعرف رسول الله ﷺ منهم احد قال فكانوا ضعفاء المهاجرين بالنور التام يوم القيامة تد خلون الجنة قبل اغنياء كم بنصف يوم كان مقداره خمس مأة عام۔

په دې حديث شريف كښې چونكه لفظ دقاری استعمال شوې دې په دې وجه زما په ذهن كښې خدشه ده ددې حديث شريف حواله دمعتبر كتابونو نه راكړئ؟ (۳) عمرو بن ثريد دخپل پلار نه روايت كوی:

قال ردفت رسول الله ﷺ يوماً فقال هل معك من شعر امية ابن ابی الصلت شيئاً قلت نعم قال هيه فانشدته بيتاً فقال هيه ثم انشدته بيتاً فقال هيه حتى انشدته مأة بيت۔

د معتبر كتابونو نه ددې حديث حواله راكړئ؟

(۴) دحضرت عائشه صديقه رضی الله عنها نه روايت دې:

قالت كانت عندی جارية تغنی فاستاذن عمر فلما احسه سمعت حسه فرت فلما دخل عمر رضی الله عنه تبسم رسول الله ﷺ فقال عمر ماضحكك يا رسول الله ﷺ قال كانت عندنا جارية تغنی فلما سمعت حسك فرت فقال عمر لاابرح حتى اسمع ما كان سمع رسول الله ﷺ۔

مهربانی اوكړئ ددې څواحاديثو حوالې دمعتبر كتابونو نه راكړئ ډيره مننه به وی؟

المستفتی: محمد اكرم تهكال بالا پشاور....۱۹۶۸ء|۲|۴

**الجواب**: په چهت باندې فرشتې والا حديث موضوعی اوبې اصل دې. اود ابوسعيد الخدری حديث ابوداؤدشريف كښې دې. ﴿۱﴾ اود عمروبن شريد والا حديث په مسلم شريف كښې دې. ﴿۲﴾ اودحضرت عائشه صديقه رضی الله عنها والا حديث ماسره موجوده كتابونو كښې نشته. اوامام ترمذی په وفی الباب عن عمر و عائشه رضی الله عنهما كښې شايد دې حديث طرف ته اشاره كړې ده. ﴿۳﴾ فقط

---

﴿۱﴾ (ابوداؤد ص ۱۶۰ اجلد۲ باب فی القصص كتاب العلم) ﴿۲﴾ (مشكواة المصابيح ص ۴۰۹ جلد۲ باب البيان والشعر)

﴿۳﴾ عن عبد الله بن بريده قال سمعت بريده يقول خرج رسول الله ﷺ فی بعض مغازيه فلما انصرف جاءت جارية سودا فقالت يا رسول الله ﷺ انی كنت نذرت ان ردك الله صالحة سالماان اضرب بين يديك بالدف والغنی فقال لها رسول الله ﷺ ان كنت نذرت فاضربی والا فلافجعلت تضرب فدخل ابوبكر وهی تضرب ثم دخل علی وهی تضرب ثم دخل عثمان وهی تضرب ثم دخل عمر فالقت الدف تحت استها ثم قعدت عليه. الی آخر الحديث هذاحديث حسن صحيح غريب من حديث بريده وفی الباب عن عمرو عائشة. (ترمذی شريف ص ۲۱۰ جلد۲ باب مناقب ابی حفص عمر بن الخطاب ابواب المناقب)

## د تقبیل اومعانقه په معارض احادیثوکښې تطبیق

**سوال:** دالسلام علیکم ورحمة الله نه پس عرض دادې چه دمشکوٰة شریف په باب المصافحة والمعانقة کښې دحضرت انس رضی الله عنه روایت نه معلومیږی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دیو مسلمان رور دتعظیم اوتکریم دپاره دسر ښکته کولو اومعانقه اوښکلولو نه منع فرمائیلې ده.اودمصافحې اجازت ئې ورکړې دې لیکن ددې سلسلې په نوروا حادیثو کښې کوم چه حضرت عائشې رضی الله عنها، حضرت زراع رضی الله عنه حضرت عطا خراسانی رضی الله عنه اوحضرت براء بن عازب رضی الله عنه روایت کړی دی په هغې کښې لاسونه اوخپې ښکلول اومصافحه اومعانقې ته جائز فرمائیلې شوی دی.نو اوس به په دې احادیثو کښې تطبیق څنګه کولې شی؟ وضاحت کولو سره دشکریه موقع راکړئ.

المستفتی: مولانا غلام حسین جلبئ صوابی ۱۹۶۹ء|۳|۲۲

**الجواب:** تقبیل اومعانقه جائزده ځکه چه د ګڼړو صحیح احادیثونه ثابت دی اود منع والاحدیث محمول دې په خوف دشهوت اوپه حالت دتجردعن القمیص باندې،

**قال فی الهدایه الخلاف فی المعانقه فی ازار واحد اماذاکان علیه قمیص اوجبة فلاباس بها وصرح فی حواشی المشکواة وکتب الفقه فی باب الحظر والاباحة علی حرمة التقبیل علی وجه الشهوة ﴿۱﴾.وهو الموفق**

## د ترمذی شریف د بعضې الفاظو وضاحت

**سوال:** بنده دردوجائے درترمذی شریف عکمنداست۔بنده به مطلب آن نمیدانم۔ازشمایاں مبارکان التماس میکنم کہ بنده دریں دوجائے واقف گردانی۔جائے اول این ست ذکر فی الترمذی فی باب ماجاء فی

﴿۱﴾قال ابن عابدین قال فی الهدایه ویکره ان یقبل الرجل فم الرجل او یده اوشیئا منه اویعانقه ......وقال ابویوسف لاباس بالتقبیل والمعانقة لماروی انه علیه السلام عانق جعفراً حین قدم من الحبشة وقبله بین عینیه ولهما ماروی انه علیه السلام نهی عن المکامعة وهی المعانقة وعن المکاعمة وهی التقبیل وما رواه محمول علی ماقبل التحریم قالوا الخلاف فی المعانقة فی ازارواحد اما اذا کان علیه قمیص او جبة لاباس به......ووفق الشیخ ابو منصور بین الا حادیث فقال المکروه من المعانقة ما کان علی وجه الشهوة وعبر عنه المصنف بقوله فی ازارواحدفانه سبب یفضی الیها فاماعلی وجه البر والکرامة اذا کان علیه قمیص واحد فلاباس به .
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۶۹ جلد۵ باب الاستبراء وغیره کتاب الحظر والاباحة)



الوضوء ثلاثاً ثلاثاًعن ابی اسحاق عن ابی حیة ذکر فی الحاشیه علی قوله عن ابی حیة بفتح الحاء الی قوله من الثالثه ومن الرابعة والخامسة ۔بنده بمراد وتشریح لفظ من الثالثه عارف نیستم ۔دوم جائے این ست فی الترمذی باب ماجاء ان حذف السلام سنة. حدثنا علی بن حجرنا عبدالله بن المبارک والهقل بن زیاد خف الخ بنده بمرادلفظ خف کہ مرقوم ومکتوب است علی لفظ زیاد کہ مرقوم ومکتوب است فی السند عارف نیستم۔؟

المستفتی: مولوی محمدصدیق حقانی
قلعه عبدالله ګلستان کوئټه ۲۰|محرم ۱۴۰۳ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه حافظ ابن حجر رحمة الله علیه په تقریب التهذیب کښې د راویانو دولس طبقې ښودلی دی.نو په دې الفاظو من الثالثة، من الرابعة، من الخامسة وغیرها،کښې دغه طبقاتو طرف ته اشاره ده که تاسره تقریب التهذیب نه وی نو منهاج السنن ص ۵۴، ۵۵ جلد ۱ ته رجوع اوکړئ.﴿۱﴾ اود خف نه مراد دادې چه دا لفظ به مشدد نه وئیلې کیږی.وهو الموفق

## د عاشورې په ورځ قبرونو باندې د اوبو اچولو حدیث موضوعی دې

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې په لسم محرم دعاشورې په ورځ باندې سحروختی په تیاره کښې خلق ادیرې ته ځی اوپه قبرونو باندې اوبه اچوی.داخلق مونځ نه کوی خو اوبه اچول لازمی کار اوثواب ګنړی.اوس په دې مسئله باندې ددوه سړو جهګړه ده.یو دې ته بدعت وائی دویم ورته صحیح وائی.اوپه دلیل کښې وائی چه:

**کتاب جواهر النفیس ص ۱۰۶ اذارش الماء علی قبور الاقرباء فی یوم عاشوره کفر عن المیت عشرة الاف ذنوبه واعطے الله له عشرة الاف درجة وقال جابر رضی الله عنه ان بلال رضی الله تعالیٰ عنه رش الماء علی قبر علیه الصلاة والسلام**

مهربانی اوکړئ تحقیقی جواب راولیږئ؟

المستفتی: سورګل ضلع کوهاټ... ۱۹۷۰ء|۴|۹

﴿۱﴾قال العلامة الفهامه الشیخ مفتی اعظم محمدفرید دامت برکاتهم قوله عن ابی حیة ............قال فی التقریب مقبولة من الثالثة وقد مر مبحث مراتب الراوة وطبقاتهم فی باب ما جاء ان مفتاح الصلواة الطهور فقد قال فیه امابیان المراتب فاولها الصحابة اصرح بذلک لشرفهم والثانیه من اکد مدحه اما بافعل مثل اوثق الناس ............الثالثه من افرد بصفة کثقة او متقن او عدل اوثبت ............واما الطبقات فالاولیٰ الصحابة ............الثانیه طبقة کبار التابعین ............الثالثة الطبقة الوسطی من التابعین ............الرابعه طبقة تلیها وجل روایهم من کبار التابعین کالزهری الخ
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص :۵۴،۵۵،۱۳۵ جلد : ۱)

**الجواب:** په قبرونو باندې اوبه اچول د دفن په وخت کښې جائز دي.

لماروا صاحب شرح السنة مرسلا انه عليه السلام رش على قبر ابنه ابراهيم والبيهقى عن جابر رضى الله تعالى عنه موقوفا انه (رش على قبر النبى صلى الله عليه وسلم. ﴿۱﴾ (مشكوٰة ص ۱۶۳ جلد ۱)

لیکن د عاشورې په ورځ د ثواب په ارادې سره قبرونو باندې اوبه اچول بدعت قبیحه دې، نه د قرآن نه ثابت دې او نه د بل حدیث نه ثابت دې او نه د فقهې د معتبر کتابونو نه ثابته ده. او که څوک د حدیث دعوٰی او کړي نو د هغې سند دې ذکر کړي او د داسې کتاب حواله دې ورکړي چه هغه سند سره احادیث روایت کوي. چه مونږ ئې پخپله تحقیق او کړو، او دا حدیث کوم چه په جواهر النفیس کښې ذکر دې نه د دې سند معلوم دې او نه ئې حواله معلومه ده بلکه په دې باندې د وضع آثار ښکاره دی. بله دا د یو اوږد حدیث حصه معلومیږي چه هغه موضوعی دې.

قال فى الفوائد المجموعة ص ۳۵، ۳۶ حديث من صام عاشوراء اعطى ثواب عشرة الاف ملك الخ ذكره فى اللآلى مطولاً عن ابن عباس مرفوعاً وهو ﴿۲﴾ موضوع فقط

## وجود موجودات بروئې محمد ﷺ او د نبی علیه السلام د نورکیدلو مطلب

**سوال:** تمام موجودات بروئے محمد صلی اللہ علیہ وسلم وجود آمدند یا نہ و محمد صلی اللہ علیہ وسلم نور بود یا نہ؟

المستفتی: عبداللہ مہاجر افغانستان پشاور شہر ...... یکم رشعبان ۱۴۰۳ھ

**جواب:** نزد ارباب تحقیق الفاظ حدیث لولاک موضوع و مضمون او ثابت است۔ ﴿۳﴾ و حدیث اول ما خلق اللہ نوری بمعنی اول ما خلق اللہ روحی است در حواشی نشر الطیب وغیرہ قابل تسلیم است۔

---

﴿۱﴾ مشكوٰة المصابيح ص ۱۴۸، ۱۴۹ جلد ۱ باب دفن الميت)

﴿۲﴾ ومن ذلك حديث: من صام يوم عاشوراء كتب الله له عبادة ستين سنة فهذا باطل يرويه حبيب بن ابى حبيب عن ابراهيم الصائغ عن ميمون بن مهران عن ابن عباس وحبيب هذا غير حبيب كان يضع الاحاديث. (الموضوعات الكبرىٰ ص ۲۹۴ رقم حديث: ۱۱۴۱)

﴿۳﴾ حديث لولاك لما خلقت الافلاك، قال الصغانى انه موضوع كذا فى الخلاصة لكن معناه صحيح فقد روى الديلمى عن ابن عباس رضى الله عنهما مرفوعاً اتانى جبريل فقال يا محمد لولاك ما خلقت الجنة ولولاك ما خلقت النار وفى رواية ابن عساكر لولاك ما خلقت الدنيا. (الموضوعات الكبرىٰ ص ۱۹۴ رقم حديث: ۷۵۴)



## حدیث ,,ولد الزنا لایدخل الجنة،، موضوعی دې

**سوال:** یو حدیث دې ,, ولد الزناء لایدخل الجنة،، آیا د دې څۀ اصل شته؟

المستفتی: غلام سرور سنګاپور ..... ۱۹۸۳ء/۸/۱۰

**الجواب:** د دې حدیث متعلق په ,,المصنوع فی احادیث الموضوع،، ص ۳۱ کښې لیکلی شوی دی ,,ولد الزنا لایدخل الجنة لا اصل له انتهٰی. ﴿۱﴾ او دا حدیث معقول هم نه دې ځکه چه د ولد الزنا هیڅ قصور نه دې شوې. وهو الموفق

## د مقرب فرښتو د زمکې نه خاوره اوړل او د زمکې د فریاد واقعه اسرائیلی ده

**سوال:** په یو کتاب کښې ئې لیکلی دی چه کله الله تعالی د آدم علیه السلام د جسم جوړولو د پاره جبرائیل علیه السلام طائف مقام ته د خاورې راوړلو د پاره اولیږلو، نو زمکې ډیر فریاد او کړو او جبرئیل علیه السلام ته ئې او وئیل چه زما د حصې نه به داسې مخلوق جوړولې شي چه هغه به نافرمانه وي، قتلونه به کوی، لهٰذا زه تا ته منت زاری کوم عاجزی درته کوم چه ته د دې ځائې نه خاوره مه اخله، جبرائیل علیه السلام په هغې باندې رحم او کړو. واپس لاړه او الله تعالی ته ئې د زمکې په فریاد زاریٔ خپله رحم دلی او عذر پیش کړو. بیا الله تعالی پرله پسې باقی دوه مقرب فرښتې اولیږلې. خود زمکې په فریاد زاریٔ د هغوی زړونه هم نرم شول. او هغوی هم خالی لاسونه راغلل د زمکې په ژړا باندې ئې دخپل زړه د نرمئ عذر پیش کړو. بیائې حضرت عزرائیل علیه السلام اولیږلو. اګرچه زمکې د دوی په مخکښې هم ډیر اوژړل خو دې د هغې خبره او نه منله. او خاوره ئې واخستله الله تعالی ته ئې پیش کړله. الله تعالی ترې تپوس او کړو چه دې دریو وارو خو خاوره رانۀ وړه، تاخنګه راوړله، هغوی عرض او کړو چه یا الله! ماته ستا د حکم په وړاندې د چا د ژړا پرواه نشته، ماله ستا حکم پوره کول دی. په دې وجه حضرت عزرائیل علیه السلام په روحونو قبض کولو باندې مقرر کړې شوې دې. دا قصه صحیح ده او که غلطه؟

المستفتی: محمد ایوب خان محله شیام ګنج مردان ..... ۱۰/ صفر ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** د مخبر صادق په اقوالو کښې دا واقعه نشته، بلکه قرآن سره مخالف

---

﴿۱﴾ قال الملاعلى قارى حديث ولد الزنا لا يدخل الجنة يدور على الالسنة ولم يثبت بالسنة بل قال القاضى مجد الدين الشيرازى فى سفر السعادة هو باطل. (الموضوعات الكبرىٰ ص ۲۵۹ رقم حديث: ۱۰۲۹)

ده.قال الله تعالی: لایعصون الله ما امرهم ویفعلون ما یـؤمرون.،،﴿۱﴾ البته په اسرائیلیاتو کښې دا قصه لیکلې شوې ده.فقط

**د غوا په پیو کښې شفا اوپه غوښه کښې د بیمارئ والا حدیث مطلب**

**سوال:** په ،،مسند امام اعظم مترجم اردو فوائدازمولانا سعد حسن،، کښې د سنن والؤنه یو حدیث نقل شوې دي.دا ثبوت څنګه دي،چه ابن سنی احمد حاکم د ابونعیم نه په دې معنی سره روایت کړې دي چه نبی علیه السلام اوفرمائیل چه د غوا پئ څکئ ځکه چه دا دوا ده، او ددې غوړی شفا ده.اوځان ساتئ ددې د غوښې نه ځکه چه ددې غوښه بیماری ده؟

المستفتی: خلیل الرحمٰن .....۱۳۹۸ﻫ|۴|۳

**الجواب:** چونکه د دارالعلوم په کتب خانه کښې د ابن سنی وغیره کتابونه نشته. په دې وجه ددې روایت دسند متعلق تحقیق ملاؤنه شو،البته که دا حدیث ثابت وی نودا به د الماء المشمش په شان په نهی طبعی باندې حمل کولې شی په نهی شرعی باندې نه. ﴿۲﴾ وهوالموفق

**د نبی کریم ﷺ د سوری متعلق حدیث د حکیم ترمذی ثابت نه دې**

**سوال:** حکیم ترمذی لیکلی دی:ان النبی ﷺ لم یکن یریٰ له ظل فی شمس ولا قمر الخ،، آیا داحدیث په اعتبار دسند سره صحیح دې یا نه؟

المستفتی: نامعلوم طالب العلم دارالعلوم حقانیه...۱۹۹۰ء|۹|۱۱

**الجواب:** دا روایت ثابت نه دې.﴿۳﴾ وهوالموفق

**د حضرت عمر رضی الله عنه صحبت سره د روژې دافطار د اثر وضاحت**

**سوال:** دیوعالم نه مې اوریدلی دی چه حضرت عمر رضی الله عنه به همبسترئ سره روژه ماتوله. آیا داخبره صحیح ده اوحواله دکتاب احیاء العلوم جلد دویم ص۳۴ ورکوی، ددې وضاحت اوکړئ مهربانی به وی؟

المستفتی: نامعلوم......۸| رمضان ۱۴۰۸ﻫ

---

﴿۱﴾(پ: ۲۸ سورة التحریم رکوع: ۱۹ آیت: ۶)

﴿۲﴾عن عائشة رضی الله عنها اتی النبی ﷺ بلحم بقر فقیل هذا ما تصدق به علی بریرة فقال هو لها صدقه ولنا هدیة . (صحیح المسلم ص ۳۴۵ جلد ۱ باب اباحة الهدیة للنبی ﷺ......)

﴿۱﴾ عن زکوان ان رسول الله ﷺ لم یکن یري له ظل الخ. دا روایت جلال الدین سیوطي رحمه الله په خصائص الکبري ص۶۸ جلد۱ کښې ذکر کړې دي.ددې ړومبې راوی عبدالرحمٰن بن قیس زعفرانی لره دحدیث عالمانو احادیث وضع کونکې اوبعضو کذب طرف ته منسوب کړې دي. کما فی تهذیب التهذیب للعلامه ذهبی رحمه الله ص۲۳۱ جلد۶ رقم ۴۱۳۰، او دغسې دویم راوی عبدالملک بن عبدالله بن الولید هم مجهول الحال دې داسماء الرجال په متداول کتابونو کښې ددوی حال مذکورنه دې.(ازمرتب)



**الجواب:** همبستری کولو سره افطار ممنوع دې دخوراك څكاك په شان.اولكه څنګه چه دبخاری شریف وغیره حدیث په بناء باندې دخوراك څكاك شهوت دمونځ په حاضرئ باندې دمقدم کولو اجازت دې.نو دغسې دجماع د شهوت تقدیم به هم په طریقه اولی جائز وی.

ولم اجد هذا الاثر فی تلک القصة ولا استبعاد فیه کما اشرت الیه نعم الاخبار من امر جزی لما یوهم الدوام والکلیة ظلم عظیم .﴿۱﴾ وهوالموفق

**د پنځمې او شپږمې کلمې دحدیث نبوی ﷺ نه حدیث**

**سوال:** آیا دځلور کلمونه علاوه د پنځمې اوشپږمې کلمې دحدیث نبوی ﷺ نه څه ثبوت شته؟ یا خلقو من ګهړت (دځانه) وضع کړې دی.او آیا دا ضروری ګرځول اود نکاح په وخت وئیل بدعت دی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: قاری بشیراحمد علوی ...۳| رمضان المبارك ۱۳۹۵ﻫ

**الجواب:** په احادیثو کښې دشپږونه زیاتې کلمې ثابت دی.﴿۲﴾ اود نکاح په وخت د یوې وئیل هم ضروری نه دی.(رواه ابوداؤد والترمذی) وهوالموفق

**د امامت علی رضی الله عنه تحقیق او حدیث د غدیرخم**

**سوال:** بعضې خلق د غدیرخم په موقعه باندې دحضور ﷺ دفرمان نه دعلی رضی الله عنه دامامت ثابتولو کوشش کوی نودا حدیث اوددې خبرې حقیقت څۀ دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولوی عبدالحنان بخشالی ضلع مردان...۱۹۶۹ء|۵|۱۵

---

﴿۱﴾ما په دې قصه کښې دا اثر اونه موندلو.لیکن په دې کښې څه استبعاد هم نشته لکه چه ما دې ته اشاره هم کړې ده.البته د یو جزئی امر دخبر په وجه د دوام او کلیه وهم کول ډیر ظلم دې.

﴿۲﴾عن بلال بن یسار بن زید مولی النبی ﷺ قال حدثنی ابی عن جدی انه سمع رسول الله ﷺ یقول من قال استغفر الله الذی لااله الاهو الحی القیوم واتوب الیه غفرله وان کان قدفر من الزحف رواه الترمذی وابوداؤ دلکنه عند ابی داؤد وهلال بن یسار وقال الترمذی هذا حدیث غریب .
(مشکواة المصابیح ص ۲۰۵ جلد ۱ باب الاستغفار والتوبة)
قال ابن عابدین قلت ولم ار فی الحدیث ذکر صباحا ومساء بل فیه ذکر ثلاثا کما فی الزواجر عن الحکیم الترمذی الاادلک علی مایذهب الله به عنک صغار الشرک وکباره تقول کل یوم ثلاث مرات اللهم انی اعوذبک ان اشرک بک شیئا وانا اعلم واستغفرک لما لا اعلم .وعند احمد والطبرانی ایهاالناس اتقوا الشرک فانه اخفی من دبیت النمل قالوا وکیف نتقیه یارسول الله قال قولوا اللهم انانعوذبک ان نشرک بک شیئا نعلمه ونستغفرک لما لانعلمه .(ردالمحتار ص ۳۱۶ جلد۳ قبیل مطلب توبة الیاس

**جواب:** (۱) حدیث غدیر خم. رواه البراء بن عازب و زید بن ارقم ان رسول الله ﷺ لما نزل بغدیر خم اخذ بید علی فقال الستم تعلمون انی اولیٰ با لمؤمنین من انفسهم قالوا بلیٰ قال الستم تعلمون انی اولیٰ بکل مومن من نفسه قالوا بلیٰ فقال اللهم من کنت مولاه فعلي مولاه اللهم وال من والاه و عادمن عاداه فلقیه عمر بعد ذلک فقال له هنیئاً یا ابن ابی طالب اصبحت و امسیت مولیٰ کل مومن و مومنة. رواه احمد (مشکواة ص ۵۶۵ جلد ۲)

په دې حدیث شریف کښې پیغمبر علیه السلام د حضرت علی رضی الله عنه د پاره ولایت ثابت کړې دې. او ولایت د ډیرو معانو احتمال لری.

ولایت د نصرت او محبت معنیٰ د پاره هم راځی. فمعنی المولی هو الناصر والمحبوب، لهٰذا د دې حدیث نه د امامت معنیٰ اخستل او په دې کښې محصور کول غلطی ده، او که د دې نه بالفرض د امامت معنیٰ مراد واخستلې شی بیاهم د شیعه ګانو د پاره د احجت نه دې، ځکه چه پیغمبر علیه السلام د حضرت علی رضی الله عنه د پاره بالفعل ولایت ثابتوی د انۀ چه هغوی سره د آئنده د پاره وعده کوی. او دا په هیڅ پته نه ده چه حضرت علی رضی الله عنه د پیغمبر ﷺ په ژوند کښې بالفعل امیر او خلیفه وو، او بالفعل ناصر او محبوب وو. نو دا هم یوه واضحه قرینه ده چه مراد امارت او خلافت نه دې. او بالفرض که دا اومنلې شی چه مراد د خلافت او امارت وعده ده، نو دا په اتصال باندې په محمول کولو د ټولو صحابه کرامو بلکه د حضرت علی رضی الله عنه تغلیط موجود دې. پس د دې نه مراد به اتصال نه وی. پس دا به مراد وی چه په استقبال کښې به دوی هم امیر او خلیفه وی. د دې حدیث نه د شیعه ګانو استدلال کم فهمۍ او غلط فهمۍ باندې مبنی دې. د شیعه ګانو د کتابونو نه دا ثابته ده. چه حضرت علی رضی الله عنه د خپل خلافت نه انکار کړې دې. او د نورو خلفاؤ وزیر او قاضی خپل اختیار سره پاتې شوې دې. دا ټول تفصیلات په فتویٰ کښې نه شو لیکلې، د زیات تفصیلاتو د پاره نصیحة الشیعه مصنفه مولانا احتشام الدین او هدیة الشیعه د مولانا قاسم بانی دار العلوم دیوبند او تحفه اثنا عشریه مصنف شاه عبد العزیز صاحب طرف ته مراجعت اوکړئ. او په ضروری بحث باندې مونږ په افتاء کښې اکتفا کوو. وهو الموفق



## په شب معراج کښې د رؤیت باری تعالیٰ په روایاتو کښې تطبیق

**سوال:** آیا حضور ﷺ الله تعالیٰ د معراج په شپه لیدلې دې یا نه؟ ځکه چه په شب معراج باندې د تلو واقعه بعضې خلق په خوب سره تعبیر کوی. او دا روایت پیش کوی چه حضرت عائشه رضی الله عنها په شب معراج کښې د الله تعالیٰ د دیدار قائل نه ده، او بعضې خلق قائل دی. او په دلیل کښې د حضرت عباس رضی الله عنه روایت نقل کوی. نو د مسئلې وضاحت کولو سره ثواب دارین حاصل کړئ؟

المستفتی: محمد جاوید هزاروی...... ۱۹۷۸ء/۷/۲۹

**الجواب:** واضحه دې وی چه لیلة المعراج سره متعلق په اخبار او آثار کښې جمع او تطبیق مشهوره خبره ده.

ای رئ الله تعالیٰ بقلبه لا بوجهه. او با لحجاب لا بلا حجاب او عند عدم التجلی التام لا عند التجلی التام و هکذا. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د موسیٰ علیه السلام د روح قبض کول قرآنی آیت ,,لایستقدمون ساعة,, الخ سره متناقض نه دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې حق په دې مسئله کښې چه حضرت موسیٰ علیه السلام د روح قبض کولو په وخت عزرائیل علیه السلام په څپیړه او وهلو او یوه سترګه ئې ورله بهرته راویستله، او د روح قبض کولو په وخت حضرت موسیٰ علیه السلام مهلت اوغوښتلو او مهلت ورته ورکړې شو. آیا دا واقعه د آیت ,,لایستقدمون ساعة ولا یستاخرون،، سره مخالف نه دې؟ شافی جواب راکړئ ډیره مننه به وی.

المستفتی: الهیان جامع مسجد شیرینګل دیر.... ۱۹۷۵ء/۱۱/۹

**جواب:** هذا الحدیث صحیح سنداً ﴿۲﴾ ولا استحالة فیه متنا لان الانبیاء علیهم السلام کانوا یخیرون ولم یخیره الملک فلم یعرفه موسیٰ علیه السلام کما فی القسطلانی

﴿۱﴾ قال العلامه محمد عبد العزیز الفرهاری (ثم الصحیح انه علیه الصلوة و السلام انما رائ ربه بفواده ای بقلبه لا بعینه اختلف السلف والخلف فیه علی اقوال احدها انکار الرؤیة وهو قول عائشة و المشهور عن ابن مسعود وابی هریره رضی الله عنهما وعن مسروق قال لعائشة هل رأی محمد ربه قالت لقد قف شعری مما قلت من حدثک ان محمد رأی ربه فقد کذب قال فاین قوله تعالیٰ...... ثانیها اثبات الرؤیة بالقلب وهو روایة عن ابن عباس قال القاضی عیاض جاء فی الحدیث لم اره بعینی ولکن رایته بقلبی مرتین وعن ابن عباس قال سئل هل رأیت ربک قال رایته بفوادی رواه ابن جریر ثالثها اثبات الرؤیة بالعین وهی الروایة المشهورة عن ابن عباس وعلیه الشیخ ابو الحسن الاشعری وفی شرح المسلم للاما م النووی هو الراجح عند اکثر العلماء. رابعها التوقف وهو رأی سعید بن جبیر واختار الشارح القول الثانی علی الثالث لانه مؤید بالحدیث ولانه لا یدل علی الرویة بالعین نص واما قول ابن عباس فلعله اجتهادی الخ (النبراس شرح شرح العقائد ص ۲۹۵ باب بیان المعراج)

(بقیه حاشیه په راروانه)

فلیراجع . و افقاء البصر کان من الجسم التمثل به لامن الجسم الملکی لعدم الامکان . فافهم والیراجع الی اصل الحدیث حتی یتمیز حدیث الرسول من زیادات الوعاظ . ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د شداد دجنت په قرآن اوحدیث کښې هیڅ ثبوت نشته

**سوال:** بعضې خلق وائی چه شداد کافر کوم جنت جوړکړې ووهغه الله تعالی په زمکه کښې محفوظ ساتلې دې اودقیامت په ورځ به دشداد جوړکړې شوې جنت ښائی په دې بانډې یوسړی اوویل چه دائې جنت نه بلکه یوښائسته کور جوړکړې وو.چه هغې ته به شداد جنت وئیلې. الله تعالی تباه اوبربادکړو.او یوه ورځ به د کهنډراتو په شکل کښې راوځی.بهرحال آیا داجنت واقعی ترننه پورې په زمکه کښې محفوظ دې.آیات اواحادیثوسره ثابته کړئ.اودا جنت ئې دکومو خلقوپه ذریعه جوړکړې وو.اوشداد کافرته دجنت نقشه چا خودلې وه.پوره وضاحت اوکړئ؟

المستفتی: فضل دیان چراټ ډاك اسماعیل خیل... ۲۹|ربیع الاول ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** دشداد دجنت جوړولو ثبوت قرآن اوحدیث نه نۀ ملاویږی دایوه اسرائیلی خبره ده او واضحه دې وی چه جنت په عربئ ژبه کښې باغ ته وائی. لهٰذا دشداد جنت او باغ جوړول دعقل نه لرې خبره نه ده.بې شکه داخبره صحیح نه ده چه په هغې کښې هغه خاصیات وی کوم چه دمعروف جنت په څیزونو کښې موجود دی.اوداهم صحیح نه ده چه دابه اتم جنت وی.او مسلمانان به هغې ته د جزاء په طوردا خلیږی.دا دمعقول اومنقول دواړو خلاف ده.فقط

---

(بقیه حاشیه)﴿۲﴾مشکواة المصابیح ص ۵۰۷ جلد ۲ باب بدأ الخلق و ذکر الانبیاء علیهم السلام الفصل الاول)

﴿۱﴾ ترجمه: داحدیث سنداً صحیح دې اومتناً دې نه څه محال نه لازمیږی ځکه چه انبیاؤ ته اختیار ورکولې شی.او موسیٰ علیه السلام ته فرشتې اختیار نه ورنه کړو.نوموسیٰ علیه السلام هغه اونه پیژندلو.لکه چه په قسطلانی کښې دی.او سترګه ویستل جسم تمثیلی نه وو دجسم ملکی نه دعدم امکان په وجه نه وو.فافهم اواصل حدیث ته رجوع اوکړئ چه په حدیث بانډې د واعظانو دزیادت نه تمیزراشی.

قال العلامه ابن حجر عسقلانی والجواب ان الله لم یبعث ملک الموت لموسیٰ و هویرید قبض روحه حینئذ وانما بعثه الیه اختیارًا وانما لطم موسیٰ ملک الموت لانه رأی آدمیا دخل داره بغیر اذنه ولم یعلم انه ملک الموت و قد اباح الشارع فق عین الناظر فی دار مسلم بغیر اذن. وقد جاء ت الملائکة الیٰ ابراهیم والیٰ لوط فی صورة آدمیین فلم یعرفا هم ...... انما لطمه لانه جاء لقبض روحه من قبل ان یخیره لما ثبت انه لم یقبض نبی حتی یخیره ......وقال ابن قتیبة انما فقأ موسی العین التی تخیل و تمثیل ولیست عینا حقیقة الخ (فتح الباری شرح صحیح البخاری ص ۲۵۲ ، ۲۵۳ جلد ۸ باب وفات موسیٰ و ذکره بعد کتاب الانبیاء )



## د شوافعو د مستدل غزوة الرقاع والا حدیث ضعف

**سوال:** د غزوة الرقاع واقعه کومه چه اهل حدیث اوشوافع ددې مسئلې په دلیل کښې پیش کوی چه وینې وتلوسره اودس نه ماتیږی.د دوره حدیث شریف په دوران کښې مې ستاسو حضراتو نه اوریدلی ووچه په دې حدیث کښې یو راوی عقیل بن جابر مجهول دې اومحمدبن اسحٰق متکلم فیه دې نوکه په کوم کتاب کښې دامسئله موجود وی نودهغې نوم او مرجع راته راولیږئ؟

خویدکم: مولانا عبدالهادی صاحب ګندف صوابی ۲۸|ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** تاسود بذل المجهودصفحه۹ جلداول اود معارف السنن اکثر ځایونه اوګورئ.چه ددې جواب مخرج او نورجوابات هم درته معلوم شی.او میزان الاعتدال ص۸۸ جلد ۳ هم اوګورئ.﴿ ۱ ﴾ وهوالموفق

## د عهدنامې مضمون اود فضیلت روایات

**سوال:** دلته دحیدرآباد سندھ اوسیدونکو یوه عهدنامه سند ګرځولې ده.چه عهدنامه قرآن شریف دې په دې کښې د عربئ اوقرآن شریف الفاظ دی که یوسړې په ټول عمرکښې یومونځ هم اونه کړی.خوپه ټول عمرکښې یوځل عهدنامه اووائی نوهغه دجنت حقداردې اودجهنم اورپه هغه بانډې حرام دې.⑴ عهدنامه قرآن ګرځول څنګه دی؟⑵ عهدنامه د قرآن مخالف ده که موافق؟⑶ په عهدنامه کښې موجود احادیث صحیح دی یا ضعیف؟⑷ عهدنامه کښې مذکوره فضائلو بانډې اعتقادساتل څنګه دی؟⑸ که عهدنامه د قرآن اواحادیثو خلاف وی نودخلقو عقیدې صفا کولودپاره ددې بې حرمتی او سوزول جائزدی یا نه؟

المستفتی: مولاناغلام ربانی تعلقه ډګری ضلع میرپورخاص سندھ ۱۹۶۹ء|۴|۱۲

**الجواب:** ⑴ عهدنامه قرآن ګرځول کفردې ځکه چه په قرآن کښې زیادت کفردې. ⑵ دعهدنامې مضمون صحیح دې لیکن قرآن نه دې.⑶ قال العلامة الشامی ص۸۴۷ ج۱ نقل بعضهم عن نوادرالاصول للترمذی ما یقتضی ان هذالدعاء له اصل﴿۲﴾. ⑷ اکثر فضائل بې ثبوته او بې دلیله دی.⑸ چونکه سوزولو سره فتنه نه ختمیږی لهٰذا د اسماء الله په سوزولو بانډې اقدام کول نه دی پکار.بخلاف ماوردفی حق المصحف.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ وفی منهاج السنن والجواب عن دلائلهم ان حدیث جابر معلول سنداً لان فی سنده محمد بن اسحاق وعقیل بن جابر والا ول قیل فی حقه کذاب والثانی مجهول لم یرو عنه غیر صدقة بن یسار و کذالیس فیه قول الرسول ولا فعله الخ (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۱۱ جلد ۱ الوضوء من القیٔ والرعاف )

﴿۲﴾( رد المحتا رها مش الدرالمختا ر ص۲۶۸ ج ۱ قبیل باب الشهید )

## د ام ایمن د حضور ﷺ متیازې څکل

**سوال:** آیا د ام ایمن دحضور ﷺ متیازې څکل دکوم حدیث نه ثابت دی؟
المستفتي: محمدصابرشاه ډیره اسماعیل خان ... ۲|ربیع الاول ۱۴۰۲ھ
**الجواب:** دا واقعه حاکم په مستدرك کښې ذکرکړې ده.

## د ,,اختلاف امتی رحمة،، روایت

**سوال:** د حضور ﷺ دا روایت چه ,,اختلاف امتی رحمة،، یعنی زما دامت اختلاف رحمت دې آیا دا روایت صحیح دې؟
المستفتي: سلطان شیرایم آرایف کالونی کامره اټك.. ۲۰|رمضان ۱۴۰۵ھ
**الجواب:** دا حدیث ثابت دې ددې اختلاف په نتیجه کښې دین ښکاره شو دائمه اربعه اختلاف سره دین واضح شو. اوخلق په صحیح لاره روان شول. (فلیراجع الی موضوعات الکبیر لملا علی قاری ص۱۷) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د فیض الباری په یوعبارت باندې د اشکال ازاله

**سوال:** بخدمت محترم المقام حضرت مولانا مفتی محمدفرید صاحب مدظله العالی! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته..... جناب والا دفیض الباری جلد ۳ ص۳۹۵ ددې عبارت مطلب ستاسو نه پوهیدل غواړو، امید دې چه تاسو به ضرور راهنمائی اوکړئ.

---

﴿۱﴾ حدیث اختلاف امتی رحمة زعم کثیر من الائمه انه لااصل له ،لکن ذکره الخطابی فی غریب الحدیث مستطرداً واشعر بان له اصلا عنده وقال السیوطی اخرجه نصر المقدسی فی الحجه والبیهقی فی الرسالة الاشعریه بغیر سند واورده الحلیمی والقاضی حسین وامام الحرمین وغیرهم ولعله خرج فی بعض کتب الحفاظ التی لم تصل الینا والله اعلم وقال الزرکشی اخرجه نصر المقدسی فی کتاب الحجة مرفوعاً والبیهقی فی المدخل عن القاسم بن محمد قوله وعن عمر بن عبد العزیز قال ما سرنی لو ان اصحاب محمد لم یختلفوا لانهم لو لم یختلفوا لم یکن رخصة قال السیوطی و هذا یدل علی ان المراد اختلافهم فی الاحکام وقیل المراد اختلافهم فی الحرف و الصنائع ذکره جماعة فسبحان من اقام العباد فیما اراد .الخ (الموضوعات الکبیر لملاعلی قاری ص ۵۱ رقم حدیث : ۱۶۰)



واعلم ان فی التحریف ثلاثة مذاهب ذهب جماعة ان التحریف فی الکتب السماویة قد وقع بکل نحو فی اللفظ والمعنی جمیعاً و هو الذی مال الیه ابن حزم و ذهب جماعة الیٰ ان التحریف قلیل ولعل الحافظ ابن تیمیة جنح الیه و ذهب جماعة الیٰ انکار التحریف اللفظی رأساً فالتحریف عندهم کله معنوی قلت یلزم علیٰ هذا المذهب ان یکون القرآن ایضاً محرفاً فان التحریف المعنوی غیر قلیل فیه ایضاً والذی تحقق عندی ان التعریف لفظی ایضاً اما انه عن عمد منهم او لمغلطة فالله تعالیٰ اعلم.

مخطط (خط کشیده) عبارت لوستلوسره مې سر اوچورلیده، یوطرف ته د محفوظیت قرآن کریم بنیادی اوقطعی یا ضروری عقیده وانا له لحافظون لاندې قدیماً اوحدیثاً دمفسرینو یویو حرف بلکه زیر اوزبر پورې د حفاظت تصریح... دامام حزم رحمة الله علیه د ,,الملل والنحل جلد ۲ ص ۸۰،، دا ارشاد:

لم مات ابو بکر وولی عمر ...... ان لم یکن عند المسلمین اذامات عمر مائة الف مصحف من مصر الی العراق الی الشام الی الیمن فما بین ذلک فلم یکن اقل ثم ولی عثمان فزادت الفتوح فلو رام احد احصاء مصاحف اهل الاسلام ما قدر ...... واعلموا انه لو رام احد ان یزید فی شعر النابغة او شعر زهر کلمة او ینقص اخری ما قدر لانه کان یفتضح الوقت و تخالفه النسخ المبثوثة فکیف القرآن فی المصاحف و هی من آخر الاندلس و بلاد البرید السودان الیٰ آخر السند و کابل و خراسان والترک والصقالیة و بلاد الهند فما بین ذلک فظهر حمق الرافضة و مجاهداتها با لکذب الخ وقیل ذلک فی ص ۷۸ واما قولهم فی دعوی الروافض تبدیل القرآت فان الروافض لیسوا من المسلمین.

اود علامه خفاجی رحمة الله علیه اوپخپله دقاضی عیاض رحمة الله علیه د ,,شفاء،، اود ,,نسیم الریاض،، ددې فرمان (ج۴ ص۵۵۳ نسیم الریاض)

وکذلک کما کفرنا هذا نکفر من انکر القرآن کله او انکر حرفاً منه او کلمة او غیر شیئا منه بابدال زیادة اونقص فیه کلاماً لیس منه [او ددې نه مخکې] والمرتاب فی ذلک المعلوم من الدین بالضرورة والمنکر بعد البحث و صحبة المسلمین کافر بالاتفاق ولا یعذر بقوله لا ادری الخ

بهرحال دا اوددې په شان شل بلکه ددې نه هم د زیات تصریحاتو باوجود مونږه ټولو طالب علمانوته معلومه ده دحضرت شاه صاحب د پورته مخطط الفاظو مقصد څه دې؟... خدائې دې اوکړی چه دا زما دناپوهئ کرشمه وی، او تاسو یوه داسې تسلی بخش توجیه اوفرمایئ چه د زړه داطمینان دولت حاصل شی. پته نه لګی چه زما په عقل اوفهم څه اوشو چه دې سره سخت پریشانه یم. او باربارد ,,ربنا لاتزغ قلوبنا،، دعاکوم. دوه څلور شخصیات چه هغوی سره مې دهغوی د روحانی اثراتو امید تړلې دې. اوهغوی ته خپله عرض کوم. چه په هغوی کښې ستاسو نه خصوصی طورسره امیدواریم. داوخت صرف هم تاسوته داخط درلیږم امید دې چه ډیر زربه مې تسلی اوکړئ. ماله پکاروو چه پخپله حاضرشوې ووم، اوځان مې پوهه کړې وې. خو همت مې نشته. که ددې الفاظو هم دا ظاهری معنٰی مرادوی کومه چه زه اخلم چه په قرآن پاك کښې لفظی تحریف موجود دې (العیاذ بالله) ځکه چه نه خو د فیه مرجع آسمانی سابقه کتابونه جوړیدې شی اوکه دا فیها کولوسره دکتاب په سر واچولې شی نو ,,اما انه عن

محمد منهم او لمغلطة،، ددې نه مانع دي ځکه چه ددغه کافرانو تحریف خو یقیناً عن محمد وو. لقوله تعالیٰ تلبسون الحق بالباطل و تکتمون الحق و انتم تعلمون ٥ ( سورة البقره آیت )

نوبهرحال آیا یو مسلمان دتحریف ارتکاب کړې دې؟ (والعیاذبالله) که داسې ده نوپه قول د ،،شفاء،، ان هذا المنكر اذا جوز على جميع الامة الوهم والغلط منا نقلوه.. دخل الامة انه فى جميع الشريعة اذهم الناقلون لنا وللقرآن والنحلت عربى الدين. (نسيم الرياض ص.....) اوکه معاذالله خبره هم دغه ده کومه چه دظاهری الفاظونه معلومیږی نوحاسدین او دشمنان د دیوبندیانو ترنن ورځې پورې ددغه اکابرو خلاف دا الفاظ ولې رامخې ته نه کړل؟

اللهم فلاتكلنا الىٰ انفسنا طرفة عين ولا الىٰ احد من خلقك ولا اقل من ذلك و اصلح لنا شاننا كله بجاه نبيك المصطفیٰ و حبيبك المرتضیٰ عليه و على اله و اصحابه من الصلوٰة اكملها و من التسليمات افضلها.

ناکاره: عبدالکریم غفرله ولوالدیه ازنجم المدارس کلاچی

۲۰|جمادی الثانی ۱۴۱۲هـ .....۲۸|دسمبر ۱۹۹۱ء

**الجواب:** محترم المقام جناب قاضی صاحب دامت برکاتکم.... السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته؛ اما بعد..... پس چه تاسو زما په شان په کم علم او کم عمر باندې اعتماد کړې دې نو په دې بناء باندې ددې اشکال د ازالې باره کښې عرض دې چه ما دحضرت شاه صاحب د شاګرد حضرت شیخ الحدیث مولانا عبدالرحمٰن صاحب کاملپوری رحمة الله عليه نه اوریدلی دی چه فیض الباری زمونږ د شیخ رحمة الله عليه امالی دې او باوجود دسعی بلیغ نه په دې کښې ډیرې واضح غلطئ دی. مثلاً دحضرت عیسیٰ علیه السلام آسمان ته د پورته کولو نه مخکښې د عمر متعلق او په قرض کښې حوالې د عدم صحت متعلق وغیره. نو ددې امالی په تفرداتو کښې د غور کولو نه کار اخستل ضروری دی. ددې تحریف والا عبارت متعلق د کال په شروع کښې یو سوال راغلې وو. دهغې جواب دا لیکلې شوې وو چه شاه صاحب دکتب سماویه (سابقه) متعلق دوه مذهبه ذکر کړی دی. اول دا چه په دې کښې تحریف لفظی او معنوی دواړه قسم متحقق کیدې شی. دویم دا چه په دې کښې تحریف لفظی نه دې واقع شوې. په دې کښې صرف تحریف معنوی متحقق شوې دې. ددې نه پس حضرت شاه صاحب په دې دویم مذهب باندې اعتراض کوی چه دې سره دا لازمیږی چه قرآن مجید هم محرف دې ځکه چه په دې کښې تحریف معنوی واقع شوې دې. حالانکه قرآن مجید محفوظ دې. او ددې نه پس حضرت شاه صاحب اول مذهب ته ترجیح ورکوی. چه په کتب سماویه کښې تحریف لفظی هم واقع شوې دې. صرف مترجم د مؤنث په ځائې د مذکر ضمیر راوړلې دې. وحق العبارة: ،،والذی تحقق عندی ان التحریف فیها لفظی ایضاً،، الخ وهوالموفق



# کتاب السنة والبدعة

## د اذان په وخت لاس ښکلول اوپه زوره زوره کلمه اوئیل

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې اکثرو جماتونو کښې کله چه په آذان کښې د محمد صلى الله عليه وسلم نوم واخستلې شی ائمه حضرات لاسونه ښکلوی. او دمونځ نه پس په زوره زوره کلمه وائی دغسې نور رسمونه هم کوی شرعی حکم څه دې؟

المستفتی: یحیٰ خان راوالپنډی .... ۳۰|رجب ۱۳۹۹هـ

**الجواب:** کوم امام چه غیرالله حاضرناظر ګڼړی یا عالم الغیب ئې ګڼړی هغه کافردې. په هغه پسې اقتداء باطل او کالعدم ده. دغسې چه کوم امام دسیدالبشر د بشرنه منکروی هغه هم کافردې. ﴿ ١ ﴾ کما صرحوا به فى كتب الفقه والكلام. او ذکربالجهر بذات خود جائزدې. لیکن د ایذاء په صورت کښې ناجائزدې. ﴿ ٢ ﴾ صرح به الحموی وغیره. پس د اول الذکرنه روستو به مونځ نه کوی. یا اعاده دې کوی. او آخرالذکر پسې دې مونځ کوی او اعاده دې نه کوی. وهوالموفق

## داذان نه مخکښې یا روسته صلاة سلام وئیل

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې عام طورباندې مؤذنین صلاة او سلام وائی ددې شرعی حکم څۀ دې؟

المستفتی: مولوی کرم الٰهی عثمانی اسلام پوره سرګودها ۲۹|رمضان ۱۴۰۵هـ

**الجواب:** دا تولې طریقې نه ممنوع دی او نه مطلوب، البته داهل بدع چه کوم

---

﴿١﴾ قال الله تعالى فى كلامه المجيد قل لا املك لنفسى نفعا ولا ضرا الاما شاء الله و لو كنت اعلم الغيب لاستكثرت من الخير و ما مسنى السوٓء. (الايه الاعراف :١٨٨)
قال العلامه الوسى المراد نفى استمرار علمه عليه الصلاة والسلام الغيب .و مجيئى "كان" للاستمرار شائع و يلاحظ الاستمرار ايضافى الاستكثار وعدم المس وقيل المراد بالغيب وقت قيام الساعة لان السوال عنه ....وقيل أل فى الغيب للاستغراق و هو عليه الصلاة والسلام لم يعلم كل غيب فان من الغيب ما تفرد الله تعالى به كمعرفة كنه ذاته تبارك وتعالىٰ و كمعرفة وقت قيام الساعة على ما تدل عليه الاية.
(تفسير روح المعانى ص ١٩٩ جلد٦ سورة الاعراف : ١٨٨)

﴿٢﴾ قال ابن عابدين عن الامام الشعرانى اجمع العلماء سلفاً خلفاً على استحباب ذكر الجماعة فى المساجد وغيرها الا ان يشوش جهر هم على نائم او مصل او قارى الخ
(رد المحتار هامش الدر المختار ص ۴۸۸ جلد ١ مطلب فى رفع الصوت بالذكر باب احكام المساجد)

شعاروی دهغي نه اجتناب مطلوب دي. لقوله عليه السلام اتقوا مواضع التهم.《۱》فقط

## د مړي په کفن باندې رنګدارې سياهۍ باندې ليکل ناجائزدي

**سوال:** دمړي په کفن باندې رنګدار څيز مثلاً سياهئ، پنسل، خاوره يابل څه څيز سره کلمه شهادت يا د قرآن آيتونه ليکل جائزدي يا نه؟ که اوليکلې شي نو څه حرج دې؟

المستفتي: صوفي سخي محمد چتال جهلم.... ۱۹۶۹ء/۳/۱۰

**الجواب:** دمړي په کفن باندې سياهئ سره ليکل ناجائزدي اوکه صرف په ګوتې سره اوليکلې شي نوجائزدي. والتفصيل فی ردالمحتارص ۸۴۷ جلد۱، د مړي د سخا کيدو په وجه دقرآن او کلماتو اهانت دکراهيت منشاء ده.

## بدعت څه څيزدې؟

**سوال:** څه فرمائي علمائې کرام د لاندې مسئلې باره کښې چه مونږ خو تراوسه پورې دبدعت تعريف دا اورو، چه هرهغه کار دين ګڼړل کوم چه د نبی کريم ﷺ اوصحابه کرامو په زمانه کښې نه وی شوې، ليکن ددې تعريف په حوالې سره خود بنده په ناقص خيال کښې دبدعت نوم اونشان هم پاتې نه شو لهذا صحيح بدعت څه دې؟ بينوا وتوجروا

المستفتي: محمدظاهر دوړپتي ميرانشاه ضلع بنوں.... ۱۶/ شعبان ۱۳۹۶ھ

**الجواب:** محترم المقام طالب العلم، السلام عليکم نه پس دې واضحه وی چه

《۱》حديث اتقوا مواضع التهم رواه البخاری فی الادب المفرد وقال الملا علی قاری حديث اتقوا مواضع التهم. هو معنی قول عمر: من سلک مسالک التهم اتهم' رواه الخرائطی فی مکارم الاخلاق عن عمر موقوفاً بلفظ "من اقام نفسه مقام التهم فلا تلومن من اساء الظن به"
(الموضوعات الکبریٰ لملا علی قاری ص ۴۹ رقم حديث: ۱۵۱)

《۲》وقد افتی ابن الصلاح بانه لا يجوز ان يکتب علی الکفن يٰس والکهف ونحوهما خوفاً من صديد الميت وقال بعد اسطر وقدمنا قبيل باب المياه عن الفتح انه تکره کتابة القرآن واسماء الله تعالی علی الدراهم والمحاريب والجدران وما يفرش وما ذاک الا لاحترامه وخشية وطئه ونحوه مما فيه اهانة فالمنع هنا بالاولی. نعم نقل بعض المحشين عن فوائد الشرجی ان مما يکتب علی جبهة الميت بغير مداد بالاصبع المسبحة بسم الله الرحمن الرحيم وعلی الصدر لا اله الا الله محمد الرسول الله وذالک بعد الغسل قبل التکفين انتهی مختصراً.
(رد المحتار ص ۶۶۹ جلد ۱ مطلب فيما يکتب علی کفن الميت قبيل باب الشهيد)



بدعت احداث فی الدين ته وائي.《۱》پس کوم امر چه ددين نه نهٔ وی، دقرآن اوحديث د عبارت، دلالت، اشارت او اقتضاء اعتبارسره ثابت نه وی. نو داسې امر ددين نه شمارل به بدعت وی. پس ددې نه ټول مباحات خارج شو. دغسې رسمونه هم ددې نه خارج شو. ځکه چه دا امورڅوک ددين په حيثيت سره نه کوی. البته دا امور چه کله د التزام په طورکولې شی نو بدعات به وی.

لان التزام ما لا يلزم بدعة فکم من فرق بين البدعة الشرعية و بين البدعة التجدية. فافهم.《۲》

## د بدعت سيئه اوحسنه تعريف څهٔ دې؟

**سوال:** د بدعت حسنه اوسيئه تعريف څهٔ دې، که څوک بدعت حسنه کوی نو هغه منع کول وغيره څنګه دی؟ مهرباني اوکړئ پوره وضاحت اوليکئ شکريه به وی.

المستفتي: حاجی دارمحمد ابوظهبی ا عالم زيد مردان... ۱۴۰۱/۵/۳ھ

**الجواب:** غيرد ين لره دين ګڼړل بدعت دې. کوم څيزچه په خيرالقرون کښې نه بنفسه ثابت وی اونه باصله ثابت وی نوهغه بدعت سيئه دې اوکوم څيزچه بنفسه ثابت نه وی ليکن باصله ثابت وی نوهغه بدعت حسنه دې.《۳》

هذا النزاع لفظی بناء علی اختلاف تفسير البدعة فمن قال انها مالم يوجد فی خير القرون بنفسه ولا بدليله فهی عنده سيئه لا محالة ومن قال انها مالم يوجد بنفسه سواء وجد بدليله او لا فهی عنده قسمان فافهم.

《۱》قال الملا علی قاری قال النووی البدعة کل شی عمل علی غير مثال سبق وفی الشرع احداث مالم يکن فی عهد رسول الله ﷺ.(مرقات ص ۲۱۶ جلد ۲)وقال الامام الغزالی اذا لم يرد فيه نهی فلا ينبغی ان يسمی بدعة ومکروها ولکنه ترک الاحب وقال الشافعی ما خالف الکتاب والسنته او الاثر او الاجماع فهو ضلالة وما احدث من الخير مما لا يخالف شيئاً من ذلک فليس بمذموم.(الاحياء للعلوم الدين ص ۳۳۱ جلد ۲)

《۲》قال ابن عابدين بدعة ای محرمة والا فقد تکون واجبة کنصب الادلة للرد علی اهل الفرق الضالة وتعلم النحو المفهم للکتاب والسنة ومندوبة کاحداث نحو رباط ومدرسة وکل احسان لم يکن فی الصدر الاول ومکروهة کزخرفة المساجد ومباحة کالتوسع بلذيذ المأکل والمشارب والثياب کما فی شرح جامع الصغير للمناوی عن تهذيب النووی ومثله فی الطريقة المحمدية للبرکلی.
(ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

《۳》قال ابن عابدين بدعة ای محرمة والا فقد تکون واجبة......ومندوبة......وکل احسان لم يکن فی الصدر الاول ومکروهة...... ومباحة الخ (ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

## بدعت او ددې اقسام

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه دبدعت څومره اقسام دی، آیا بدعت سیئه او حسنه هم وی او کوم اقسام جائز او کوم ناجائز دی؟

المستفتی: نامعلوم...... یکم مئی ۲۰۰۰ء

**الجواب:** بدعت په لغت کښې هغه څیز ته وائی کوم چه دمثال سابق او نمونه سابق نه بغیر معمول شوې وی او شرعاً دهغه څیز احداث او ایجاد ته وائی کوم چه د پیغمبر علیه السلام په زمانه کښې نه وو. یعنی احداث فی الدین ته وئیلې شی.

کما فی المرقاة قال النووی البدعة کل شئی عمل علی غیر مثال سبق وفی الشرع احداث مالم یکن فی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم. ﴿۱﴾

البته کوم امور چه خلفائې راشدینو مقرر کړې وی هغه بدعت نه دی. هغه مصالح مرسله دی. مسنون دی لحدیث ابن ماجه علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین. ﴿۲﴾

لکه څنګه چه صدیق اکبر رضی الله عنه قرآن کریم په یوه صحیفه کښې جمع کړو. او عمر فاروق رضی الله عنه تراویح په جماعت کبری حقیقی مقرر کړې. او عثمان بن عفان رضی الله عنه دجمعې دویم اذان مقرر کړو. شیخ عزالدین بن عبد السلام فرمائی امور دین یعنی بدعات شرعیه کله واجب وی او کله محرم وی او کله مندوب وی او کله مکروه وی. ﴿۳﴾ او کوم امور چه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې نه وو. او دهغې متعلق نهی هم وارد شوې نه وی هغې ته به بدعت او مکروه نه وئیلې کیږی.

کمافی الاحیاء ص ۳۳۱ جلد ۲ اذا لم یرد فیه نهی فلاینبغی ان یسمی بدعة و مکروها و لکنه ترک الاحب و قال الشافعی ما خالف الکتاب و السنة او الاثر اوالاجماع فهو ضلالة و ماحدث من الخیر مما لا یخالف شیئاً من ذلک فلیس بمذموم

---

﴿۱﴾(مرقاة المفاتیح شرح مشکواة المصابیح ص ۲۱۶ جلد ۲)

﴿۲﴾(مشکواة المصابیح ص ۳۰ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب و السنة)

﴿۳﴾قال العز بن عبد السلام الشافعی البدعة فعل مالم یعهد فی عصر رسول الله صلی الله علیه وسلم وهی منقسمة الیٰ بدعة واجبة وبدعة محرمة وبدعة مندوبة وبدعة مکروهة وبدعة مباحة و الطریق فی معرفة ذلک ان تعرض البدعة علی قواعد الشریعة فان دخلت فی قواعد الایجاب فهی واجبة وان دخلت فی قواعد التحریم فهی محرمة. وان دخلت فی قواعد المندوب فهی مندوبة (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



او بعضې مشائخ فرمائی چه هر بدعت مذموم او سیئه دې، او جمع بین القولین داده چه که بدعت نوم دې دهغه امورو کوم چه خیر القرون کښې موجود نه وی، نه بنفسه او نه باصله نو مذموم او سیئه دی، او که نوم دې دهغه امورو کوم چه خیر القرون کښې بنفسه موجود نه وی نو که باصله موجود وی نو بدعت حسنه دې. او که باصله هم نه وی نو بدعت سیئه دې. وهوالمختار عنداهل التحقیق.

## د کویژدن او ختنې (سنت) په پروګرام کښې امام او نائی ته رقم ورکول رسم دې

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې دا رواج دې چه کله څه ختنه (سنت) کویژدن یا نکاح وغیره وی نو خپلوان او دوستان دجمات امام او نائی راغواړی، د پروګرام په آخر کښې امام او نائی ته څه رقم ورکوی، نو دا رقم اخستل شرعاً څنګه دې؟

المستفتی: حافظ عبد المالک نرياب کوهاټ ۱۷/ جولائی ۱۹۷۹ء

**الجواب:** دا یو عوامی رسم دې په دې کښې حصه اخستل نه دی پکار، باقی که د ثواب په نیت سره دا لین دین نه وی ﴿۱﴾ نو دې ته بدعت وئیل بدعت دی. وهو الموفق

## قضاء عمری، دجمعې په شپه یا ورځ سلام په حالت دقیام او مزاراتو باندې ډیوې او جهنډې لګول

**سوال:** (۱) د قضاء عمری مونځ په شریعت کښې څنګه دې؟ (۲) دجمعې په شپه یا په ورځ دقیام په حالت کښې سلام وئیل څنګه دی؟ (۳) د اولیاء الله په مزاراتو باندې ډیوې بلول او جهنډې ښخول څنګه دی؟

المستفتی: حاجی سراج الدین هری پور..... ۲۱/ جولائی ۱۹۷۹ء

---

(بقیه حاشیه گزشته صفحه) و ان دخلت فی قواعد المباح فهی مباحة وللبدع الواجبة امثلة احدها الاشتغال بعلم النحو ........ المثال الثانی حفظ غریب الکتاب و السنة من اللغة المثال الثالث تدوین اصول الفقه المثال الرابع الکلام فی الجرح و التعدیل ........ وللبدع المندوبة امثلة منها احداث الربط والمدارس ........ وللمکروهة امثلة کزخرفة المساجد........ وللبدع المباحة امثلة ........... کا التوسع فی اللذیذ من الماکل والمشارب و الملابس الخ. (قواعد الاحکام ص ۱۷۲، ۱۷۴ جلد ۲ بحواله البدعة الحسنة اصل من اصول الشرع ص ۲۹)

﴿۱﴾قال الشیخ العلامه مفتی محمد فرید اعلم ان البدعة هی اعتقاد ما لیس من الدین دیناً و هی قسمان مکفرة و مفسقة. (فتح المنعم شرح مقدمة صحیح مسلم ص ۲۹ )

**الجواب:** (۱) دامونځ کوم ته چه قضاء عمری وائی نه د حدیثو د روایتو نه ثابت دې او نه د فقهي نه، بلکه قواعد حنفیه سره متصادم دې. پس دا مونځ بدعت سیئه دې ددې نه اجتناب ضروری دې. (۲) د خپل طرفه تقیدات او تخصیصات کول بدعت دې. (۱) (۳) دا ټول په ټوله بدعات دی. (۲)

**نوټ:** که د تفصیل ضرورت وی نو صرف یو سوال رالیږه.

## د نکاح په وخت د واده د خلمی په سر سهره تړل

**سوال:** د نکاح په وخت د وادهٔ د خلمی په سر باندې سهره تړل وغیره چه داخالص د هندوانو رسم دې که لګولې ئې وی او نکاح اولوستلې شی نو نکاح به درست وی یا نه، او د سهرې تړلو څه حکم دې؟ بدعت دې یا نه؟

المستفتی: سراج الدین خطیب ډومیل ضلع جهلم ۱۹۸۶ء|۸|۱۰

**الجواب:** چونکه دا سهره د ثواب او عبادت نیت سره نه لګوی بلکه د رسم ارادې سره تړلې شی. پس د "من تشبه بقوم فهو منهم" (۳) الحدیث په وجه باندې ممنوع دې. (۴) لیکن بدعت نه دې. او بهرحال د نکاح لوستلو نه مانع نه دې. کسائر المعاصی من حلق اللحیة وغیرها. وهو الموفق

## د اختر په ورځ دوباره د تعزیت دپاره تلل قبیح رسم او بدعت سیئه دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین د شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د اختر په ورځ د مړی کورو الؤ کره دوباره د تعزیت دپاره تلل څنګه دی. حالانکه د مړی پنځه شپږ میاشتې شوې وی؟

المستفتی: نامعلوم ...... ۱۹۸۴ء|۸|۲۵

---

(۱) قال ابن نجیم ولان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئی دون شئی لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع (البحرالرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العیدین)

(۲) قال فی الهندیه ویکره...... ایقاد النار علی القبور فمن رسوم الجاهلیه والباطل والغرور. (هندیه ص ۱۶۷ جلد ۱ ومما یتصل بذلک مسائل التعزیة) و قال ابن عابدین الشامی لان النص اقوی من العرف لان العرف جاز ان یکون علی باطل کتعارف اهل زماننا فی اخراج الشموع و السرج الی المقابر لیالی العید. (رد المحتار ص ۲۰۲ جلد ۴ مطلب فی ان النص اقوی من العرف باب الربا)

(۳) (مشکواةالمصابیح ص ۳۷۵ جلد ۲ کتاب اللباس الفصل الثانی)

(۴) قال العلامه طیبی قوله من تشبه بقوم هذا عام فی الخلق والخلق و الشعار و اذا کان الشعار اظهر فی التشبه ذکر فی هذا الباب. (شرح الطیبی ص ۲۱۹ جلد ۸ کتاب اللباس الفصل الثانی)



**الجواب:** دا تعزیت یو قبیح رسم او بدعتِ سیئه دې. اعاذنا الله منها (۱)

وهوالموفق

## د پیران پیر د یولسمې ورکولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د پیرانې پیر په نوم یوولسمه ورکولو جائز دې که نه؟

المستفتي: بنیاد حسین سیالکوټ.....۲۵ جولائې ۱۹۷۹ء

**الجواب:** که دا یوولسمه د غیر الله نذر وي نو حرام او شرک دې او که د ایصال ثواب دپاره وي نو بیا د پیران پیر د خوشحالئ او نزدیکت د نیت په وجه باندې حرام او ریاده. او که د پیران نه د امداد غوختلو په نیت سره وي نو مکروه او ناجائز دې. (۲) څکه چه د خپل طرفنه د وخت وغیره تخصیص کول مکروه او ناجائز دي (۳) (ماخوذ از ردالمحتار والبحر). وهو الموفق

## قرآن مجید د جنازې نه مخکښې وړل وغیره

**سوال:** د جنازې په وخت کښې قرآن پاک د جنازې نه مخکښې مخکښې وړل او د مړې سرته کیښودل او د جنازې نه روستو په هغې باندې مروجه ګردان وئیلې کیږي دا شرعاً جائزدي یا نه؟ په دې کښې خو به د قران تو هین نه وي؟

المستفتي: ولي الرحمان خطیب ضلع مانسهره....۱۲۸ جمادي الثاني ۱۳۹ھ

---

(۱) وفی الهندیه اذا عزی اهل المیت مرة فلا ینبغی ان یعزیه مرة اخری کذا فی المضمرات ووقتها من حین یموت الی ثلاثة ایام ویکره بعدها الا ان یکون المعزی اولمعزی الیه غائباً فلا بأس بها. (فتاوی هندیه ص ۱۶۷ جلد ۱ ومما یتصل بذلک مسائل التعزیة باب الجنائز)

(۲) قال العلامه الحصکفی واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اکثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربا الیهم فهو بالاجماع باطل و حرام ما لم یقصدوا صرفها لفقراء الانام الخ وقال ابن عابدین باطل وحرام لوجوه منها انه نذر للمخلوق والنذر للمخلوق لا یجوز لانه عبادة والعبادة لاتکون لمخلوق ومنها ان المنذور له میت والمیت لا یملک ومنها انه ان ظن ان المیت یتصرف فی الامور دون الله تعالی و اعتقاده ذلک کفر الخ (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۱۳۹ جلد ۲ قبیل باب الاعتکاف)

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**الجواب:** دا کار پخپله نه توهین دي نه تعظیم دي نه مطلوب دي او نه ممنوع دي. او دا د ثواب کار ګڼل بدعت دي.﴿۱﴾ لهذا عوام په غلط فهمئ کښې د مبتلا کولو دوجې د داسې کارونو بندول ضروري دي. وهو الموفق

## په قبرونو باندې د عرس او لفظ. حق باهو، پیر باهو، سلطان باهو حکم

**سوال:** د شرعي متين مفتيانِ غظام لاندې مسائلو باره کښې څه فرمائي (۱) چه نن صبا په قبرونو باندې کوم عرسونه کيږي ددې څه حکم دې؟ (۲) د لفظ، حق باهو، پیر باهو او سلطان باهو د ذکر څه حکم دې؟

المستفتي:مولوی محمد دین مسعود جنوبی وزیرستان ډی آئی خان. ۲۱\۱ رجب\۱۴۰۵

**الجواب:** په قبرونو باندې عرس کول يو واجب الاجتناب کار دې. ﴿۲﴾ ځکه چه دا په اخره کښې دقبر پرستئ شکل اختيار وی (۲) دا الفاظ د اعتراض قابل نه دي ددې معنی د شريعت سره متصادم نه ده البته اوليائي کرام رحمهم الله په کارونو کښې اختيار مند ګڼل نا جائز دي.﴿۳﴾

## د چا په سفر باندې تللو وخت کښې اذان ورکول

**سوال:** ځمونږ د بلوچستان په علاقه کښې دا عادت دې چه کله يو مسافر د کراچئ، لاهوريا حج بيت الله شريف يا هر ځائې چه وي د سفر اراده اوکړي نو

---

(بقيه حاشيه ګزشته صفحه) ﴿۳﴾ قال العلامه ابن نجيم ولان ذكر الله تعالى اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئى دون شئى لم يكن مشروعاً حيث لم يرد الشرع به لانه خلاف المشروع (البحرالرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العيدين)

﴿۱﴾ قال الشيخ العلامه محمد فريد اعلم ان البدعة هى اعتقاد ما ليس من الدين دينا وهى قسمان مكفرة و مفسقة. (فتح المنعم شرح مقدمه صحيح مسلم ص ۲۹)

﴿۲﴾ قال فى الهنديه و يكره عند القبر ما لم يعهد من السنة و المعهود منها ليس ا لاّ زيارته والدعاء عنده قائماً كذا فى البحر الرائق .(هنديه ص ۱۶۶ جلد ۱ الفصل السادس فى القبر والدفن والنقل الخ)

﴿۳﴾ و منها ان ظن ان ا لميت يتصرف فى الامور دون الله تعالى واعتقاده ذلک كفر. (البحر الرائق ص ۲۹۸ جلد ۲ قبيل باب الاعتكاف)



طالب علم يا د جمات امام صاحب ورته د الوداعي تقريب نه پس اذان اووائي او په دليل کښې داپيش کوي چه پخوانو علماؤنه داسې کول نو آيا داقسم اذان کول چرته د شريعت مطهره دجزئيې نه ثابت دي؟ او که د آثارو او سنتو او فقهي جرئياتو نه ثابت نه وي نواوليکئ چه ددې جاهلانو خلقو مخ نيوې اوکړې شی؟

المستفتي:محمد اسلم حقانی مدرسه فیض الاسلام
کربلا یشین کوئټه. ۱۳\۳\۱۹۲۹

**الجواب:** حافظ ابن حجر رحمه الله په تحفه، کښې د بعضې آثارو په بناء باندې دا آذانٌ او اقامت سنت وئيلې دي او ځمونږ فقهاؤ هم ددې تقرير کړې دي. قال العلامه الشامى فى باب الاذان ص۲۸۳ جلد۱ و زاد ابن حجر فى التحفة الاذان والاقامة خلف المسافر. وهو الموفق

## په بيابان کښې دلارې غلط شوی د پاره اذان

**سوال:** ما د څو علماؤ نه اوريدلې دي چه په صحرا او بيا بان کښې د يو سړي نه لاره غلطه شي او هغه ته صحيح لاره نه وي معلومه او قبلې ته مخ کړې اذان اوکړي نو الله تعالى به دده غيبي مدد اوکړي او صحيح لاره به ورته اوښائی. ليکن د باجوړ يو عالمِ دين دې مسئلې ته شرک وئيلې دي. لهذا د صحيح مسئلې نه مو خبر کړئ؟

المستفتي:حافظ بشير احمد پارهوتي مردان......۱۳ شعبان ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** په بيابان کښې لارې غلطيدو واله دپاره اذان کول مندوب دي. كما في ردا لمحتار ص ۲۸۳ باب الاذان. و زاد فى شرعة الاسلام لمن ضل الطريق في ارض قفرٍ اى خالية من الناس. وهوالصواب. وهوالموفق

## د لډوانو ختم. د جاهلانو خود ساخته ختم دې

**سوال:** نن صبا ځمونږ په علاقه کښې يو قسم ختم شروع شوې دې چه هغې ته د لډوانو ختم وائي د قرآن کريم په ځائې باندې دې ختم ته فوقيت ورکوي او اوس ډير عام کيږي ددې متعلق وضاحت اوکړئ؟

المستفتي:مهر محمد متعلم دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک ۶\۱۳\۱۹۸۲

**الجواب:** دا د جاهلانو خود ساخته ختم په منکراتو باندې مشتمل دې ددې نه ځان ساتل ضروري دي. (قال عليه السلام من احدث في امرنا هذا ماليس منه فهو رد. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په لسم محرم قبرونو باندې اوبه اچول بدعت دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه څمونږ په کلي اوعلاقه کښې د محرم په لسم تاريخ عام خلق په قبرونو باندې اوبه اچوي. آيا دا جائز دي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي:حاجی اسلم گل صالح خانه.....نوشهره ۱۲۲محرم ۱۴۰۱ هجري.

**الجواب:** په قبرونو باندې محرم کښې اوبه اچول رواج او بدعت دې. ﴿۲﴾قران او حديث او فقه کښې ددې څه تذکره نشته. فقط.

## د موجوده زمانې مرثيه خواني او په قبرونو عرس کول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) چه د موجوده زمانې د مرثيه خوانۍ څه حکم دې چه شاعران او نعت خوانان حضرات ئې عام طورسره جوړوي اوبيائې اوروي؟ (۲) په قبرونوباندې عرس کول شرعاًڅنګه دې؟

المستفتي:سيد بسم الله شاه متعلم دارالعلوم حقانيه۱۳\صفر المظفر۱۴۰۱هـ

**الجواب:** (۱) د موجوده زمانې مرثيه خواني د غلط او دروغ وينا نه خالي نه وي ددې نه بچ کيدلو کښې زيات احتياط دي﴿ ۳﴾ (۲) عرس که د تبليغي اجتماع نوم وي. نو څه خبره نشته. او که په قبر وغيره باندې دیوې مقدسې ميلې لګولو نوم وي نو دا بدعت سيئه دي. ﴿۴﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾(مشکواة المصابيح ص۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام با لکتاب و السنة الفصل الاول )
﴿۲﴾ عن عائشة رضی اللـه عنها قالت قال رسو ل الله ﷺ من احدث فی امرنا هذاما ليس منه فهورد .متفق عليه .(مشکواة المصابيح ص ۲۷ جلد ۱ باب الا عتصام با لکتاب و السنة)
﴿۳﴾قال ابن عابدين العشرون ای من آفات اللسان الشعر سئل عنه ﷺ فقال کلام حسنه حسن وقبيحه قبيح و معناه ان الشعر کا لنثر يحمد حين يحمدو يلم حين يذم ولابأس باستماع نشيد الاعراب وهو انشادالشعرمن غير لحن ويحرم هجو مسلم ولوبمافيه

.................. (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## بيلچه وغيره د قبر د پاسه بل طرفته ورکول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه کله مړې دفن شي بيلچه وغيره د يو طرفنه بل طرفته د قبر دپاسه ورکوي او دا کار دثواب په نيت باندې کولې شي شرعاً ددې څه حکم دې ؟

المستفتي:نامعلوم........۱۴۰۱\۴\۲۷

**الجواب:** دا يو عوامي رسم دې اسلامي رسم نه دې پخپله باندې نه مطلوب دې او نه ممنوع دې. البته د ثواب په نيت باندې کول ممنوع دې.﴿ ۱﴾

## د بارانونو بنديدلو د پاره سورة ياسين يا اذانونه وئيل

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې علاقو کښې کله بارانونه ډير شي او بنديږي نه نو د جمات په ګوټونو کښې څه کسان اودريږي او د جمات امام به سورة يسين شروع کړي نو چه کله قاری صاحب د سورة يسين مبين،، ته اورسي نوپه ګوټونو کښې ولاړ خلق اذانونه شورع کړي. دغه شان د جمات په څلورو واړو ګوټونو کښې داکار کيږي. آيا دا طريقه ثابته ده يانه ؟ بينو اتوجروا

المستفتی: عطاءالله رحماني شريک دوره حديث دارالعلوم حقانيه۱۹۸۷\۷\۲۱

(بقيه حاشيه گزشته صفحه ) قال ﷺ لان يمتلی جوف احدکم قيما خير له من ان يمتلی شعرًا فما کان منه فی الوعظ والحکم و ذکر نعم الله تعالی و صفة المتقين فهو حسن الخ
( ردالمحتار ص ۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی انشاد الشعر قبيل باب الوتر والنوافل )
﴿۴﴾قال ابن عابدين و يکره النوم عند القبر وقضاء الحاجة بل اولی وکل ما لم يعهد من السنة والمعهود منها ليس ا لاّ زيارتها و الدعاء عندها قائماً.
( ردالمحتار ص ۶۶۷ جلد ۱ مطلب فی وضع الجريد ونحو الآس علی القبر قبيل باب الشهيد )
﴿۱﴾ قال ابن نجيم ولان ذکر الله تعالی اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئی دون شئی لم يکن مشروعا حيث لم يرد الشرع به لانه خلاف المشروع( البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العيدين )

الجواب: که دا طريقه د باران د بندولو دپاره د ثواب په نيت او د سنت عمل کيدلو په اراده باندې کوي نو بيا خو دا طريقه اختيارول قبيح بدعت دي(۱) او که د عملياتو او تو ټکې په اراده سره وي نو صرف مباح دي.(۲) ليکن خلق په دې اراده سره کوي چه دا دين دی نو اجتناب ترې نه ضروري دي. والله اعلم.

## د باران بندولو د پاره اذانونه کول د عملياتو په طورمباح دی کنی نو بدعت دي

سوال: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه کله باران ډير وريږي نو بعضې جماتو نو کښې امام په محراب کښې په ولاړه سورة ياسين وائي او عوام د جمات په ګوټونو ولاړوي او په هر مبين. باندې دامام سره اذانونه شروع کړي. دې دپاره چه باران اودريږي نو آيا دا جائز دي؟

المستفتي: احمد شاه پارهوتی مردان...۱۸ جمادي الاولي ۱۴۰۱ھ

الجواب: دا عمل د سنت اودين(۳) په عقيدې سره کول بدعت سيئه دي او د عملياتو په اراده سره د دمونو او علاجونو په طور نه مطلوب دي او نه ممنوع دي. لعدم کونه مصادماً با لدين. وهو الموفق.

(۱) قال الشيخ مفتى اعظم محمد فريد ان البدعة هى اعتقاد ما ليس من الدين دينا و هى قسمان مكفرة ومفسقة. (فتح المنعم شرح مقدمه مسلم ص ۲۹ جلد ۱ الفائدة التاسعة)

(۲) عن عوف بن مالک الاشجعى قال كنا نرقى فى الجاهلية فقلنا يا رسول الله ﷺ كيف ترى فى ذلك فقال اعرضوا على رقاكم لا بأس با لرقى ما لم يكن فيه شرك" رواه مسلم. (مشكواة المصابيح ص ۳۸۸ جلد ۲ كتاب الطب والرقى)

(۳) عن عائشة رضى الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من احدث فى امرنا هذا ما ليس منه فهو رد" متفق عليه. (مشكواة المصابيح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام با لكتاب والسنة)

(۴) عن عوف بن مالک الاشجعى قال كنا نرقى فى الجاهلية فقلنا يا رسول الله كيف ترى فى ذلک فقال اعرضوا على رقاكم لا بأس بالرقى مالم يكن فيه شرک. رواه مسلم (مشكواة المصابيح ص ۳۸۸ جلد ۲ كتاب الطب والرقى)



## د جمعې په شپه تبارک الذی ونيل

سوال: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د جمعې په شپه د تبارک الذي وئيلو څه حکم دي؟ دا يو رسم جوړ شوې دې. امام صاحب د جمعې په شپه تبارک الذي وائي اوعوام ئې اوري.

المستفتي: عبد المناف ميډيکل ستور نوشهره...۱۴۰۱۱۷۱۱

الجواب: د قران تلاوت ډير لوئې عبادت دې. او د جمعې شپه ډير شان والا شپه ده ليکن په دين کښې د خپل طرف نه د مکان يا وخت او ذکر تخصيص کول او د هغې متعلق د ثواب عقيده ساتل مکروه او بدعت دې. (ماخوذا از بحرالرائق ص ۱۵۹ جلد ۲)(۱) وهوالموفق

## څلوېښتمه او د ختم قران تخصيص نه کول

سوال: څما والده صاحبه وفات شوې ده دهغې دپاره مو ختم او خيرات اوکړو او د څلويښتمې نه دوه ورځې مخکښې مو خيرات اوکړو چه د څلويښتمې هغه رسم پاتې نه شي او صرف سالن مو پوخ کړو دلته څو علمائي کرامو په دې قران خوانئ باندې د بدعت فتوى اولګوله. او خوړل ئې ناجائز اووئيل مهرباني به وي وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: اخترمحمد جنزل سيکرټري جميعت طلباء اسلام لورالائي بلوچستان ۱۴۰۱۱۷۱۹

الجواب: چه تا څان د تخصيص نه بچ کړو نو په بدعت او کراهت کښې د پريوتو نه بچ شوې كما يفهم من قولهم(۲) بان تخصيص الذكر بوقت لم يرد به الشرع غيرمشروع (شامى ص ۱۷۰ جلد ۲) البته په قران خوانئ باندې صله ورکول مشروع دی لکه چه قاريانو له د اعزاز په طريقې

(۱) قال العلامه ابن نجيم ولان ذكرالله تعالى اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئى دون شئى لم يكن مشروعا حيث لم يرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العيدين)

(۲) قال العلامه ابن نجيم ولان ذكرالله تعالى اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئى دون شئى لم يكن مشروعا حيث لم يرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العيدين)

سره ور کول جائز دي. ﴿۱﴾ او د اجرت په طریقې باندې مختلف فیه دي. د عالمګیري او صاحب البحر د کلام نه جواز معلومیږي. فلیراجع الی وقف البحر ﴿۲﴾ او شامي وغیره ﴿۳﴾ نه عدم جواز معلومیږي والیه میلان الاکابر. وهو الموفق.

**د صفر په آخری چهارشنبه چوري کول بدعت او قبیح رسم دي**

**سوال:** ځمونږ صوبه سرحد علاقه کښې د صفر په میاشت د خیرات کولو یوه خاص طریقه روانه ده. چه هغه ته چري وائي. د عوامو عقیده ده چه دا حضرت عائشه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ د جوړیدلو په خوشحالي کښې کړې وه (ماهنامه النصیحة) چارسده کښې مولانا ګوهرشاه او مولانا رشید احمد صدیقي مفتي دار العلوم حقانیه په خپلو خپلو مضمونونو کښې ددې تردید کړې دي. چه چرې او خیرات یهودیانو د پیغمبر علیه السلام د بیمارئ په خوشحالئ کښې کړې وه. او مسلمانانو ته دا رسم منتقل شو ددې وضاحت او کړئ؟

المستفتي: میاں کریم الله سرپرست آل ټیچر ایسوسی ایشن
صوبه سرحد ۳۰۱۱۰۱۱۹۸۲

**الجواب:** دا چري نه قرآن او حدیث نه ثابت ده او نه د آثارو او د فقهاؤ د کتابونو نه. لهذا د ثواب په نیت سره کول بدعتِ سیئه دي ﴿۴﴾ او د رواج په نیت سره کول رسمِ قبیحه دي او لازمول د یو داسې څیز دي چه هغه لازم نه دي. دارنګې د حاکم په روایت کښې لیکلي چه د پیغمبر علیه السلام په بیمارئ کښې آخری چهارشنبه باندې زیاتوالي راغلي وو. او عوام وائي چه په بیمارئ کښې کموالي راغلي وو. او عوام ئې حضور ﷺ ته نسبت کوی. چه هغوی

﴿۱﴾ عن انس رضی الله عنه ان رجلا من کلاب سال النبي ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال یا رسول الله ﷺ انا نطرق الفحل فنکرم فرخص له فی الکرامة. رواه الترمذی

﴿۲﴾ قال ابن نجیم فان المفتی به جواز الاخذ علی القراء ة (البحر الرائق ص ۲۲۸ جلد ۵ کتاب الوقف) وفی الهندیة واختلفوا فی الاستئجار علی قراء ة القرآن علی القبر مدة معلومة قال بعضهم لا یجوز وقال بعضهم یجوز وهو المختار کذا فی السراج الوهاج. (هندیه ص ۴۴۹ جلد ۵ مطلب الاستئجار علی الطاعات)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین قال تاج الشریعة فی شرح الهدایة ان القرآن بالاجرة لا یستحق الثواب لا للمیت ولا للقاری وقال العینی فی شرح الهدایة و یمنع القاری للدنیا والآخذ والمعطی آثمان فالحاصل ان ما شاع فی زماننا من قراء ة الاجزاء بالاجرة لا یجوز ...... فاذا لم یکن للقاری ثواب لعدم النیة الصحیحة فاین یصل الثواب الی المستأجر الخ (رد المحتار ص ۳۹ جلد ۵ مطلب تحریر مهم فی علم جواز الاستئجار علی التلاوة الخ کتاب الاجارة)

﴿۴﴾ عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت قال رسول الله ﷺ من احدث فی امرنا هذا ما لیس منه فهو رد. متفق علیه. (مشکواة المصابیح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام با لکتاب و السنته)



چرئ غوښتې وه او دا نسبت موضوعي دي او حرام دي ﴿۱﴾ لعدم ثبوت هذا الحدیث في کتب الاحادیث ولا بالاسناد الثابت. وهو الموفق

**د چرئ په باره کښې ټول دلیلونه غلط او د ځان نه جوړکړي شوي دی**

**سوال:** علمائي دین او مفتیان د شرع متین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د صفر په آخره چهارشنبه باندې چه کومه چُري کیږي ددې د جواز په باره کښې دوه دلیلونه پیش کوي. (۱) چه نبي کریم ﷺ ددې صفر په میاشت کښې بیمار شوې وو بیا چه هم په دې میاشت کښې روغ شو نو حضرت عائشه رضی الله عنها په شکر په کښې صدقه او خیرات کړې دي. (۲) حضور ﷺ چه په دې میاشت کښې بیمار شو یهودیانو د هغه په بیمارئ باندې د خوشحالئ ښکاره کولو دپاره پدې میاشت کښې خیرات اوکړو او خوشحالي ئې او کړه. لهذا مونږ چه دا خیرات کوو یا خو ددې دپاره چه حضرت عائشه رضی الله عنها خیرات کړې وو یا د یهودو په مقابله کښې چه هغوي خوشحالي کړې وه. مونږ په قصد باندې د هغوي په مقابله کښې د نعمت د شکر دپاره کوؤ. لهذا علمائې دین ددې مسئلې په باره کښې څه فرمائي چه دا دلیلونه صحیح دي یا غلط؟

المستفتي: نامعلوم متعلم دار العلوم حقانیه اکوړه خټک ۲۰۱ صفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د ثواب په نیت سره چُري کول بدعتِ سئیه دي ځکه چه غیر سنت، سنت ګرځول لکه غیر دین، دین ګرځول دي. ﴿۲﴾ او دا بدعت دي. ددې جائز کونکو دپاره ضروري دي. چه ددې حدیثونه سند ذکر کړي او یا دداسې کتاب حواله ورکړي چه هغه سره د سند نه حدیثونو ذکر کوي او یا کم از کم د فقهې د متداول کتابونو حواله ذکر کړي. ولن یاتوا بها ولو کان بعضهم لبعض ظهیراً. ﴿۳﴾

﴿۱﴾ عن سمرة بن جندب والمغیرة بن شعبة قالا قال رسول الله ﷺ من حدث عنّی بحدیث یری انه کذب فهو احد الکاذبین رواه مسلم ومن کذب علي متعمدًا فلیتبوأ مقعده من النار رواه البخاری. (مشکواة المصابیح ص ۳۲ جلد ۱ کتاب العلم)

﴿۲﴾ عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت قال رسول الله ﷺ من احدث فی امرنا هذا ما لیس منه فهو ردٌ متفق علیه. (مشکواة المصابیح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام با لکتاب و السنته)

﴿۳﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ یکون فی آخر الزمان دجّالون کذابون یأتونکم من الاحادیث بما لم تسمعوا انتم ولا آباء کم فایاکم وایاهم لا یضلونکم ولا یفتنونکم رواه مسلم (مشکواة المصابیح ص ۲۸ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة)

او ددې نه علاوه حاکم روایت کړې دي چه پیغمبر ﷺ په آخرئ چارشنبه کښې ناجوړه شوې وو، یعني بیماري ئې سخته شوې وه او په تاریخ کښې دا لیکلي شوې دي چه د خیبر یهودیانو په دې ورځ باندې خوشحالي کړې وه او د عوتونه ئې تیار کړي وو او دا ثابت نه دي چه مسلمانانو هم دهغوي په مقابله کښې څه کاروائي کړې وي. وهوالموفق

## د چرئ د خوړلو حکم

**سوال:** د چُري شرعاً څه حکم دې ؟او ددې خوراک خوړل څه حکم لرې؟ بینواتوجروا

المستفتي: سید روح الله کانګړه پشاور.....۱۵ربیع الاول۱۴۰۱هـ

**الجواب:** چُري د ثواب په ارادې سره مکروه ده.لان فیه تخصیص الزمان والنوع بلا مخصص یدل علیه ما فی البحر ص ۱۵۹ جلـــد۲«۱»البته د عوامو دپاره خوړل مکروه نه دي.لما في الهندية ص ۳۸۰ جلد ۵ ولا يباح اتخاذ الضيافة ثلاثة ايام في ايام المصيبة واذا اتخذ لا باس بالاكل منه كذا في خزانة المفتين«۲» فافهم.

## د ۱۹ مسائلو مختصر جوابونه

**سوالونه:** (۱) زیارت کول جائز دې یا نه؟ مسئله د اسقاط څه شي دې؟ (۳) مسئله د دوران قران؟. (۴) د حیله اسقاط دپاره دائره جوړول؟.(۵) د تلاوت قران دپاره د چا په قبر کیناستل ؟ (۶) د مړي دپاره قدموته اخستل؟ (۷) دَ جنازې دَمونځ نه روستو په جمع باندې دعا کول ؟ (۸) ذکر بالجهر دامام ابوحنیفه دَمذهب مطابق؟ (۹) د سورت روم تعیین کول د رمضان په درویشتمه شپه کښې؟ (۱۰) د رمضان شریف په اوویشتمه شپه کښې خیرات کول؟ (۱۱) د مړي د کور نه په دریمه، نهمه، څلویښتمه وغیره خیرات کول؟ (۱۲) یوولسمه؟ (۱۳) په ختم قرآن باندې خوراک کول او بغیر د شرط نه پیسې اخستل؟ (۱۴) د غیر الله په نوم نذر کولو سره نکاح باقي پاتې کیږي یا نه؟ (۱۵) په تعویذ شکرانه جائز ده؟ (۱۶) د غیر الله په نوم نذر حرام اوشرک دَې اوخوراک ئې حرام دې؟(۱۷) د جمعې مونځ په کلي کښې نه

«۱» قال العلامه ابن نجيم و لان ذكر الله تعالى اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم يكن مشروعا حيث لم يرد الشرع به الخ (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العيدين)
«۲» (فتاوى هنديه ص ۳۴۴ جلد ۵ الباب الثانى عشر فى الهدايا و الضيافات)



کیږي نو اخترونه هم داسې دي. ؟ (۱۸) د سنتو نه روستو دعا کول؟ (۱۹) د حضرت حسن اوحسین رضی الله عنهما تعین کول او خیرات کول په یوه خاص ورځ.

المستفتي: عزیزالله خان بنوں

**الجواب:** (۱) زیارة القبور جائز دې لیکن عبادة القبور شرک دې. (۲) مروجه حیله د شرائطو خیال نه ساتلو په وجه بې کاره ده مثلاً حقیقتاً د مالک کولو اراده وغیره وغیره. (۳) قرآن مالِ متمول دې اخستل خرڅول پکښې جاري کیږي لهذا په دې سره دوران هم جائز دې. (۴) صف او دائره دواړه طریقې جائز دي لیکن فقراء او مسکینانو ته هبه کول یا خیرات کول د ذمې د فارغیدلو دپاره شرط دې. (۵) ابن الهمام وغیره په جواز باندې تصریح کړیده (۶) څلویښت قدمونه اخستل د فقهاؤ مستحبات دي. (۷) د صفونو ماتولو نه پس جائز ده. (۸) او مونځ ګذار ته د تکلیف نه ورکولو په شرط سره جائز دې. (۹) د حدیثیه او فقهیه روایاتو نه ثابت نه دې (۱۰) تخصیص بغیر د مخصص نه دې (۱۱) خیرات هر وخت جائز دې او رسم هر وخت ناجائز دې او میلمستیا تر درې ورځو پورې ناجائز ده. (۱۲) بدعت دې. (۱۳) دې کښې اختلاف دې خو جواز غوره دې (۱۴) تجدید نکاح ضروري دې (۱۵) په هره طریقه باندې اجرت اخستل جائز دې (۱۶) حرام او د شرک سخته خطره پرې موجود ده (۱۸) دعا په هئیتِ اجتماعي سره د فرضو او سنتو نه روستو د پیغمبر ﷺ د فعل مخالف ده د قول مخالف نه ده. (۱۹) دعا شوره په ورځ په خوراک کښې فراخی کول مسنون او مستحب دي.

**نوټ:** که د تفصیل ضرورت وي نو یو یا دوه سوالونه رالیږه.

## په مزارونو باندې د یولسمې پئ او د مالګې حکم

**سوال:** د پنجاب په اکثر مزارونو کښې د یوولسې شریف په رسم کښې پئ تقسیمولې شی ددې څه حکم دې؟ دغسې په مزارونو باندې چه کومه مالګه پرته وی د هغې خوړل څه حکم لرې؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: لقمان دین بی، اے، یو۔ لاهور.....۲۱شوال...۱۴۰۲

**الجواب:** دا ,,ما اُهل بهِ لغیرالله،، دې اوحرام دې«۱» اومالګه وغیره که د عوامو

«۱» قال العلامه حصكفى و اعلم ان النذر الذى يقع للاموات من اكثر العوام و(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

خودساخته تبرکات وي نو ددينه په انکار کښې څه حرج نشته. ﴿۱﴾

## د قبر سره ختم او د وفات په اولنۍ ورځ ديګونه پخول

**سوال:** (۱) علمائې کرام څه فرمائي چه بعضې حضرات د مړي په وفات باندې د دريمې ختم شريف کوی نو دا جائز دي که نه؟ (۲) دا ختم شريف بعضې حضرات په قبرستان کښې د مړي د قبر نه ګير چاپيره کيني او لولي ئې نو قبرستان کښې داسې کول جائز دی؟ (۳) بعضې خلق دې ختم شريف ته نمبر ورکوی چه ختم د اديرې، ختم دجمات، اوختم دکور، شرعاً دا نمبرې ورکول جائزدی؟ بعضې حضرات د مړی په مرګ باندې د ړومبۍ ورځې نه ديګونه پخوی په دغه ورځ دا ديګونه پخول څنګه دی؟

المستفتي: مولوي فضل حکيم پير پيائي...... ۱۹۷۶\۱۲\۱۰

**الجواب:** (۱) واضحه دې وي چه د مړو دپاره ايصال ثواب جائز دې برابره خبره ده که د بدني عبادت ثواب وي او که مالی وی ليکن ايصال ثواب دپاره دوخت او ځائې تخصيص کول ناجائز دي. که په وحي سره نه وي. کما يدل عليه ما فى البحر ولان ذکر الله تعالى اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئي دون شئي لم يکن مشروعا حيث لم يرد الشرع بـه (ص۱۵۹ ج۱ باب العيدين) لهذا د سوم دپاره تخصيص کول بدعت دې. (۲، ۳) فتوي د صاحبينو په قول باندې ده چه مقبره کښې قرآن مجيد لوستل صحيح دې. ﴿۲﴾ ليکن د وخت او ځائې تحصيص او اهتمام کول بدعت سئيه دې. ﴿۴﴾ په فقيرانو باندې صدقه کول هر وخت جائز دې او رسم رواج هر وخت بې فائدې دې او ميلمستيا درې ورځو پورې ناجائز ده.

فى البزازيه ويکره اتخاذ الطعام فى اليوم الاول و الثالث و بعد الاسبوع و نقل الطعام الى القبرفى المواسم واتخاذ الدعوة لقراءة القرآن و جمع الصلحاء والقرآء للختم (الیٰ ان قال)

(بقيه حاشيه گزشته صفحه) و ما يؤخذ من الدراهم و الشمع و الزيت ونحو ها الى ضرائح الاولياء الكرام تقربًا اليهم فهو با لاجماع باطل وحرام. (الدر المختار ص ۱۳۹ جلد ۲ قبيل باب الاعتكاف)

﴿۱﴾ قال العلامه ابن نجيم و لان ذكر الله تعالى اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئى دون شئى لم يكن مشروعًا حيث لم يرد الشرع به لانه خلاف المشروع (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العيدين)

﴿۲﴾ قال العلامه طحطاوى و اخذ من ذلک جواز القراءة على القبر و المسئلة ذات خلاف قال الامام تكره لان اهلها جيفة ولم يصح فيها شئى عنده عنه ﷺ و قال محمد تستحب لورود الآثار و هو المذهب المختار كما صرحوا به فى كتاب الاستحسان (حاشية الطحطاوى ص ۳۴۱ جلد ۱ فصل فى زيارة القبور)



وان اتخذ طعاما للفقراء كان حسنا. رد المحتار ص ۸۴۳ ج ۱. وفيه ايضا و يكره اتخاذ الضيافة من الطعام من اهل الميت لانه شرع فى السرور و لا فى الشرور و هى بدعة مستقبحة روى الامام احمد و ابن ماجه باسناد صحيح عن جرير بن عبدالله قال كنا نعد الاجتماع الى اهل الميت وصنعهم الطعام من النياحة (۸۴۱، ۸۴۲ ج ۱) ﴿۱﴾

او عوام دا د ريا او فخر او د شرم د وجې نه کوي چه دا ټول فاسد غرضونه دي نو ددې نه بچ کيدل ضروري دي او نقد پيسې ورکول ډير ښه څيز دي ځکه چه په هغې کښې دا نقصانات نه وي يا دا چه دَ دې نه بچ کيدل زيات آسان وي. فقط.

## د يو بزرګ د ځائې مکې معظمې سره تشبيه ورکول، عرس، قوالی، ميلاد، درود او دويمه دعا

**سوال:** علمائې دين لاندينو مسئلو باره کښې څه فرمائي. (۱) د يو بزرګ د ځائې تشبيه مکې معظمې سره ورکول څنګه دي؟ (۲) د پيرانو او اولياؤ په دربارونو باندې ميلاد عرس او نن صبا والا قوالي کول څنګه ده؟ (۳) دا مروجه، درود وسلام، د ميلاد او عرس په موقع باندې په ولاړه جائز دي يا نه؟ او حال دا چه د حاضر وناظر عقيدې ئې هم وي، (۴) آيا دويمه دُعا ضروري ده؟

المستفتي: محمد موسیٰ قادري مدرسه تعليم الفرقان توحيدنګر چاکيواړه کراچی نمبر۱.... ۱۹۷۲\۸\۱۶

**الجواب:** (۱) تشبيه کښې څه مسئله نشته ځکه چه تقابل ئې ورسره شته خو د زياتي نه ځان ساتل ضروري دي. (۲. ۳) دا ټول په ټوله بدعات دي بچ کيدل ترې نه ضروري دي. ﴿۲﴾ (۴) دويمه دعا جائز ده ليکن التزام ئې بدعت دي لکه چه د فرضونه پس التزام بدعت دي. ﴿۳﴾ فقط

﴿۱﴾ ردالمحتار ص ۶۶۴ جلد ۱ مطلب فى كراهة الضيافة من اهل الميت قبيل باب الشهيد)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين و يكره ...... كل ما لم يعهد من السنة و المعهود منها ليس الا زيارتها و الدعاء عندها قائمًا. (ردالمحتار ص ۶۶۷ جلد ۱ مطلب فى وضع الجريد و نحو الآس على القبور قبيل باب الشهيد)

﴿۳﴾ قال العلامه ابن نجيم و لان ذكر الله تعالى اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشئى دون شئى لم يكن مشروعًا حيث لم يرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العيدين)

## چه مړي په لحد کښې کیښودې شي نو اذان کول ورته بدعت دي

**سوال:** څمونږ په علاقه کښې د دوو فرقو خپل مینځ کښې اختلاف راغلې یوه ډله وائي چه مړي ته په لحد کښې د اذان کولو ثبوت قران، سنت او قرون ثلاثه کښې نشته، او دویمه ډله ددې په دلالت کښې (ایذال الاجر) پیش کوي، مهرباني اوکړئ مدلل جواب رااولیږئ.

المستفتي: ناصر شاه جلبئ صوابي صوبه سرحد......... ۱۵۱۱۱۱۱۹۷۲

**الجواب:** په قبر کښې اذان وئیل بدعت دي ځکه چه دا نه په روایاتِ حدیثیة کښې راغلې دې او نه په ظاهر الروایة او نادر الروایة کښې شته. من ادعٰی فعلیه البیـان. او بې شکه ددې بدعت او غیرمندوب کیدل په فتاوؤ کښې لیکلې شته.

قال العلامه ابن عابدین الشامی فی الاقتصار علی ما ذکر من الوارد اشارة الیٰ انه لا یسن الاذان عند ادخال المیت فی قبره کما هو المعتاد الآن. و قد صرح ابن حجر فی فتاویه بانه بدعة و قال و من ظن انه سنة قیاسا علی ندبهما للمولود الحاقا لخاتمة الامر بابتداء ه لم یصب ﴿۱﴾ فافهم وتدبر.

## د اخترونو نه پس غاړې ملاوول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د اختر د مانځه نه خلق څنګه فارغ شي نو غاړې ملاوهي، په شریعت کښې ددې څه حکم دې؟

المستفتي: غلام رحیم بالاکوټ مانسهره......یکم ۱ذیقعده۱۴۰۲ هجري

**الجواب:** غاړې ملاوولو نه په عربي کښې، معانقه، وائي چه دا پخپله مسنون ده البته ددې د اختر د مونځ نه پس یا داسې یو وخت پورې تخصیص کولو کښې اختلاف دې. چا وئیلي دي چه مسنون دي. او چا وئیلي دي مباح دي او چا وئیلي دي مکروه دي نو احتیاط دادې چه ددې نه دې اجتناب اوکړیشي

﴿۱﴾ رد المحتار علی الدر المختار ص ۲۶۰ جلد ۱ مطلب فی دفن المیت باب صلاة الجنازة)



البته په کولو والا باندې دې سخت انکار اونه کړې شي. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په اخترونوکښې مصافحه اومعانقه اووالدینوته ټیټیدل اوښپې ښکلول

**سوال:** عرض دادې چه مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله په خپل کتاب فتاوٰی رشیدیه کښې لکلي دي چه د اخترونو په ورځ مصافحه او معانقه دواړه بدعت دي دارنګې د خپلو بزرګانو او والدینو په ښپو باندې تعظیماً ټیټیدل او ښکلول هم بدعت دي. دکتابونو په حوالې سره مدلل جواب راکړئ؟ الله دې اجر درکړي.

المستفتي: مولوي غلام حسین جلبئ صوابي مردان...۱۹۶۹ع۳۱۳۱۲۳

**الجواب:** بعضې علماء په عیدین وغیره کښې مصافحې ته مباح بلکه سنت وائي او بعضې علماء ورته بدعت وائي (فلیراجع الي رد المحتار ص ۳۳۵ ج۵) ﴿۲﴾ اکثر علماء محققین عدمِ جواز ته ترجیح ورکوي لانه اقوي من حیث الدلیل لان التخصیص لا بدله من دلیل خاص صرح به الشامي في باب.

﴿۱﴾ قال العلامه سید احمد الطحطاوی. والتهنئة بقوله تقبل الله منا و منکم لا تنکر بل مستحبة لورود الاثر بها کما رواه الحافظ ابن حجر عن تحفة عید الاضحی لا بی القاسم المستملی بسند حسن کان اصحاب رسول الله ﷺ اذا التقوا یوم العید یقول بعضهم لبعض تقبل الله منا ومنکم قال و اخرجه الطبرانی ایضًا فی الدعاء بسند قوی قال والمتعامل به فی البلاد الشامیة والمصریة قول الرجل لصاحبه عید مبارک علیک و نحوه و یمکن ان یلحق هذا اللفظ فی الجواز الحسن و استحبابه لما بینهما من التلازم و کذا تطلب المصافحة فهی سنة عقب الصلاة کلها و عند کل لقی. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۲۸۹ جلد ۱ باب احکام العیدین)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین الشامی حیث قال اعلم ان المصافحة مستحبة عند کل لقاء واما ما اعتاده الناس من المصافحة بعد صلاة الصبح والعصر فلا اصل له فی الشرع علی هذا الوجه ولکن لا بأس به فان اصل المصافحة سنة و کونهم حافظوا علیها فی بعض الاحوال وفرطوافی کثیر من الاحوال او اکثرها لا یخرج ذلک البعض عن کونه من المصافحة التی ورد الشرع باصلها ...... لکن قدیقال ان المواظبة علیها بعد الصلوات خاصة قد یؤدی الجهلة الی اعتقاد سنتیها فی خصوص هذه المواضع الخ.

(ردالمحتار ص ۲۷۰ جلد ۵ باب الاستبراء وغیره کتاب الحظروالاباحة)

العیدین ﴿۱﴾ ولان عند التعارض المحرم یقدم علي المبیح او خاص طور سره د والدینو په ښپو باندې لاسونه کیښودل چرته ثابت نه دي اګر چه په ډیر تکلف سره دا توجیه ممکنه ده چه په حجر اسود باندې لاس کیښودل د ښکلولو قائم مقام کیدې شی. او د والدینو ښپې ښکلول ثابت او مبرهن دي. لهذا لاسونه کیښودل به هم جائز وي. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## سالانه. عید میلادالنبي مجلسونه او د هغې متعلقات

**سوال:** په ربیع الاول کښې چه کوم خلق د سیرت مبارک د بیانولو دپاره کوم پُر تکلفه مخفلونه جوړوي، او د ضرورت نه زیاتې رنړا ځانې کول، او رنګارنګ قمقمې او بلپونه په اونو باندې اچوي او دا کارونه د ثواب ګڼړي دا ټول د رسول الله ﷺ د محبت او دهغوي د شان د احترام په جذبې سره دا زرګونه روپئ لګوي. نو سوال دادې (۱) چه آیا هر کال دا قسم د ذکر رسول محفلونو کښې واقعي ثواب او اجرشته؟ (۲) او آیا د بناؤ سنګار والا محفلونه به شرعاً په بدعتِ حسنه کښې شمار کیږي. یا په بدعت د ګمراهئ کښې او حال دادې چه عوام دا د محبتِ رسول ﷺ او شانِ رسول ﷺ صحیح او بهتر معیار ګڼړی؟ (۵) او آیا په دې قسم محفلونو کښې مالي او بدني تعاون کول تعاؤن علي البر

﴿۱﴾ قال ابن عابدین و بان تخصیص الذکر بوقت لم یرد به الشرع غیر مشروع اه (ردالمحتار ص ۶۱۳ جلد ۱ باب العیدین)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین لما اخرجه الحاکم ان رجلًا اتی النبي ﷺ فقال یا رسول الله ﷺ ارنی شیًا ازداد به یقینا فقال اذهب الی تلک الشجرة فادعها فذهب الیها فقال ان رسول الله ﷺ یدعوک فجاءت حتی سلمت علی النبي ﷺ فقال لها ارجعی فرجعت قال ثم اذن له فقبل رأسه و رجلیه وقال لو کنت امرًا احدًا ان یسجد لاحد لامرت المرأة ان تسجد لزوجها وقال صحیح الاسناد.

(رد المحتار ص ۲۷۱ جلد ۵ قبیل فصل فی البیع کتاب الحظر والاباحة)



دي یا اعانت علي البدعة والمعصیة دي؟ بینوا واجرکم علي الله:

المستفتي: حضرت العلامه مولانا (قاضي عبدالسلام خطیب جامع مسجد نوشهره) ۱۹۲۹ء

**الجواب:** (۱) دَرسول الله ﷺ دَذکر کول د ثواب کاردې خو دې طریقو او قیدونو سره ئې کول بدعت دې. (لعدم ثبوته في خیرالقرون بوجه ولا شتماله علي التزام مالا یلزم وعلي الرعایة فوق الرعایة الشریعة. ﴿۱﴾ (۲) دا اسراف او فضول خرچې د رسول الله ﷺ د سیرت خلاف مظاهره ده. چه کله پیغمبر علیه السلام په کور کښې او دیوالونو باندې کپړې قدرې نه دې پریخودلی نو ددې دومره ډول سنګار برداشت به څنګه اوکړي. (۳) ددې اهتمام او التزام ثبوت په خیرالقرون کښې ترننه پورې ثابت نه دې. (۴) دا مجموعي طور سره په بدعتِ سیئه کښې شمار کیږي. (۵) دا اعانت نه دې بلکه اضاعت دې.

## د مسجد نبوي ﷺ د متولی شیخ احمد خوب او مشهوره وصیت نامه

**سوال:** عرض دادې چه د ډیرې مودې نه وخت په وخت د وصیت نامه، په نوم یو پوستر چاپ کیږي چه دهغې په هره زمانه کښې مطلب خو یو دې لیکن الفاظ ئې مختلف وي چه شیخ احمد نومې د مسجد نبوي ﷺ خادم وائي چه ما په روضه پاک ﷺ باندې تلاوت کولو چه خوب راباندې غلبه اوکړه په خوب کښې حضور ﷺ راغې او ماته ئې اطلاع راکړه چه څما امت ته دا خبره اورسوه. او په هغې کښې ئې مختلفې خبرې لیکلې دي چه هغه د اوردوالي د وجې پریږدم او په آخره کښې لیکي. د چه ددې شل پرچې اولیکئ او تقسیم ئې کړئ. په بعضو ګښې لس لیکلې او چاچه انکار اوکړو نو هغه د ځان دومره دومره نقصان اوکړو. ما ددې متعلق اوریدلې چه ۲۸ مفتیانو ددې متعلق فتوې ورکړې. براه کرم تاسو مدلل جواب راکړې چه دا وصیت نامه صحیح ده که غلطه؟ بینوا توجروا

ددې متعلق ډیرزیات تعداد کښې استفتاء شوی دی په دې وجه صرف یو جواب باندې اکتفاء کوو.

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری من اصرعلی امر مندوب و جعله عزما ولم یعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشیطان من الاضلال. (مرقاة المفاتیح ص ۵۳ جلد ۲) قال ابن عابدین و بان تخصیص الذکر بوقت لم یرد به الشرع غیر مشروع. (ردالمحتار ص ۶۱۳ جلد ۱ باب العیدین)

**الجواب:** دا دروغ نامه د پنځوس کالو نه د زياتې مودې راسې هم دغه شان چاپ کيږي د اکابرينو فرمان دي چه ددې وصيت نامې خورول زنادقه ؤ قائم کړي. په دې کښې وخت په وخت کمې زياتې هم کيږي او ډير کرته پدې کښې د شريعت نه خلاف مضمون هم خوريږي. او شيخ احمد متولي يو فرضي سړې دې. په دې نوم متولي هيڅوک نه پيژني. دارنګې د امت د بدو اعمالو په رسول اکرم ﷺ باندې هيڅ اثر نه غور زيږي. او په هغې کښې ئې ليکلې وي چه څه شرمنده يم وغيره وغيره. او د پيغمبر عليه السلام هغه فرمانونه چه په ژوند کښې ئې بيدار صحابه کرامو ته بيان کړي او مونږ ته باقاعده رارسيدلي دي هغه څمونږ دپاره کافي دي. هيڅ قسمه دروغو ته ضرورت نشته دين مکمل شوي دې، ددې دروغ نامې، بندول د ثواب او برکت کار دې، وهم پرست خلق ددې دروغ نامې نه ډير متاثر کيږي، او افسوس دې چه ساده مسلمانان د قرآن او حديث د ښکاره وعيد اتو نه نه ويريږي او په نامعلوم خوب سره دومره بې آرامه کيږي. فالى الله المشتکئ ﴿۱﴾

نه شبم نه شب پرستم که حديث خواب گويم
چون غلام آفتابم همه ز آفتاب گويم

## د مزارونو نذر او منختې دچا حق دې؟

**سوال:** د پيربابا خد متګاران او اولاد وغيره د خپل حق او نمبر شکرانه اخلي چرته نيک کار مثلاً دجمات تعمير اوغريبانانو دپاره ئې وقف کړي يا خيرات کړي آيا دا جائز دي که نه؟

المستفتي: بخت شيرحسين کلپاني ډګر بونير سوات..... ۱۴۰۱/۷/۲۶ ه‍

**الجواب:** د تحفو شرعي مالک هغه سړې دې څوک چه دا تحفه ورکونکې مالک کړي او مالک خپل مال په هر څه کښې استعمالولې شي.

﴿۱﴾ عن العرباض بن ساريه قال صلے بنا رسول الله ﷺ ذات يوم ثم اقبل علينا بو جهه فوعظنا مو عظة بليغة...... فقال او صيکم بتقوى الله و السمع و الطاعة وان کان عبدًا حبشيا فانه من يعش منکم بعدى فسيرى اختلافًا کثيرًا فعليکم بسنتى و سنة الخلفاء الراشدين المهديين تمسکوا بها وعضوا عليها با لنواجد واياکم ومحدثات الامور فان کل محدثة بدعة وکل بدعة ضلالة رواه احمد و ابو داؤد والترمذى وابن ماجه الا انهما لم يذکر الصلوة (مشکواة المصابيح ص ۳۰ جلد ۱ باب الاعتصام با لکتاب والسنة)



**نوټ:** کومې تحفې چه ما اهل به لغير الله وي د هغې ورکولو والا مشرک دې او اخستلو والا شرعي مالک دې ﴿۱﴾

## په مزارباندې شرکياتو او منکراتو کونکې اوکولو والا منجور قتلول وغيره

**سوال:** علمائې دين شرع متين څه فرمائي چه په يو مزار باندې يو بوډا سړې ناست دې چه شرکيات کوي. او خلقو ته ترغيب ورکوي چه داسې کوئ، طواف کوئ. قبر پورې ځان مږئ، او جارو د ځان پورې مږئ وغيره، اوس دلته نزدې يو جمات او ښوونځي دي چه په هغې کښې دا منجور اوسيږي او خوراک څښاک کوي دهغوي سره چرسيان او بنګيان هم اوسيږي. نو سوال دادې چه داسې کس د الله د رضا دپاره قتل کول څنګه دي؟ او د جمات سره متصل کمرو سوزول څنګه دي؟ چه جمات د سوزولو نه محفوظ او ساتلې شي چه د شرکياتو دا اډه ختمه شي؟

المستفتي: حافظ نجم الاسلام هائي سکول کاهي هنګو کوهاټ ۲۸ جمادي الثاني ۱۴۰۹ ه‍

**الجواب:** قتل کول او سوزول ډير سخت جرمونه دي. د شرعي اجازت نه بغير ددينه ځان ساتل ضروري دي داسې کس دې علماء حضرات پوهه کړي او د اصرار په صورت کښې دې زباني او عملي مخالفت شروع کړي. ﴿۲﴾ فقط

## د مولود شريف حکم

**سوال:** نن صبا چه خلق مولود شريف کوي او دا دثواب کار ګڼړي او فائده هم پکښې شته دې چه ديني تقريرونه وغيره پکښې کيږي. او د پيغمبر عليه السلام په ژوندمبارک باندې پکښې رڼړا اچولې کيږي نو د مولود شريف څه حکم دې؟

المستفتي: نامعلوم... ۵ محرم ۱۳۰۴ ه‍

﴿۱﴾ قال الحصکفى و شرائط صحتها فى الواهب العقل والبلوغ والملک...... وشرائط صحتها فى المو هوب ان يکون مقبو ضا غير مشاع مميزاً غير مشغول کما سيتضح و رکنها هو الايجاب والقبول کما سيجئ و حکمها ثبوت الملک للمو هوب له غير لازم. (الدرالمختار ص ۵۶۷ جلد ۴ کتاب الهبه)

﴿۲﴾ عن ابراهيم بن ميسرة قال قال رسول الله ﷺ من وقّر صاحب بدعة فقد اعان على هدم الاسلام رواه البيهقى فى شعب الايمان مر سلاً (مشکواة المصابيح ص ۳۱ جلد ۱ باب الاعتصام با الکتاب و السنة)

**الجواب:** که مولو د شریف د تبلیغي اجتماع نوم وي نو جائز دي، او که دي ولادت وغیره ذکر کولو نوم وي نو دا بذاتِ خود یو لوی عبادت دی لیکن د خارجي عوارضو اسراف، دبې ډېرې هلکانو و نعت خواني د حاضر او ناظر د عقیدې د خطرې وغیره وجوهاتو نه دا موجوده مروجه د میلاد مجلسونه منقعد کول ممنوع دي. ﴿۱﴾

## د سنتي کولو د بعضې رسوماتو وضاحت

**سوال:** څمونږ په علاقه کښې چه د ماشومانو سنتي کیږي نو د سنتئ په وخت خیرات لازمي ګڼړي او اوږدې مودې نه دې، ددې دپاره دَقرض بندوبست کوي د لرې لرې رشته داران او خپل خپلوان رابلي او بالکل دَسنتي په وخت کښې د خلقو نه پنځه پنځه، لس لس روپې آخلي او رشته داران د سنت والا کور ته ځان سره غوړي. اوړه او چیني وغیره سامانو نه د خوراک دپاره راوړي او په سنت کښې روپې ورکول یو ضروري کار ګڼړي کیږي؟ او نه ورکونکو ته په سپکه کتلې شي. نو آیادا رسمونه جائز دي که بدعت دې؟ شرعي حیثیت ئې بیان کړئ؟

المستفتي: محمد رشاد مډل سکول چمله بونیر

**الجواب:** چونکه دا رسمونه ددین په حیثیت سره نه شي کولې یعني د ثواب په نیت باندې نه کیږي نو په دې باندې د بدعت اطلاق غلط دې اشار الیه الشارع علیه السلام من احدث فی امرنا هذا مالیس منه. ﴿۲﴾ نو که دا رسمونه د ریاء او فخر دپاره وي نو بیا د فخر او ریا په وجه باندې حرام دي. او که د عزت د بقاء دپاره وي نو جائز دي ګڼي نو بې فائدې کارونه دي. چه دَهغې نه اجتناب کول د حُسنِ اسلام شرط دې لیکن عدم اجتناب فسق نه دې. ﴿۱﴾

﴿۱﴾ قال ابن عابدین لو دعی الی دعوة فالواجب الاجابة ان لم یکن هنا ک معصیة ولا بدعة والامتناع اسلم فی زماننا الاّ اذاعلم یقینا ان لا بدعة ولا معصیة والظاهر حمله علی غیر الولیمه لما مر. وفی التقریرات الرافعی ص۳۰۶ لا یظهر هذا لحمل بل الظاهر حمله علی عمومه.
(ردالمحتار ص ۲۴۵ جلد ۵ کتاب الحظر والاباحة)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة)



## د سنتئ په موقعه باندې د ضیافت او دعوت حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د سنتئ په موقعه باندې میلمستیا او دعوت او روټئ پخول سنت دي یا نه؟ د جائز کیدو او نه ناجائز کیدلوئې څه حکم دې؟

المستفتي: ډاکټر ظهور محمد واړي ضلع دیر.....۲۲ذي القعده ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په روایاتو کښې دعوت معمول نه جوړیدل هم ثابت دي او ذبح کول هم ثابت دي بهر حال د دعوت اهتمام کول د سلف صالحینو د تعامل نه مخالف دي. لحدیث ورد بذالک ﴿۳﴾ واما ما رواه البخاري في الادب المفرد فلا یدل علی الدعوة. فقط.

## د وعظونو نه مخکښې نعت خواني کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چې نن صبا د وعظونو نه مخکښې یا جلسو کښې نعت خواني کیږي آیا په اسلام کښې ددې ګنجائش شته؟ ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: ننګ اسلاف اصلاح الدین ډیروي
ډي، آئي، خان یکم۱ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** چه نبه شعرونه وي په مکروهات او شنیعاتو باندې مشتمل نه وي نو وئیل ئې جائز دي.

﴿۱﴾ قال ابن عابدین المراد بقوله فی التعریف ما ثبت ثبوت طلبه لا ثبوت شرعیته والمباح غیر مطلوب الفعل وانما هو مخیر فیه و ایضاً قال فیه الاباحة اصلاً والحرمة بعارض النهی.
(ردالمحتار ص ۷۸ جلد ۱ مطلب المختار ان الاصل فی الاشیاء الاباحة کتاب الطهارة) وهابّ

﴿۲﴾ قال سالم ختننی ابن عمر وو نصیحا فذبح علینا کبشًا فلقد راتینا وانا لنجذل به علی الصبیان ان ذبح عنا کبشًا. (الادب المفرد للامام البخاری رقم حدیث: ۱۲۴۶)

﴿۳﴾ عن عثمان بن ابی العاص انه دعی الی ختان فابی ان یجیب، فقیل له فقال انا کنا لا نأتی الختان علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم ولا ندعیٰ الیه. رواه الامام احمد. (مسند امام احمد محول منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۵۱ جلد۵)

لان الشعر حسنه حسن وقبيحه قبيح ﴿۱﴾ فجاز رفع الصوت بهذه الامور عند عدم الايذاء الى المصلى والنائم يدل عليه ما فى ردالمحتار ص ۶۱۸ جلد ۱ ﴿۲﴾ .فقط

## د سنتو سره متصادم رسمونه بدعاتِ شرعيه دی

**سوال:** دريمه، اوومه، يوولسمه، قوالياني، حاضر ناظراو علم غيب وغيره آيا داسې رسومات بدعات دي او ددې ترديد واجب دې که نه؟

المستفتي:قائم دين ډهوک زمان مياں والي......۱۹۷۸ء۲۳/۷/۱

**الجواب:** کوم رسمونه چه د سنتو سره متصادم وي ﴿۳﴾ يا ددين نه د کيدلو په عقيدې سره کولې کيږي ﴿۴﴾ دابدعاتِ سيئه حرام دي ددې ترديد او دينه بچ کيدل لازمی دی. ﴿۵﴾ فقط

## صفر مياشت ته د تکليفونو مياشت وئيل

**سوال:** د صفرمياشت ته خلق د تکليفونو نازليدلو مياشت وائي دا رنګې په يو کتاب کښې هم دا دمصيبتونو او آفتونومياشت ليکلې شوې ده دا خبره

﴿۱﴾ قال ابن عابدين قال فى الضياء المعنوى العشرون اى من افات اللسان الشعر سئل عنه ﷺ فقال كلام حسنه حسن و قبيحه قبيح و معناه ان الشعر كا لنثر يحمد حين يحمد و يلم حين يذم الخ (ردالمحتار ص ۴۸۸ جلد ۱ مطلب فى انشاد الشعراحكام المسجد )

﴿۲﴾ قال ابن عابدين عن الامام الشعرانى اجمع العلماء سلفاً وخلفاً على استحباب ذكر الجماعة فى المساجد وغيرها الا ان يشوش جهرهم على نائم او مصل او قارى الخ (رد المحتار هامش الدر المختار ص ۴۸۸ جلد ۱ مطلب فى رفع الصوت بالذكر)

﴿۳﴾ عن عائشة رضى الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من احدث فى امرنا هذا ما ليس منه فهو ردٌ متفق عليه .(مشكواة المصابيح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام بالكتاب والسنة)

﴿۴﴾ قال الشيخ مفتى اعظم محمد فريد ان البدعة هى اعتقاد ما ليس من الدين دينا وهى قسمان مكفرة ومفسقة .(فتح المنعم شرح مقدمه مسلم ص ۲۹ الفائدة التاسعه )

﴿۵﴾ عن العرباض بن سارية قال قال رسول الله ﷺ .......اياكم ومحد ثات الامور فان كل محدثة بدعة وكل بدعة ضلالة ،وعن ابراهيم بن ميسرة قال قال رسول الله ﷺ من وقر صاحب بدعة فقد اعان على هدم الاسلام .رواه البيهقى .(مشكواة المصابيح ص ۳۰، ۳۱ جلد ۱ باب الاعتصام بالكتاب والسنة)



تر کوم حده پورې صحيح ده؟

المستفتي :محمد ايوب خان شيام ګنج مردان.... ۱۰صفر ۱۳۹۲

**الجواب:** ددې مياشتې متعلق دا ټولې خبرې وهم پرستی ده او د عوامو خبرې دی.چه د ماشوموالي نه ئې په ذهنونو کښې پخې شوې دی،ددې هيڅ اصل نشته ﴿۱﴾ فقط

## داستاد وغيره لاس خښې ښکلول بدعت نه دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د استاد، پلار، مور، يو بزرګ او د نيکانو لاس خښې د تعظيم دپاره ښکلول جائز دي يا ناجائز بعضې خلق ديته بد عت وائي، ددې شرعي حکم څه دې؟

المستفتي:نامعلوم......۱۲جولائي ۱۹۷۳هـ.

**الجواب:** داستاد وغيره لاس خپې ښکلول جائز دي. ﴿۲﴾ لان الصحابه يقبلون يد رسول الله ﷺ ورجله وكذا بعضهم يقبل ايدي بعضهم من شاء الاطلاع علي الروايات فليراجع الي الادب المفرد المولفة للامام البخاري. وهوالموفق

## د آذان نه مخکښې ياروستو په زور باندې درود شريف وئيل

**سوال:** څمونږ د جمات امام صاحب د سحردَ اذان نه مخکښې او کله کله روسته په زور زور باندې. الصلواة والسلام عليک يا رسول الله دوه ځلې وائي بيا اذان وائی.اوکوم خلق چه دا کار نه کوی هغوی بد ګڼړی ددې څه حکم دې آيا دا

﴿۱﴾ عن ابى هريرة رضى الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا عدوى و لا طيرة ولا هامة ولا صفر و فر من المجذوم كما تفر من الاسد .(صحيح البخارى ص ۸۵۰ جلد ۲ كتاب الطب باب الجذام)

﴿۲﴾ قال العلامه حصكفى ولا بأس بتقبيل يد الرجل العالم والمتورع على سبيل التبرک درر ...... وقيل سنة مجتبى و تقبيل راسه اى العالم اجود . قال ابن عابدين اى تقبيل يد العالم و السلطان العادل قال الشرنبلالى وعلمتُ ان مفاد الاحاديث سنيته او ندبه كما اشار اليه العينى .
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۲۷۱ جلد ۵ قبيل فصل فى البيع كتاب الحظر والاباحة)

درود شریف اذان سره وئیل لازمي دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: حکیم اختر حسین صدر کیملپور.....ماه محرم ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** دآذان نه مخکښې یا روستو درودشریف وئیلو کښې څه حرج نشته لیکن دا د اذان حصه منل او یا ضروري ګڼړل چه نن صبا د بدعتیانو خاص نښنه ده دا بدعت دي. ځکه چه په خیرالقرون کښې ددې څه ثبوت نشته. فقط

## سورة عنکبوت په رمضان کښې یا بله میاشت کښې د عملیاتو او زیات ثواب د پاره وئیل

**سوال:** سورة عنکبوت چه اووه۷ ځلې اووئیلې شي نو د غمونو نه به بچ شي. او د نبي علیه السلام ارشاد دي چه د رمضان په درویشتمه شپه سورة عنکبوت اووئیلې شي نو د اووه کالو ګناه معاف کیږي او په دیکښې شک نشته او که چا شک او کړو نو کافرشو (نقل از تفسیر مشارق و کشاف واز کتاب شاطبی) (۱) آیا دا حدیث ثابت دي که نه؟ (۲) که دا حدیث صحیح نه وي نو دې شپه کښې دې سورت په باره کښې څه دلیل شته یا نشته؟ (۳) او که څه دلیل نه وي نو ددې سورت په متعین کولو کښې څه نقصان شته یا نه؟

المستفتي: شیخ محمد تاج الدین لدهیانوي فیصل کالوني
کراچي نمبر ۲۵...۱۲ رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** (۱) ددې حدیث نه سند معلوم دې او نه مخرج او دا حدیث ثابت نه دې. (۲) نه د حدیث نه داتخصیص ثابت دې او نه د فقهائې کرامو د جزئیې نه ثابت دی. (۳) او دزیات ثواب په طریقې سره وئیل بدعت سئیه دې. وهوالموفق

## د جزوي مصلحت په وجې سره بدعت د بدعاتو د باب نه نه اوځي

**سوال:** ځمونږ په کلي کښې چه کله مړې قبرستان طرفته وړي نو څه خلق په

(۱) قال العلامه ابن نجیم ولان ذکر الله تعالی اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشي دون شي لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العیدین)



اوچت آواز سره ذکر کوي لیکن بعضې خلق ئې منع کوي چه په اوچت آواز سره دا ذکر بدعت دې. ددې باره کښې شرعي حکم څه دې؟ او بعضې خلق وائي چه دا نه وائې نو بیا خلق خبرې کوی؟ بینوا توجروا

المستفتي: قیصر خان، وي، اې، یو مارکیټ مري راولپنډی. ۸مئ ۱۹۸۴

**الجواب:** د جنازې نه وروستو په اوچت آواز ذکر مکروه دې (کما في ردالمحتار ص ۸۳۷ ج۱ (۱)) واضحه دې وي چه د هر بدعت بنیاد په مصلحت او استحسان وي نو د جزوي مصلحت په وجه باندې یو بدعت د بدعت کیدلو د باب نه خارج کیږي نه. وهوالموفق

## د مړي په کفن باندې د کلمې لیکلو تحقیق

**سوال:** دریں جا اختلاف واقع است. بعض گویند که کلمه برمیت نوشته مستحب است. اگر بر لوح است یا سنگ بسنگ است به برابر روی نهد بل کار حسن است. ترک کند او رابنود. چرا کارنیک ترک کنی. اعتقاد عوام برایں است که نوشتن کلمه از مفروض زیاده شمارد. اگر امام نوشته کلمه و بسم الله نه کند. برآں پیش امام نامها کیدانی دشنام پیری نهد بر تحقیر انکار مهربانان مسئله را واضح کن۔؟

المستفتي: ملاداد محمد یا ملا محمد عمر تحصیل گلستان ضلع پشین بلوچستان ......۲ رمضان المبارک ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د امام صغار په نزد داکتابت جائز دې او د ابن صلاح په نزد باندې ناجائز دې. او امام شامي کراهت طرفته مائل شوې دې ځکه چه کله په دراهمو او محرابونو باندې واجب الاحترام کلمات لیکل مکروه دي. کما صرح به في ردالمختار قبیل باب المیاه. نو په کفن او تندي وغیره باندې خو به خامخا مکروه وي. او یا به د جواز دا روایت بغیر د سیاهي نه په لیکلو

(۱) قال الحصکفی کره کما کره فیها رفع صوت بذکر او قراءة. قال ابن عابدین و ینبغی لمن تبع الجنازه ان یطیل الصمت وفیه عن الظهیریة فان اراد ان یذکر الله تعالی یذکره فی نفسه لقوله تعالی انه لا یحب المعتدین ای الجاهرین بالدعاء و عن ابراهیم انه کان یکره ان یقول الرجل وهو یمشی معها استغفروا له غفر الله لکم. (الدر المختار مع ردالمحتار ص ۶۵۸ جلد ۱ مطلب فی دفن المیت)

باندې محمول کړي شي. کما مال الیه الشرجي. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د هفتې په هيڅ يوه ورځ کښې هم جامې وينځل منع نه دي

**سوال:** بعضې خلق د هفتې په بعضې ورځو کښې کپړې او جامې وينځل جائز نه ګڼړي نو آيا د خالي، اتوار، ګل، نهې، شورو، زيارت او جمعې په ورځو کښې يوه ورځ کښې کپړې وينځل منع دي. يانه؟

المستفتي: شاه ميډيکل کيملپور.... ۱۹۷۲،۹،۱۷

**الجواب:** په دې ورځو کښې يو وخت کښې هم جامې وينځل منع نه دي. ﴿۲﴾ دا ممنوعيت يو جاهلانه رسم دې. فقط وهو الموفق

## د عيد ميلاد النبي جلسه او د اوليائي کرامو په مزارونو باندې ډيوې بلول او جهنډې لګول

**سوال:** (۱) د عيد ميلاد النبي د جلوس څه حکم دې؟ (۲) د اولياي کرامو په مزارونو باندې ډيوې بلول او جهنډې لګول څنګه دي؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتي: حاجي سراج الدين هري پور... ۲۱جولائي ۱۹۷۹هـ

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدين و فی البزازیه قبیل کتاب الجنایات و ذکر الامام الصغار لو کتب علی جبهة المیت او علی عمامته او کفنه عهدنا مه یرجی ان یغفر الله تعالی للمیت ...... و قد افتی ابن الصلاح بانه لا یجوز ان یکتب علی الکفن یٰس والکهف ونحو هما خوفا من صدید المیت ...... و قدمنا قبیل باب المیاه عن الفتح انه تکره کتابة القرآن و اسماء الله تعالی علی الدراهم والمحاریب والجدران وما یفرش و ما ذاک الا لاحترامه و خشیة وطئه و نحوه مما فیه اهانة فالمنع هنابا لاولی مالم یثبت عن المجتهد او ینقل فیه حدیث ثابت فتأمل نعم نقل بعض المحشین عن فوائد الشرجی ان مما یکتب علی جبهة المیت بغیر مداد با لاصبع المسبحة بسم الله الرحمن الرحیم و علی الصدر لا اله الا الله محمدالرسول الله و ذلک بعد الغسل قبل التکفین والله اعلم. (ردالمحتار هامش الدرالمحتار ص۶۶۸،۶۶۹ جلد ۱ قبیل باب الشهید)

﴿۲﴾ عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من احدث فی امرنا هذا مالیس منه فهو رد متفق علیه. (مشکواة المصابیح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام با لکتاب و السنة)



**الجواب:** (۱) جائزدي چه دمنکراتونه خالي وي﴿۱﴾ (۲) داټول په ټوله بدعات دي.﴿۲﴾

## سيدانو او مياں ګانو ته شکرانه ورکول

**سوال:** مياں ګان او سيدان صاحبان چه د خلقو نه يو، يو، دوه،دوه کلو غله غواړي، دې باره کښې د خلقو دا عقيده ده چه که څه د فلانکي ولي دا شکرانه ورنکړم نو اولاد او څناروته به مې نقصان اورسيږي او دارنګې دا شکرانه اخستلو والا غني او مالدار هم وي. دا جائز دي يا ناجائز؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد رشاد ډهيرئ چمله بونير

**الجواب:** مياګانو ته په دې ارادې سره څه ورکول چه دوي پلار نيکه به څمونږ د مالونو حفاظت کوي يا د نه ورکولو په صورت کښې به څمونږ مالونه هلاک کړي داقسم خبرې د امورِ شرکيه ؤنه دي. او په دې وجه چه د نيک خلقو اولاد دي دَامداد په ارادې سره ورکول جائز دي. ﴿۳﴾ فقط

---

﴿۱﴾ فی الهندیه ان کان الاصل الا باحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فا لکراهة للتحریم و الا الخ (عالمگیری ص ۳۰۸ جلد۵ کتاب الکراهیة) وان لم یخلو عن المنکرات کاالتخصیص بوقت دون وقت و اشتمال التزام ما لا یلزم والرعایة فوق الرعایة الشرعیة و الا سراف و الاصرار علیه وغیرها فبدعة و غیر جائز. (وهاب)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین الشامی لان النص اقوی من العرف لا ن العرف جاز ان یکون علی باطل کتعارف اهل زماننا فی اخراج الشموع و السرج الی المقابر لیالی العید.
(ردالمحتار ص ۲۰۲ جلد ۴ مطلب فی ان النص اقوی من العرف باب الرباء)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین النذر للمخلوق لا یجوز لانه عبادة و العبادة لا تکون للمخلوق و منها ان المنذور له میت والمیت لا یملک و منها ان ظن ان المیت یتصرف فی الامور دون الله تعالی واعتقاده ذلک کفر اللهم الا ان قال یا الله انی نذرت لک ان شفیت مریضی او رددت غائبی او قضیت حاجتی ان اطعم الفقراء الذین بباب السیده نفیسة او الامام الشافعی او الامام اللیث او اشتری حصر المساجد هم او زیتا لوقودها او دراهم لمن یقوم بشعائرها الی غیر ذلک مما یکون فیه نفع للفقراء و النذر لله عزوجل الخ.
(رد المحتار هامش الدرالمختار ص ۱۳۹ جلد ۲ مطلب فی النذر للاموات قبیل باب الاعتکاف)

## د خانه کعبې او روضه اقدس نقشه په کورونو کښې اویزان کول بدعت نه دي

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه اکثر ځايونو کښې د خانه کعبه او روضه اقدس نقشه زوړنده وي او اکثرئې خلق په کوررونو کښې زوړندوي آيا دا بدعت دې، وضاحت اوکړئ. ؟

المستفتي: حبيب الله فقير آباد پيښور.....۱۹ذيقعده۱۴۰۲ھ

**الجـواب:** بيت الله شريف او روضه اقدس ﷺ واجب الاحترام دي او تصويرونه ئې نه مطلوب دي او نه ممنوع ﴿۱﴾

## په جمات کښې شيريني وغيره تقسيمول او خوړل بدعت نه دي

**سوال:** په رمضان يا ختم القرآن يا څه بله خوشحالئ کښې په جمات کښې شيريني تقسيمېږي. او د تقسيم په وخت کښې خوړلې کيږي آيا په دې کښې د بدعت څه ويره شته؟ بينوا تورجروا

المستفتي: فدا محمد چهريان مانسهره هزاره.....۱۹۷۵ء۲۰۱۸۱

**الجواب:** په جمات کښې شيريني وغيره تقسيمول او خوړل ممنوع نه دی. نظيره تعليق قنو التمر فی المسجد فی زمن النبی ﷺ ﴿۲﴾ وفی الهنديه صفحه ۳۸۲ جلد ۵ لا بأس بنشر السکر والدارهم فی الضيافة وعقد النکاح کذا فی السراجيه قلت وصرحوا باستحباب عقد النکاح فی المسجد فافهم.

## د مړي يو کال پورې مسلسل په کور باندې چکر لګول، بې اصل خبره ده

**سوال:** حضرت مفتي صاحب آيا دا صحيح ده چه انسان کله مړ شي نو ديو کال پورې مسلسل دده روح د کور، محلې او جمات چکر وهی، که دجمعې

﴿۱﴾ قال ابن عابدين و المباح غير مطلوب الفعل و انما هو مخير فيه.
(ردالمحتار ص ۷۸ جلد ۱ مطلب المختار ان الاصل فی الاشياء الاباحة)

﴿۲﴾ و ايضا يدل عليه هذاا لحديث عن عبد الله بن حارث بن جزء قال اتی رسول ﷺ بخبز و لحم و هو فی المسجد فا کل و اکلنا معه ثم قام فصلی و صلينا معه و لم نزد علی ان مسحنا ايدينا با لحصباء. رواه ابن ماجه (مشکواة المصابيح ص ۳۶۶ جلد ۲ کتاب الاطعمة الفصل الثانی)



شپه وي او که نه وي. که دا خبره صحيح وي نو د (عليين) غوندې مقدس ځائې نه دلته دَ راتلو څه ضرورت دې او د سجين نه د نجات موندلو څه مطلب دې؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتي: محمد ثناء الله آف کتوزئ شبقدر فورټ چارسده....۹۱۷۱۱۹۷۳

**الجواب:** اګر چه دا الله په حکم باندې د روحونو راتلل ممکن دي. ﴿۱﴾ ليکن دا خبره چه د يو کال پورې وغيره وغيره دانه د روايت نه ثابت ده او نه عقل. ددې تائيد کوي ځکه چه د منعمينو جيل يا کورته رغبت او د معذبينو د ملائکو نه خلاصې نا معقوله خبره ده. ﴿۲﴾ فقط

## په جماتونو کښې يا الله. يا محمد خير ليکل

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يا الله يا محمد خير. په جمات کښې ليکلې شوې دي. ددې حکم څه دې. ؟ او که صرف يا محمد، ئې ليکلې وي نو دهغې څه حکم دې؟

المستفتي: محمد بخت سفير، محمد ايوب....۱۱۴جمادي الثاني.۱۴۰۳ھ

**الجواب:** يا محمد د اهل بدعت خاص نښه ده نو دداسې کتبو او پوسترو نه جماتونه محفوظ ساتل ضروري دي. ﴿۳﴾

## د پيغمبر عليه السلام زيارت ته تلل، کهجورې مالګه دمول او زيارتونو ته تلل بدعت نه دي

**سوال:** (۱) آيا دَرسول الله زيارت کول بدعت دي؟ (۲) دم کړې شوې کهجورې يا مالګه وغيره خوړل بدعت دي يا جائز دي؟ (۳) آيا زيارتونو له تلل بدعت او

﴿۱﴾ عن ابن عباس رضی الله عنه قال بلغنی ان ارواح الاحياء والاموات تلتقی فی المنام فيتسألون بينهم، فيمسک الله ارواح الموتی ويرسل ارواح الاحياء الیٰ اجسادها، ذکره الطبری فی تفسيره.
(کتاب الروح ص ۳۱ المسألة الثالثة)

﴿۲﴾ قال ابن القيم الجوزية واما قول من قال ان ارواح المؤمن فی عليين فی السماء السابعه وارواح الکفار فی سجين فی الارض السابعه فهذا قول قد قاله جماعة من السلف والخلف ويدل عليه قول النبی ﷺ اللهم الرفيق الاعلیٰ الخ (کتاب الروح ص ۱۳۱ فصل فی بيان قول من قال مستقر الارواح الخ)

﴿۳﴾ اتقوا عن مواضع التهم. رواه البخاری فی المفردات (الموضوعات الکبریٰ لملا علی قاری ص ۴۹ رقم حديث: ۱۵۱)

ناجائز دي.؟ مختصر جوابونه راولیږئ مهرباني به وي،

المستفتي: محمد قاسم شاه دامان کیملپور اټک.. ۵۱۹۱۱۹۷۲

**الجواب:** (۱) دَ نبي عليه السلام د قبر زیارت کول سنت دي بلکه واجبو ته نږدې دي (فتح القدیر) (۲) د صالحینو په آثارو باندې برکت حاصلول ثابت او جائز دي لیکن د عوامو د خود ساخته تبرکاتو رد کول واجب دي. (۳) که توسلِ عملي، دحالي په ارادې سره وی نو څه خبره نه ده او سد اللباب د منع کولو مونږ مخالف نه یو. فقط.

## د ختم القرآن په فضیلت کښې یوه بې سنده قصه

**سوال:** څمونږ په ځائې کښې په منبر باندې په لاوډ سپیکر یو مولوي صاحب په محفل میلاد کښې دا مسئله بیان کړه. چه یو قبر کښې مړې سخت عذاب کښې مبتلا وو نو حضرت علي رضي الله عنه پرې تیر شو هغه د قبر والا نه د عذاب لرې کیدو دپاره په سوونو او زرګونو رکعتونه نفل اوکړل لیکن عذاب لرې نه شو بیا یو ځائې کښې ختم القرآن اوشو په هغې کښې غوښه هم اوخورولې شوه، د ختم والا غوښې یو هډوکې چرته یو کارغه اوچت کړو نو هغه هډوکي اتفاقاً د کارغه د مخوکې نه په هغه عذاب والا قبر باندې پریوتو چه د هغې په برکت باندې د مړې عذاب ختم شو، نو آیا دا واقعه صحیح ده؟ او ږداسې مروجه ختم قران په هغه زمانه کښې هم وو؟

المستفتي: جمله اساتذه هائي سکول جعفر خان کلي
باړه خیبر ایجنسی ۴ رجب ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** باقاعده ختمونه کول جائزدی لیکن دا قصه نه په مروجه کتابونو کښې شته او نه څه سند لری، بلکه د مضمون د بعضو خبرو په وجه باندې د قبلیدو والا نه ده ځکه چه په هډوکي کښې د قرآن برکت حاصلیدل د عین قرآن نه زیاتیدل کوم چه په مونځ کښې وئیلې شوې دي. دا یو منکر خبره ده. وهو الموفق

## په مجلس میلاد کښې د پیغمبر عليه السلام د پاره کرسئ خالی پریخودل

**سوال:** څه د حضرت صاحب یو کمزورې غلام یم په دې میاشت د ربیع الاول کښې عموماً د میلاد جلسې کیږي چه په هغې کښې بریلیان په آخره کښی اودریږي او



صلاة وسلام وائی. څمونږ ځائې کښې دیو مجلس د انعقاد په وخت کښې یو کس نه د صدارت دپاره اووئیلې شو نو هغه جواب ورکړو. د نیک بخته مجلس چه د چا دپاره مقرر کیږي څه په هغه کرسئ څنګه کینم دا صدارت خوبه د هغه چا وی دچا د ذکر دپاره چه دا مجلس مقرر کیږي. کله چه ئې تقریر اوکړو نو وې وئیل پاسئ په حضور عليه السلام باندې سلام اووائی هغه مجلس کښې حاضردې. په ناستو کسانو کښې یو مستند دیوبندي عالم دین هم اودریدلو صرف یو کس پاتـه سیدلو هغه جواب کښې اووئیل چه ما په اکابرین علمائې دیوبند کښې یو کس هم په داسې مجلسونو کښې په اودریدلو نه دې لیدلې نو څه ددې بدعت دا کار څنګه اوکړم. نه هغه اودریدونکې کس د حاجي امداد الله مهاجرمکي صاحب یوه واقعه اوښودله چه هغه به اودریدلو نوما وې چه دا سلسله بیا په دیوبندیانو کښې ولې جاري نه شوه چه دهغې جواب مولانا رشید احمد ګنګوهي صاحب ورکړې وو. نو سوال دادې چه آیا کرسئ خالي پریخودل وغیره کارونه صحیح دي یا غلط؟ بینوا توجروا

المستفتي: ګلزار محمد خان کوه نورټکسټائل ملز، راولپنډی ۲۲۱۶۱۱۹۶۹

**الجواب:** د کرسئ خالي پریخودل په دې ارادې سره چه پیغمبر عليه السلام به په دې باندې تشریف فرما وي. او دا اودریدل وغیره ټول په ټوله بدعات دي. د قرآن او حدیث نه دا کارونه ثابت نه دي لهذا په داسې مجلسونو کښې صحیح عقیدې والاؤ لره شرکت نه کول ضروري دي. فقط

## د پیغمبر عليه السلام نوم اوریدلو سره ګتې ګوتې ښکلول

**سوال:** د حضور ﷺ نوم اوریدلو سره نذګوتې ښکلول او سترګو باندې لګول څنګه دي.؟

المستفتي: ملک فضل الرحمان مقام اړه ضلع جهلم...... ۱۷۱۷۱۱۹۷۲

**الجواب:** دعلاج په طریقې سره مباح دي او د ثواب په نیت بدعت دي. فقط

## د مړي اوریدل او د هغوي په نوم نذراو منختې کول

**سوال:** دوه فریقه په یوه اعتقادي مسئله کښې اختلاف لري. اولنې فرقه وائي چه مړي نه اوري او نه وینی او دهغوي په نوم نذر او منختې منل بالکل حرام

دي دویمه فرقه وائي چه مړي اوري هم اوینی هم، او د هغوي په نوم نذرا و منختي منل د نزدیکت سبب دي. مختصر فیصله اوکړئ او د صحیح عقیدې اظهار اوفرمایئ؟

المستفتي: سلطان روم جلبئ صوابي ضلع مردان... ۱۹۷۲/۴/۳

**الجواب:** د اکثر احنافو، ابن تیمیه او ابن القیم په نزد باندې مړي د نزدې ند اوري او د بعضې احنافو په نزد مړي نه اوري لیکن د لائلو په رڼړا کښې اولنې قول صحیح دې. د غیرالله د پاره نذر کول حرام دي بلکه شرک ته رسیؤونکې دې. دا د ټولو اکابرینو رائې ده او که د تفصیل ضرورت وي نو بیا د ضرورت په وخت کښې یو سوال د تفصیل د پاره راولیږه.

## د فیروزه غمی باره کښې توهم پرستی

**سوال:** د ګوتمې باره کښې بعضې خلق وائي چه په دې کښې کوم د فیروزه غمې دې ددې تاثیر دادې چه د نورو په مرضونو کښې اضافه کوي او په دې سره مرض ډیر یږي. آیا دا صحیح ده؟

المستفتی: نامعلوم متعلم دارالعلوم حقانیه..... ۷جنوري ۱۹۸۴

**الجواب:** دا توهم پرستي ده او حرام دي. ددې نه ځان بچ کول لازمي دي. وهوالموفق

## د عوامو توسل او مړی فریاد رس ګرځول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلو باره کښې څه فرمائي! (۱) که یو سړې عقیدتاً یو بیمار یو خاص قسم مزار ته بوځي او توسل کوي نو آیا دا صحیح ده؟
(۲) که دَچاځوئې نه وي نو چرته خاص مزار ته تلل اوبچي غوختل جائز دي؟
(۳) څوک ولي یا نیک سړې د وفات نه پس دچا په حال باندې خبردار وي. او فریاد اوري یا نه؟ المستفتي: نامعلوم متعلم دارالعلوم حقانیه ۱۹۸۵/۴/۱ء

**الجواب:** (۱) (۲) توسل (وسیله) بالصالیحین جائز دې لیکن عوام د شرعي وسیله او شرکي وسیله په مینځ کښې فرق نشي کولې نو دعوامو دپاره داسې منع دي. (۳) سماع الموتی حقه ده لیکن مړي فریادرس ګرځول ناحق دي. وهوالموفق



## په مملوک قرآن مجید باندې حیله اسقاط کول

**سوال:** علمائې دین څه فرمائي چه د مړي د جنازې نه پس کومه حیله اسقاط کیږي په هغې کښې قرآن شریف په دائره کښې ګرځول جائز دي یا نا جائز؟

المستفتي: تاج محمد هري پور

**الجواب:** که دا مصحف مملوک وي موقوف نه وي نو ددې تملک او تملیک جائز دې نو په دې سره في نفسه حیله اسقاط جائز ده لکونه مالاً. هوالموفق

## د غل خلاف ختم قرآن او خیرې کول

**سوال:** ځمونږ ځائې کښې دچا نه غلا شوې وه نو هغه سړې په خلقو باندې د قرآن ختم اوکړو او بیا د غل په باره کښې ټولو خلقو په اړولې لاسونو خیرې اوکړې نو آیا په شریعت کښې داسې ختم کول او بیا د خیرو څه جواز شته که نه؟ او که جائز وي نو دا قرآن خو د هدایت دپاره راغلې دې د چا د کور ورانولو دپاره خونه دې راغلې. نو وضاحت اوکړئ او تسلي راکړئ؟

المستفتي: مشتاق احمد پرائمري سکول حاجي زئ.... ۱۹۷۲هـ

**الجواب:** د کوم سړي نه چه غلا شوې هغه مظلوم دې او د مظلوم خیرې کول ظالم ته دا جائز دي. قال الله تعالي لا يحب الله الجهر بالسوء من القول الا من ظلم ﴿۱﴾ وقال رسول الله ﷺ اياک ودعوة المظلوم. ﴿۲﴾ او د عبادت نه روستو دعاقبلیږي نو د ختمِ قران نه روستو خیرې کول جائز دي ځکه چه قرآن د مظلوم د مدد دپاره وسیله جوړول د هدایت سره تضاد نه ساتی. وهوالموفق

## د توسل بالصالحین مسئلې تفصیل

**سوال:** د توسل بالصالحین څه حکم دي؟

المستفتي: حاجي همشیر خان دوبئ... ۱۴۰۱/۶/۱۵هـ

﴿۱﴾ (پاره: ۶ سورة النساء رکوع: ۱ آیت: ۱۴۸)
﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۴۳۵ جلد ۲ باب الظلم الفصل الثالث)

**الجواب:** في الحال د توسل با لصالحين متعلق يو ځو کرښې درليږم. د ناوزګارتيا په وجه باندې په مختصر کولو پريشانه کيږه مه. په ۱۴۸۹۸۱ نمبر باندې تاته ځو سوالونه درليږم په هغې باندې اکتفا اوکړه. دا خبره دې واضحه وي چه توسل په دوه قسمه دې (۱) شرکي (۲) غير شرکي. د شرکي نه مراد دادې چه ددې صالحينو عبادت يعني نذر او منحتې په دې نيت سره اوکړيشي چه دا صالحين به ځمونږ حاجتونه الله تعالى ته پيش کړي دا حرام دې او شرک دې. قال تعالى حاکيا عنهم ما نعبدهم الا ليقربونا الى الله زلفي (سورة زمر). ﴿۱﴾ او غير شرکي په څلور قسم دې.

**اول توسل بالدعاء:** دا په بې شميره حديثونو کښې راغلې ددې په جواز کښې هيڅ اختلاف نشته دې.

**دويم توسل بالاعمال:** دا هم جائز او حق دې.

لقوله تعالى وماكان الله معذبهم وهم يستغفرون ﴿۲﴾ ولقوله تعالى وكان ابو هما صالحا ﴿۳﴾ ولقوله تعالى الحقنا بهم ذريتهم وما التناهم من عملهم من شئى ﴿۴﴾. ولقوله عليه السلام الابدال يكون بالشام يسقى بهم الغيث وينتصربهم الاعداء ويصرف عن اهل الشام بهم العذاب (مشكواة باب الذكر اليمن والشام) ﴿۵﴾. ولتقرير اشارة قول زينب بنت جحش انهلك وفينا الصالحون (رواه البخارى ص ۵۰۸ جلد ۱) ولحديث من قرء اية الكرسى حين مضجعه آمنه الله على داره ودار اجاره واهل دويرات حوله رواه البيهقى. (مشكواة باب الذكر بعد الصلاة) واسنادة ضعيف لا كن الحكم من قبيل الفضائل ولحديث من قراء القرآن وعمل بمافيه البس والداه تاجا يوم القيامة. رواه ابوداؤد.

**دريم توسل بالجاه:** او دا هم حق دې. لحديث هل تنصرون وترزقون الا بضعفاء كم رواه الترمذي وابو داؤد. اسئالک بمحمد نبيک نبي الرحمة، (رواه الترمذي)

**څلورم توسل بالشركة:** او دا توسل صرف په ژوندو سره جائز دې.

والدليل على مشروعية هذا التوسل قوله تعالى ما كان الله ليعذبهم وانت فيهم ﴿۶﴾. وقوله عمر رضى الله تعالى عنه اللهم انا كنا نتوسل اليک فتسقينا وانا نتوسل اليک بعم نبينا فاسقنا

---

﴿۱﴾ (پاره: ۲۳ سورة زمر آيت: ۳)
﴿۲﴾ (پاره: ۹ سورة انفال ركوع: ۱۸ آيت: ۳۳)
﴿۳﴾ (پاره: ۱۶ سورة كهف آيت: ۸۲)
﴿۴﴾ (پاره: ۲۷ سورة الطور ركوع: ۳ آيت: ۲۱)
﴿۵﴾ (مشكوة المصابيح ص ۵۸۲ جلد ۲ باب الذكر اليمن والشام)
﴿۶﴾ (پاره: ۹ سورة الانفال ركوع: ۱۸ آيت: ۳۳)



(رواه البخارى) وقوله عليه السلام يأتى زمان يغزو فيه فئام من الناس فيقال فيكم من صحب النبى صلى الله عليه وسلم فيقال نعم فيفتح لهم. رواه البخارى.

واضحه دې وي چه کوم خلق يعني سلفيه ډله توسل بالصالحين نه منې نو هغوي کله کله په هغه ايتونو سره دليل نيسي په کومو کښې چه د توسل شرکي انکار موجود وي. ليکن د شرکي توسل په حراموالي سره د غير شرکي توسل حراموالې نه لازميږي. او کله په حديث حيث لا يستغاث بي (رواه الطبراني) سره دليل نيسي ليکن ددې حديث په سند کښې ابن لهيعه متکلم فيه دې، دارنګې دا حديث ،،استغاثو بآدم ثم بموسى ثم بمحمد صلى الله عليه وسلم،، (رواه البخارى) ص ۱۹۹ جلد اول سره معارض دې. او په دواړو روايتونو کښې تطبيق هم کيدې شي. يحمل النهى على العزيمة. او کله د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه په حديث. اللهم انا كنا نتوسل (رواه البخاري) سره استدلال کوي ليکن ددې حديث نه د توسل نمبر ۴ نفي لازميږي نه دا چه د مطلق توسل. او په حقيقت کښې دې حديث کښې هم توسل بالاموات دې. ځکه چه نتوسل بعم نبينا، لفظ راغلې دې نه دا چه نتوسل بالعباس بن عبد المطلب فافهم

او دا ډله کله د فقهاؤ په دې عبارتونو سره دليل نيسي.

"ويكره بحق النبى لانه لا حق للمخلوق على الخالق". والجواب عنه ان حق المخلوق على الخالق ثابت لقوله تعالى وكان حقا علينا نصر المؤمنين ﴿۱﴾. ولحديث يا معاذ هل تدرى ما حق الله على العباد وما حق العباد على الله .... وحق العباد على الله ان لا يعذب من لا يشرك بالله شيئاً (متفق عليه) ولحديث الطبرانى الصغير ص ۲۰۷ اسألک بحق محمد الاّغفرت فيحمل كلام الفقهاء على نفى الحق الذى يوجب الاضطرار ويحمل الحديث على معنى الحرمة او الحق الذى التزمه الله تعالى بفضله هكذا قرره مولانا رشيد احمد الجنجوهى فى الفتاوى. ويجاب عنه ان المنفى ههنا ان لا يتوسل بهذا اللفظ للاتقاء عن تهمة الاعتزال ولا يلزم منه نفى التوسل مطلقا. فافهم. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (پاره: ۲۱ سورة الروم ركوع: ۸ آيت: ۴۷)

## د یوولسمې حکم

**سوال:** یوولسمه څه څیز دې؟ په دې کښې حصه اخستل څنګه دې؟

المستفتي: اختر حسین راولپنډي.....۱۴ دسمبر ۱۹۷۴

**الجواب:** یوولسمه که د پیرانِ پیر رحمة الله علیه په نوم باندې د نذر او منختې نوم وي نو حرام ده او که د ایصال ثواب او نفع نوم وي نو فی نفسه خو جائز ده لیکن د تخصیص د وجې نه بدعت دې﴿۱﴾

## د تراویح نه پس پابندئ سره سورة ملک لوستل

**سوال:** د رمضان په میاشت کښې د تراویح نه پس امام قوم ته مخامخ سورة ملک لولي. او په باقي میاشتو کښې ئې نه وائي بعضې خلق دیته بدعت وائي او بعضې خلق ئې د ثواب کار ګڼړي. د وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: امیر جان افغانستان.....۲۸\۱ نومبر ۱۹۷۴

**الجواب:** د رمضان پورې تخصیص کول بدعت دې

لعدم المخصص کما لا یخفیٰ قال صاحب البحر ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئی دون شئی لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به. (ص ۱۵۹ جلد۲)

وهوالموفق

## بغیر التزام نه هره شپه سورة ملک لوستل بدعت نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه که یو سړې بغیر د التزام نه هره شپه سورة ملک وائي یعني د ځان دپاره ئې وظیفه جوړه کړې وي نو آیا دا بدعت دې؟ اګر چه د بعضې عذرونو په وجه باندې پریخودې کیږي هم؟ بینوا توجروا..

المستفتي: ډاکټر امیر خان ډینټل کلینک بنوں.

﴿۱﴾قال ابن نجیم ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت اور بشئی دون شئی لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع. (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد۲ باب العیدین)



**الجواب:** د سورة ملک هره شپه لوستل بدعت نه دې لکه چه په رائج ونډ کښې هره شپه د سورة یاسین ختم کول بدعت نه دې. البته التزام بدعت دې. وکم من فرق بین الدوام والا لتزام. وهوالموفق

## بچي له په نیک سړي باندې جونه ورکول او دعا پرې غوښتل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بچي ته د ګهټې ورکولو څه حکم دې؟ چه ماشوم پیدا شي په چاورله ګهټې ورکوي؟

المستفتي: منصور احمد خان شیر شاه کالوني کراچي. ۲۵ جولائي ۱۹۸۹ء

**الجواب:** په حدیث شریف کښې ګهټې ذکر موجود دې چه حضور صلی الله علیه وسلم یو بچي له ورکړې یعني حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه وهو اول مولود ولد بالمدینة المنورة في المهاجرین ﴿۱﴾ لهذا چرته نیک سړې باندې ګهټې ورکول او دعا پرې هم غوښتل پکار دې. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د محرم په لسم تاریخ باندې په قبرونو اوبه اچول

**سوال:** د محرم په لسم تاریخ باندې په مقبره کښې قبرونو باندې اوبه اچول یا دال او مسور وغیره اچول د ثواب کار دې که د ګناه، که د ثواب کاروي نو حواله اوښایئ مشکور مو اوګرځوئ؟

المستفتي: شیر محمد اکوړه خټک.....۸ فروري ۱۹۷۵ھ

**الجواب:** دا عمل یعني په قبرونو باندې او به اچول نه د قرآن او حدیث نه ثابت دي او نه په خیرالقرون کښې شویدي او نه دائمه دین نه چرته روایت شویدې او نه د فقهائې کرامو تجویز شوې څیز دې. لهذا دا عمل د ثواب په ارادې سره کول بدعت او د عذاب باعث دې. فقط

﴿۱﴾ وهو اول مولود ولد فی الاسلام للمهاجرین با لمدینة اول سنة من الهجرة و اذن ابوبکر فی اذنه ولدته امه اسماء بقبا واتت به الی النبی صلی الله علیه وسلم فوضعته فی حجره فدعا بتمرة فمضغها ثم تفل فی فیه و حنکه لکان اول شئی دخل فی جوفه ریق رسول الله صلی الله علیه وسلم ثم دعا له و برک علیه الخ (مشکواة ، اکمال فی اسماء الرجال لصاحب المشکواة ص ۶۰۴ جلد ۲ )

﴿۲﴾ عن اسماء بنت ابی بکر انها حملت بعبد الله بن الزبیر بمکة قالت فولدت بقباء ثم اتیت به رسول الله صلی الله علیه وسلم فوضعة فی حجره ثم دعا بتمرة فمضغها ثم تفل فی فیه ثم حنکه ثم دعاله وبرک علیه وکان اول مولود ولد فی الاسلام . متفق علیه .(مشکواة المصابیح ص ۳۶۲ جلد۲ باب العقیقة)

## مروجه درود او سلام ویل بدعت او مکروه دي

**سوال:** نن صبا جماتونو کښې مروجه درود او سلام چه دهغې په وجه باندې په امت کښې تفریق او نفرت راوچتیږي دحنبلي، شافعي، مالکي مذهبونو په علاوه د حنفي مذهب یوه ډله ددې خلاف ده او دیته بدعت وائي، او دوئ ددې مقابل وائي چه داطریقه په اوچت آواز لوستل جائز اودثواب باعث دي، او فریق صحابه کرام او مجتهدینو امامانو هم دا عمل کړیدې او دویمه ډله دیته بدعت او ناجائز وائي نو آیا (۱) مروجه درود او سلام په جماتونو کښې ولاړه اجتماعي طریقې سره په اوچت آواز ویل چه باقي مسلمانان په تلاوت، تسبیحاتو او مونځ وغیره کښې مشغول وي نو دا جائز دي که نه؟ (۲) مروجه درود او سلام څه فرض، واجب یا سنت او مستحب دي؟ (۳) که دیو مکتب فکر والا په جمات کښې دا کارونه کیږي نو دویم مکتب فکر والا چه ددوی مخالف دي په زوره باندې د جمات قبضه کولو کوشش کول جائز دي یا نه؟

المستفتي: عبد القیوم ملک سنده ټنډو آدم.... یکم ۱فروري ۱۹۷۵ء

**الجواب:** مروجه صلاة وسلام بدعت اومکروه دي ځکه چه دیکښې د مونځ گذارو ضرر رساني او التزام د هغه څیز دي چه هغه پخپله لازم نه دي.

کما فی ردالمحتار ص ۶۱۸ جلد ۱ اجمع العلماء سلفاً وخلفاً علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قارئ الخ وانکر الله تعالیٰ علی من التزم الاتیان من ظهور البیوت وکذا انکر عبدالله بن مسعود علی من التزم الانصراف عن الیمین (بخاری)

او خاص طور سره چه کله پکښې د فساد خطره هم وي نو بیا به په طریقه اولی سره ممنوع وي. ونظیره ترک النبي ﷺ بناء البیت علی بناء ابراهیم علیه السلام لاجل قریش کانوا اسلموا حدیث فافهم رواه مسلم. وهوالموفق

## نن صبا عرسونه د بې دینۍ او منکراتو سبب جوړیږي

**سوال:** آیا د ایصال ثواب دپاره د وعظ محفل، قرآن خواني او ذکر وغیره کښې واقعي خلق په شرکت سره گمراه اوبې دینه کیږي؟ چه یو راسخ العقیده او د حنفي مسلک صحیح مسلمان سړي چه په عرسونو کښې ترینه خلاف شریعت کار ښکاره نه شي دهغه دپاره عرس کښې تلل څنگه دي؟

المستفتي: غلام حسین سرهیری.... ۲رمضان ۱۴۰۵ھ



**الجواب:** ددیوبند او سهارنپور علماء د عرس کولو نه متنفر دي اگرکه پکښې امربالمعروف او نهی عن المنکر کیږي. ځکه چه د کوم عرس اختیار د بې علمه خلقو سره وي نو یوه ورځ به خامخا په هغې کښې ټنگ ټکور، د حاضر ناظر عقیده، د پیغمبر ﷺ د بشریت انکار. خلاف شریعت اشعار ویل او شیطاني جذبات وغیره نور منکرات شروع شي. وهوالموفق

## د جمات محراب پورې بدن مږل

**سوال:** بعضې خلق د جمات د محراب پورې ځان مږي چه موجوده جسماني نقصانونه لرې شي. او په دې حرکت باندې بنده بعضې د جماتونو امامان هم لیدلي دي ددې شرعي حیثیت څه دي؟

المستفتي: عبد الحمید ایس وي درازنده ډیره اسماعیل خان ۱۴۱۲۱۱۹۷۳

**الجواب:** که د علاج دپاره وي نو توهم پرستي ده.او که د تبرک دپاره وي نو بې اصله او بې بنیاده خبره ده.فقط

## د ثواب په نیت باندې سورة مُلک د جمعې په شپه ویل

**سوال:** سورة مُلک د جمعې په شپه د ثواب په نیت سره ویل څه حکم لري؟ چه سړې ئې وائي او نور خلق ئې اوري؟ بینواتوجروا

المستفتي: نامعلوم...۱۲۲شوال۱۳۸۹ھ

**الجواب:** دا تخصیص بلا مخصص دي لهذا ددینه بچ کیدل پکار دي. یدل علیه مافي البحر ص ۱۵۹ جلد۲ ولان ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به. وهوالموفق

## یا رسول الله اغثني ویل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بنده د دربار موهړه شریف کوه مري کښې بیعت دې هغه خلق ختم خواجگان او وائي په آخره کښې بیا اَغثني یا رسول الله وائي. آیا دا جائز دی؟

المستفتي:محمد رازق مانیرئ ضلع صوابي....۱۹۱۳۱۱۹۷۴

**الجواب:** که دا الفاظ په دې عقیدې سره وئیلي کیږي چه پیغمبر ﷺ تسلط غیبي (من حیث العلم والقدرة) لري نو کفر او شرک دي.اوکه صرف د عشق او محبت په وجې سره وئیلي کیږي نو کفر خو نه دي لیکن عوامو دپاره ددینه پرهیز ضروري دي.وهو الموفق

الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ
قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ
وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ
رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ
سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۹۱﴾



# کتاب
# الذکر والدعا والصلوة
# علی النبی صلی اللہ علیہ وسلم

# کتاب الذکر والدعا والصلوة علی النبی ﷺ

## د ډوډۍ خوړلو نه پس په جمعي سره دُعا جائز ده

**سوال:** که د چا په کور کښې د ډوډۍ خوړلو نه پس په جمع سره دُعا او کړیشي نو آیا دا جائز ده بعضې خلق دیته بدعت وائي. که جائز وي نو قرآن او حدیث کښې ددې څه ثبوت دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** دچا ډوډۍ خوړلو نه پس دعا کول جائز دي.

**یدل علیه مافی اطعمة ابوداؤد ﴿۱﴾ و ان کان صائما فلیدع و فی باب الدعاء لرب الطعام عن جابر بن عبدالله قال صنع ابوالهیثم بن التیهان للنبی ﷺ طعاما فدعا النبی ﷺ و اصحابه فلما فرغوا قال الیبوا اخاکم قالوا یا رسول الله ﷺ وما اثابته قال ان الرجل اذا دخل بیته فاکل طعامه و شرب شرابه فدعوا له فذالک اثابته﴿۲﴾**

کومو علماؤ چه ددې نه منع کړیده نو کیدیشي د هغوي مراد التزام وی. فافهم

## د سنتونه پس درې ځله دعا کول او قبرونوباندې ګلونه شیندل اوتبرکات تقسیمول

**سوال:** (۱) یو خطیب صاحب د سنتو نه روستو درې ځلې په جمع سره دعا کوي او د هغې نه پس په زروه باندې ان الله و ملائکته الایــة وائي او روستو ورپسې خلق درود شریف وائي دا عمل د شریعت په رڼا کښې څنګه دي؟

المستفتي: محمد نذیر خټک لانډي کراچي....۵۱۸۱۱۹۷۹

---

**﴿۱﴾ عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ بمعناه زادفان کان مفطرا فلیطعم وان کان صائما فلیدع.**

**(ابو داؤد ص ۱۶۹ جلد ۲ باب ما جاء فی الاجابة الدعوة کتاب الاطعمة)**

**﴿۲﴾ (سنن ابی داؤد ص ۱۸۲ ج ۲ باب فی الدعاء لرب الطعام کتاب الاطعمه)**



**الجواب:** (۱) د سنتو یا فرضونه پس دعا کول جائزدی ﴿۱﴾ اګرکه درې ځلې وي ﴿۲﴾ البته التزام ئې ممنوع دې﴿ ۳﴾ کومو حضراتو چه درې ځلې دعا ممنوع ګڼړلې ده، هغه هم دالتزام د وجې نه دې. (۲) دیوبندیت صحیح حنفیت دې او په قواعد حنفیه باندې فاتحه خواني کول جائزدی او ګلونه کیښودل جائز دی. ﴿ ۴﴾ او ګلپاشي ددنیا والو رسم دې او ممنوع دې او د تبرک تقسیم نه مطلوب دې نه ممنوع دې. او مجموعي حیثیت سره دا کارونه دیوبندیت دپاره شرم دې. فقط

## د پنجپیریانو اومخالف فریق په مینځ کښې په اختلافی مسئلوکښې فیصله .

**سوال:** مونږ پنجپیریان وایو چه د مړي په کور کښې درې ورځو پورې خیرات خوړل په شریعت کښې نشته او مکروه دي او فریق مخالف ورته جائز وائي. (۲) په درود تاج کښې د دافع البلاء والوباء والقحط والمرض والالم وئیل ځمونږ په نزد ناجائز او د فریقِ مخالف په نزد جا ئز دي. (۳) د سنتو نه پس په هیئتِ اجتماعي سره دعا کول د رسول الله ﷺ صحابه کرام او مجتهدینو نه ثابت نه ده مونږ دا په دین کښې نوې کار ګڼړو. او فریق مخالف ورته مستحب وائي. (۴) د جنازې دَمونځ نه پس سمدستي جنازه او چتول ځمونږ په نیزد جائز دي او د دعا دپاره ایساریدل نشته دا ځمونږ په نیزد بدعت او ناروا دي او فریقِ

---

**﴿۱﴾ قیل یا رسول الله ﷺ ای الدعاء اسمع قال جوف اللیل الاخر و دبر الصلوٰت المکتوبات.**

**(مشکواة المصابیح ص۸۹ جلد ۱ باب الذکر بعد الموت)**

**﴿۲﴾ جاء النبی ﷺ البقیع فقام فا طال القیام ثم رفع یدیه ثلاث مرات ثم انحرف.**

**(مسلم شریف ص ۳۱۲ جلد ۱)**

**﴿۳﴾ قال الملا علی قاری من اصرّ علی امر مندوب و جعله عز ما ولم یعمل با لرخصة فقد اصاب منه الشیطان من الاضلال.**

**(مرقاة المفاتیح علی مشکواة المصابیح ص۵۳ جلد ۲)**

**﴿۴﴾ قال فی الهندیه وضع الورد والریا حین علی القبور حسن وان تصدق بقیمة الورد کان احسن کذا فی الغرائب.**

**(الفتاویٰ العالمگیریه ص ۳۵۱ جلد ۵ الباب السادس عشر فی زیارة القبور وقرأ ة القرآن فیه)**

مخالف ئې د صفونو ماتولو نه پس جائز وائي. (۵) وسیله په ذوات فاضله سره څمونږ په نیزد ناجائز ده او د فریقِ مخالف په نیزد باندې جائز ده. (۶) څمونږ په نیزد مړي د ژوندو خلقو خبرې اوري د فریق مخالف په نیزد اود پنجپیریانو په نزد باندې نه اوری.

## څمونږ د پنجپیریانو د سخطې

امیر عبد المجید ملک دین خیل، مولوي نقیب محسن کناړي، مولوي محمد زکریا کناړي. مولوي سید حضرت عبدالمالک اکاخیل، سمرګل قمبر خیل

## د فریق مخالف د سخطې

مولوي باغي ګل صاحب ملک دین. خیل، مولوي غلام علي صاحب ملک دین خیل مولوي علي خان اکاخیل، مولوي محمد خان صاحب قمبر خیل.

## د سوالونو په ترتیب جوابونه

(۱) د مړي والؤ د طرفنه په مسکینانو باندې خیرات کول هر وخت جائز دي او درسم ورواج پابندي هر وخت ناجائز ده. او دعوت او ضیافت تر درې ورځو پورې ناجائز دي. (ما خوذاز ردالمحتار ص ۸۴۱ جلد ۱) هندیه ص ۳۸۰ جلد پنځم ﴿۱﴾ (۲) په پیغمبر علیه السلام باندې دَ دافع البلاء والوباء والقحط والمرض (اطلاق کول په دې معني سره چه الله تعالی دده په دعا او توسل سره تکلیفونه لرې کوي جائز دي. ﴿۲﴾ او که په دې معنی سره وي چه دې الله تعالی مسلط کړي.

﴿۱﴾ قال ابن عابدين ويكره اتخاذ الطعام فى اليوم الاول (والثانى) والثالث وبعدالاسبوع وفيهامن كتاب الاستحسان وان اتخذ طعاما للفقراء كان حسنا. (مخلصا) (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۶۶۴ جلد ۱ مطلب فى كراهة الضيافة من اهل الميت) وفى الهنديه ولايباح اتخاذ الضيافة ثلاثة ايام فى ايام المصية واذا اتخذلا بأس بالا كل منه كذافى خزانة المفتين وان اتخذ طعاما للفقراء كان حسنا اذا كانت الورثة بالغين.
(هنديه ص ۳۴۴ جلد ۵ الباب الثانى عشرفى الهدايا والضيافات كتاب الكراهية)

﴿۲﴾ قال الشيخ المفتى الاعظم محمد فريد صاحب دامت بركاتهم: اعلم ان التوسل قسمان شركى وشرعى الاول ما ذكره الله تعالىٰ فى قوله: ما نعبدهم الا ليقربونا الى الله زلفىٰ (الزمر) اى العبادة لغير الله تعالىٰ ليقربه وحاجاته الى الله والثانى ما لايكون كذلك وله اقسام متعددة الاول التوسل بالايمان الى الغفران كما فى قوله تعالىٰ ربنا اننا آمنا فاغفرلنا ذنوبنا (آل عمران) انا آمنا بربنا ليغفرلنا خطايانا وما اكرهتنا عليه من السحر (طه) ولا شك فى جوازه والثانى التوسل باعمال نفسه لقضاء حاجاته الدنيوية كما روى البخارى فى حديث الغار ان اهل الغار توسلوا با عمالهم الصالحة من العصمة من الزنا الخ ......والثالث التوسل باعمال غيره لقضاء الحاجات كما فى قوله تعالىٰ وكان ابوهما صالحا (الكهف) حيث حفظ الله خزانة اليتيمين لاجل صلاح ابيهما ......والرابع التوسل با الدعاء الخ (رسالة التوسل ص ۲ فى آخر منهاج السنن ص ۳۲۲ جلد ۴)



او مقرر کړې دې نو ناجائز او شرک دې. خو دا خبردې واضحه وی چه دا درود غیر ماثور دې او خواص ددې نه مستثنی دي او عوامو دپاره د شک ځیز دې نو احتیاط په نه وئیلو کښې دې. البته صحیح عقیدې والا سړې دپاره ددې، وئیل شرک، حرام یا مکروه نه دي. (۳) پیغمبر علیه السلام په هیئت اجتماعي سره دعا نه ده کړې نه دَ فرضو نه پس او نه د سنتو نه پس. نه د اللهم انت السلام وئیلو په وخت کښې او نه په نورو ذکرونو او دعاګانو وئیلو وخت کښې البته د استسقاء په وخت کښې ئې کړې ده. (رواه البخاري) یعني د رسول الله صلی الله علیه وسلم فعل په دیکښې نشته البته د حدیث څولې نه دواړو جواز ثابت دي. متصل فرائض وهو مختار البقالي ومال اليه اكثر الاكابر او د سنتو نه پس وهو مختار جمهور الاحناف كما في شرح شرعة الاسلام واليه ميلان صاحب البحر والخلاصة و مراقي الفلاح وغيرهم. نو په دې کښې د واړو طرفونوته ګنجائش شته دي. خو التزام کول بدعت دې که د فرضونو نه پس وي او که د سنتو نه پس وي لیکن د التزام او دوام په مینځ کښې فرق ضروري دې. ﴿۱﴾

(۴) د جنازې د مونځ نه پس دعا کول جائز دي بدعت نه دې چه کله د صفونو ماتیدونه پس وی. ځکه چه کومو فقهاؤ اومفسرینو دا ممنوع ګرځولې ده نو اکثرو دلیل ترک کړې او بعضو دلیل کړې دې چه په دې دعا کښې زیادت علی الجنازه او تکرار د جنازې سره تشبیه ده. او د صفونو ماتیدونه پس بغیر شک شبهې نه دا تشبیه نشته. نو کراهیت به هم نه وی. او دا خبره دې پته نه وی چه هیڅ یو فقیه ددې د کراهیت دلیل نه دې ذکر کړې. چه په خیرالقرون کښې دا معمول نه وو. دا سلفی دلیل دې حنفی دلیل نه دې.

﴿۱﴾ قال الشيخ المفتى الاعظم محمد فريد: اعلم ان النبى صلى الله عليه وسلم لم يدع على وجه الهيئة الا جتماعية بعد الصلوة ولا بعد المكتوبات ولا بعد السنن الرواتب ومن ادعى فعليه حوالة الحديث ..........نعم دعا على هذاالوجه فى الخطبة رواه البخارى من حديث انس ........واختلف مشائخنا فى تعين الافضل كما فى شرح شرعة الاسلام ويغتنم الدعا بعد المكتوبه قبل السنة علىٰ ما روى البقالى المعتزلى فى الاصول الحنفى فى الفروع كصاحب الكشاف ..........وبعد السنن والاوراد على ما روى عن غيره وهو المشهور المعمول فى زماننا ......ورجح اكثر الفقهاء خلافه قال صاحب البحر......صاحب خلاصة الفتاوىٰ ......والاشباه والنظائر......وابن الهمام فى فتح القدير......والعلامة الشامى فى ردالمحتار ..........وصاحب مراقى الفلاح وتمامه.
(فى منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۷۵، ۱۷۶، ۱۷۷ جلد ۲ باب ماجاء فى الانصراف عن يمينه وعن يساره) وايضاالتفصيل فى المقالات للشيخ محمد فريد دامت بركاتهم.

(۵) توسل بالصالحین جائز او مشروع دي البته په توسل بالصالحین کښې توسل بالذات من حیث الذات (حیوان ناطق) مرادنه دي، ذات د نیک او بد ټولو یوشان دي توسل بالمحبة، بالشرکة، بالدعا، بالعمل او بالوصف مراد وي.(۱)

(۶) د نزدې نه په سماع موتی کښې سلفاً او خلفاً اختلاف را روان دې احناف هم په دې کښې مختلف دي. کما في فتح القدیر، البته د دلائلو په رڼا کښې سماع حق ده قرآن ددې نه چپ دي او احادیث په دې ناطق دي وهو المختار عند ابن تیمیه وابن القیم وابن الکثیر، نو په دې معامله کښې سختي کول مناسب نه دی. (۲) وهو الموفق

## په ګټکو سره ذکر کول او التزام د مالا یلزم

**سوال:** څمونږ ځائې کښې يو امام د سحر مونځ نه پس په اجتماعي ګټکو باندې ذکر کوي او دا لازمي او ضروري ګڼړي او مقتديانو باندې ئې هم وائی او دويم امام په دې ګټکو باندې ذکر نه کوي او نه ئې لازمي ګڼړي نو په دې دواړو کښې کوم يو په حقه دې اوکوم يو پسې مونځ کول بهتر دي. دارنګې په ګټکو باندې وئیل د نبي کریم ﷺ یاصحابه کرام رضی الله عنهم نه ثابت دي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: غلام حیدر شینه باغ کیملپور اټک............۱۴صفر۱۳۹۲ء

**الجواب:** په ګټکو باندې ذکر کول جائز دي، لماروٰه ابوداؤد عن سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه

---

(۱) (والتفصیل فی رسالة التوسل الملحق بمنهاج السنن شرح جامع السنن ص ۳۲۲ جلد ۴)

(۲) شیخ الحدیث مفتي اعظم محمد فرید مدظله العالي فرمائیلي دي! د سماع الموتی متعلق په اهل علمو کښې سلفاًاو خلفاً اختلاف راروان دې. ابو طلحه، حضرت ابن عمر رضی الله عنه پیغمبر علیه السلام نه روایت د سماع موتی کړیدې کما في مغازی صحیح البخاري. او دغه شان عبدالله بن مسعود او عبدالله بن سیدان رضی الله عنهما د نبي کریم ﷺ نه روایت د سماع الموتا کړې دي. کما في فتح الباري ص ۳۰۳ جلد ۷ عن الطبراني. او حضرت عائشته رضی الله عنها د سماع الموتا نه انکار کړیدې او د موتا دپاره ئې د علم او ادراک اثبات کړیدې. کمافي مغازي صحیح البخاري. او بعضي علماؤ فرمائي چه حضرت عائشه رضی الله عنها د خپل قول نه رجوع کړیده په دلیل د حدیث د امام احمد او محمد بن اسحاق د عائشه رضی الله عنها نه چه په دې حدیث کښې د سماع اثبات موجود دي پشان د ابو طلحه رضی الله عنه، کمافی الفتح ص ۳۰۴ جلد ۷) الیٰ آخره با لتفصیل فی المقالات.(المقالات ص ۸۲ بحث سماع الموتیٰ)



مرفوعا وعن ابي هریره رضی الله عنه موقوفا (۱) البته دا ضروري او لازم ګڼړل او په نه کونکو باندې بدرد وئیل نا جائز دي. (۲)

لان اهتمام الشئی فوق المقدار المشروع بدعة یدل علیه قوله تعالیٰ ادخلوا فی السلم کافة (۳) و انکار الله تعالیٰ علی من التزم دخول البیوت من ظهورها (۴) وحدیث عبدالله بن مسعود رضی الله عنه . (۵) فقط

**نوټ:** مبتدع او فاسق پسې اقتداء کول مکروه تحریمي ده. (۶) وهو الموفق

## د تپوس کونکي په دويم ځل د تپوس کولو جواب

**الجواب:** په ګټکو باندې د ذکر کولو تشریع دا حادیثونه ثابت ده.

روی ابوداؤد والترمذی والنسائی و ابن حبان والحاکم و قال صحیح الاسناد انه دخل مع رسول الله ﷺ علی امرئة و بین یدیها نویٰ او حصی تسبح به الحدیث (۷) و کذا رواه ابو داؤد موقوفا و فی الدر المختار لا بأس باتخاذ المسبحة (۸)

لهذا په دې سره به فی نفسه ذکر کول جائز دي خو بې شکه ددې التزام به په کولو یانه کولو کښې قبیح وي (۹) او هم په دې اصل باندې به د امامت کراهت او عدمِ کراهت بنا کیږي. فقط

---

(۱) عن سعد بن ابی وقاص انه دخل مع النبی ﷺ علیٰ امرأة وبین یدیهانوی او حصی تسبّح به فقال الاخبرک بما هو ایسر علیک من هٰذا ا فضل سبحان الله عدد ما خلق فی السماء وسبحان الله عدد ما خلق فی الارض وسبحان الله عدد ما بین ذالک وسبحان الله عدد ما هو خالق والله اکبر مثل ذالک والحمد لله مثل ذالک ولااله الا الله مثل ذالک ولا حول ولاقوة الا بالله مثل ذالک رواه الترمذی وابو داؤد قال الترمذی هذا حدیث غریب . (مشکواة المصابیح ص ۲۰۱ جلد ۱ باب ثواب التسبیح)

(۲) قال ابن نجیم ولان ذکر الله تعالیٰ اذا قصدبه التخصیص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع.(البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العیدین)

(۳) (پاره: ۲ سورة: البقره رکوع: ۸ آیت: ۲۰۷)

(۴) (پاره: ۲ سورة: البقره رکوع: ۷ آیت: ۱۸۸)

(۵) (رواه الدارمی ص ۶۱ جلد ۱ )

(۶) قال الحصکفی ویکره امامته ......فاسق......ومبتدع ای صاحب بدعة.(الدرالمختار ص ۴۱۴ جلد ۱ باب الامامة)

(۷) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۱ جلد ۱ مطلب الکلام علی اتخاذ المسبحة باب ما یفسد الصلواة......)

(۸) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۸۱ جلد ۱ مطلب الکلام علی اتخاذ المسبحه باب ما یفسد الصلواة ......)

(۹) قال ابن عابدین ان المباح یطلق علیٰ متعلق الاباحة الاصلیة کما یطلق علی متعلق الاباحة الشرعیة ........والمباح غیر مطلوب الفعل و انما هو مخیر فیه.

(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۷۸ جلد ۱ مطلب ان الاصل فی الاشیاء الاباحة کتاب الطهارة .)

## په قبر باندې د خاورو اړلو نه پس او تعزیت د پاره راتلونکو ته لاس اوچتول او دعا کول

**سوال:** په قبر باندې خاوره اچولو نه پس دعا کول څنګه دي؟ او تعزیت د پاره راتلونکو لاس اوچتول او دُعا کول څنګه دي؟

المستفتي: مدرسه عربیه مدینة العلوم جنړانو اله میاں والي ۳۰\۵\۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د مړي خخولو نه پس دعا غوښتل مشروع دي. لحدیث ابي داؤد وغیره کان النبي عليه السلام اذا فرغ من دفن المیت وقف علیه فقال استغفروا لاخیکم واسئلوا له بالتثبت فانه الآن یسئل «۱» البته د مونځ نه بهر هغه دعا ځاني چه په هغې کښې لاسونه اوچتول روایت شوي نه وي. په هغې کښې لاس اوچتول نه ممنوع دي او نه مطلوب دا جائز ګرځول زیات قوي دي د ناجائز ګرځولو په نسبت لکون رفع الایدي من آداب الدعاء. «۲» او دغه شان د تعزیت په وخت کښې د لاسونو اوچتولو حکم هم دې. وهو الموفق

## چاته د مغفرت دعا کولو سره د حق ختمیدو او یو بل ته بخښش کولو سره د ذمې د براءت تحقیق

**سوال:** (۱) د زید بکر سره لین دین وو، په دې کښې زید د بکر نه څه پیسې یا زمکه هم قبضه کړې ده. اوس زید مړ شوې دې او بکر د زید د دُعا د پاره راغلې او په تعزیت کښې ئې وئیل چه دُعا او کړئ چه الله تعالی زید ته مغفرت نصیب کړي لیکن زړه ئې نه غوختل چه مغفرت ئې اوشي نو آیا په دې زباني وئیلو سره د بکر هغه حق چه په زید باندې وو ساقط شی؟ (۲) خالد او عامر دواړه

---

«۱» ابو داؤد ص ۴۰۳ جلد ۲ باب الاستغفار عند القبر للمیت فی وقت الانصراف.

«۲» شیخ مفتی اعظم محمد فرید دامت برکاتهم فرمائی چه د دعا کولو ډیر آداب دی چه د هغې د خپلې درجې موافق رعایت کول ډیر اهم دی دواړه لاسونه اوچتول کمافی البیهقی یرفع یدیه فی الدعاء، لیکن په مانځه کښې به عام طور سره لاسونه نه اوچتوی، کمافی ابن ابی شیبة ان رسول الله صلی الله علیه وسلم لم یکن یرفع یدیه حتی یفرغ من صلاته (مقالات ص ۲۶ المقالة الثالثة فی الدعا) او دې تائید د ابوداؤد د کتاب الجهاد د حدیث نه هم کیږي:

عن سهل ابن سعد قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ثنتان لاتردان او قل ماتردان الدعاء عند النداء وعند البأس حین یلحم بعضه بعضا قل موسیٰ ........ قال وقت المطر. (ابوداؤد ص ۳۵۱ جلد ۱ باب الدعاء عند اللقاء کتاب الجهاد) وایضاً عن مالک بن یسار قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا سألتم الله فاسئلوه ببطون اکفکم ولاتسئلوه بظهورها وفی روایة ابن عباس قال سلوا الله ببطون اکفکم و لا تسألوه بظهورها فاذا فرغتم فامسحوا بها وجوهکم رواه ابوداؤد. (مشکواة المصابیح ص ۱۹۵ جلد ۱ کتاب الدعوات)



یو کمره کښې اوسیږي خالد د عامر نه غلا کړیده کله تیل، کله چائې وغیره یو کال پس خالد عامر ته اووئیل چه اوس جدائي او فراق دې یو بل ته به بخنه کوؤ. عامر اوئیل ما تاته بخښنه کړیده لیکن عامر ته دده هغه مخصوص څیز نه وو معلوم نو آیا په دې صورت کښې به مغفرت اوشی؟

المستفتي: نا معلوم متعلم دار العلوم حقانیه........ ۲۵ رجب\۱۴۰۵ھ

**الجواب:** (۱) په بخښنه کولو او دعا د پاره د بخښنې په دې کښې د زمکې او اسمان هومره فرق دې. (۲) دې مسئله کښې اختلاف دې البته د مفتي به قول په بناء باندې بخشش کیږي.

کما فی شرح الفقه الاکبر ص ۱۲۷ لملا علی قاری و فی الخلاصه قال لاخر حللنی من کل حق هو لک ففعل فابرءه ان کان صاحب الحق عالما به برئ حکما و دیانة و ان لم یکن عالما به برئ حکما بالاجماع و اما دیانة فعند محمد لا یبرء و عند ابی یوسف یبرء و علیه الفتویٰ انتهی و فیه انه خلاف اختاره ابو اللیث و لعل قوله مبنی علی التقویٰ. و هو الموفق

## اجتماعي طور سره په زوره ذکر، درود شریف وغیره لوستل

**سوال:** (۱) خوب، ریا، نه علاوه ذکر بالجهر جائز دې که نه.؟ (۲) بعضې خلق ذکر بالجهر ته بدعت وائي او منع کوي ئې قولِ فیصل څه دې؟ (۳) د اجتماع په طور ذکر بالجهر چه دَ یو بل زړونو ته انوارات منتقل شي. او خپل مینځ کښې شوق او رغبت پیدا شي ددې څه حکم دې؟ (۴) د جمع مونځ کښې سلام نه پس په زوره باند یو څو ځلې کلمه طیبه، استغفار یا ذکر اذکار منقوله څنګه دي بدعت خو به نه وي؟ (۵) درود شریف، صل علي نبینا صل علي رسولنا صل علی محمد. او دزړه د شوق نه وائي چه زړه ته ئې مزه راشی او شوق ئې پیدا شي دا جائز دي که ناجائز ؟ (۲) د فتاوي رشیدیه حواله ده چه څمونږ مشرب د صاحبینو قول دې دیته ذکر با لجهر وائي که نه ؟

المستفتي: مولوي رفیع محمد هنګو کوهاټ

**الجواب:** (۱) ذکر بالجهر جائز دي چه ریا او بل ته تکلیف رسولو نه خالي وي بیا خیر دي که په هیئت اجتماعي سره هم وي.

کما فی رد المحتار فی باب احکام المساجد عن الامام الشعرانی ﴿۱﴾ واما الهیئة الاجتماعیه فیدل علیها ما رواه الترمذی عن انس رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا مررتم بریاض الجنة فارتعوا قالوا و ما ریاض الجنة قال حلق الذکر ﴿۲﴾ و ما رواه مسلم قال خرج معاویه علی حلقة فی المسجد و فی آخره ان الله یباهی بکم الملائکة. ﴿۳﴾

(۳) دا تحریک دعلاج دپاره صحیح دي اوپخپله مسنون نه دي. (۴) د جاهلانو خلقو په نیزد باندي سنت د رسول الله ﷺ د فعل پورې خاص دي او حال دادي چه سنت د فعل، قول او تقریر در یواړو نوم دي. دهغوي په نزد خو به پرتوګ اغوستل او پښتو اردو کښي د قران ترجمه کول هم بدعت وي. (۵) که دا درود او سلام د ریا ایذاء نه خالي وي او د اهل بدعت شعار هم نه وي نو په دي باندي انکار کول هم یو منکر کار دې. ﴿۵﴾ (۲) په ټولو فروعو کښې دفقه حنفي اتباع ضروري ده. وهو الموفق

## د سحر دَ مونځ نه پس بغیر د التزام نه په ګډکو باندي کلمه شریفه او درود شریف ویل جائز دي

**سوال:** سحر مونځ چه اوشي نو دعا نه پس چه څوک تلل غواړي هغوي ځي څه کسان فارغه وي، کیني په ګول ګول ګټو باندي درود شریف او کلمه شریفه وائي،

﴿۱﴾ قال ابن عابدین وفی حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفا وخلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیر ها الا ان یشوش جهرهم علی نائم اومصل او قارئ الخ
ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت با لذکر باب احکام المساجد)

﴿۲﴾(مشکواة المصابیح ص۱۹۸ جلد ۱ باب ذکرالله عزوجل والتقرب الیه)

﴿۳﴾مشکواة المصابیح ص۱۹۸ جلد ۱ باب ذکرالله عز وجل والتقرب الیه)

﴿۴﴾قال ابن عابدین ان الجهر افضل لا نه اکثر عملا ولتعدی فائدته الی السامعین ویوقظ قلب الذکر فیجمع همه الی الفکرو یصرف سمعه الیه ویطر دالنوم ویزید النشاط.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱مطلب فی رفع الصوت با الذکر باب احکام المساجد)

﴿۵﴾قال ابن عابدین بان ذالک یختلف با ختلاف الاشخاص والاحوال کما جمع بذالک بین احادیث الجهر والاخفاء با لقراءة و لا یعارض ذالک حدیث خیر الذکر الخفی لانه حیث خیف الریاء او تأذی المصلین اوالنیام فان خلاهماذکر فقال بعض اهل العلم ان الجهر افضل .الخ
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ .مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب احکام المساجد)



آیا داسې بنه دې که بد؟ ددې متعلق منع یا جواز چرته د یو کتاب په حوالې سره اولیکئ؟

المستفتی: غلام حسین بازار کیملپور اټک

**الجواب:** بغیر التزام نه جائزاو دثواب کاردي خوپه دې شرط چه داعمل د تخصیص اوتقیید په عقیده سره نه وي بلکه صرف د ذکر په حیثیت باندې ئې کوي.

یدل علیه مافی البحر لانَ ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم یکن مشروعا انتهٰی . ثم قال بعد و لکن لو کبر لانه ذکرالله یجوز و یستحب و فیه ایضا امام یعتاد فی کل غداة مع جماعته قراءة آیة الکرسی و آخر البقرة و شهدالله و نحوله جهرا لا بأس به. ﴿۱﴾ فقط

## په لاؤډ سپیکر باندې تلاوت او تراویح کول

**سوال:** بعضې حافظان په تراویح کښې قرآن مجید په لاؤډ سپیکر باندې وائي. حال دادې چه بغیر لاؤډ سپیکر نه هم مقتدیان اوریدیشې د محلې والا او په کورونو کښې د مونځ کونکو په مونځ کښې کافي خلل راځي ددې شرعي حکم څه دې؟

المستفتي: حافظ عطاءالله مدرسه عربیه قلات بلوچستان ۲۸شوال۱۴۰۲

**الجواب:** په لاؤډ سپیکر باندې قرآن لوستل او ختم کول بذات خود نه مطلوب دي او نه ممنوع. البته د تکلیف رسولو په صورت کښې ممنوع دي.

کما في الحموي عن الامام الشعراني وفي الشامیة ص ۲۱۸ ج۱ مصرح (۲) دارنګې چه یو سړې ته د ګانو بجانو او ریکاډنګ وغیره نه تکلیف نه وي او په لاؤډ سپیکر باندې قرآن وئیل ورته تکلیف ورکوي نو دا د تعجب قابله خبره ده. وهو الموفق

﴿۱﴾(البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد۲ .باب العیدین)

﴿۲﴾قال ابن عابدین اجمع العلماء سلفاو خلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجدوغیرهاالاان یشوش جهرهم علی نائم اومصل اوقارئ الخ
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ .مطلب فی رفع الصوت بالذکرباب احکام المساجد)

## د جمعې د مونځ نه فوراً پس ذکر بالجهر کول

**سوال:** دلته څمونږ ځائې کښې یو مسئله باندې اختلاف دې چه د جمعې د مونځ دوه رکعته کولو نه پس سمدستي په زوره سره کلمه طیبه او درود شریف وئیل ښنګه دي؟ او د ذکر بالجهر کولو والاسړي څه حکم دې؟ او درود چه ذکر بالجهر کول واجب دي که سنت یا مستحب دي عقلي او نقلي دلائلو سره جواب بنائسته کړئ؟

المستفتي: محمد سفارش علی هائي سکول ګلهړه ګلي مری ۱۵ صفر ۱۹۸۹ه

**الجواب:** په ذکر بالجهر کښې دعلماؤ اختلاف دې د بعضو په نزد جائز دې او د بعضو په نیزد ناجائز دې او راجح قول د جواز دې خو په دې شرط چه چرته مونځ کونکې او خوب والا کس ته تږي نه تکلیف نه دي.

وفی الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفا و خلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهر هم علی نائم او مصل او قارئ الخ ﴿۱﴾ (رد المحتار ص ۶۱۸ ج ۱)

او په قرآن مجید کښې د ذکر بالجهر نه منع نه ده راغلې او په کومو حدیثي روایتونو کښې چه راغلي ده هغه منع تحریمي نه ده بلکه ترحمي او ارشادي ده. (۲)

## د ایذاء او ریا نه خالي ذکر بالجهر جائز دي

**سوال:** د ذکر بالجهر څه حکم دې؟ مهرباني او کړئ جواب راکړئ.

المستفتي: نذیر محمد قریشي نجرا پنډي ګهیپ اټک. ۱۷ رجب ۱۴۰۲ه

**الجواب:** ذکر بالجهر چه د ایذاء او ریا نه خالي وي نو جائز دي.

کما فی رد المحتار ص ۶۱۸ ج ۱ و فی حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفا و خلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قارئ الخ ﴿۳﴾ انتهیٰ قلت و یؤ یده ماروواه البخاری عن ابن عباس رضی الله عنهما انهم کانوا لا یعرفون انقضاء الصلاة الا بالجهر بالذکر او کما قال. ﴿۴﴾ و هو الموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۸ جلد ۱. مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب احکام المساجد)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین بان ذالک یختلف با ختلاف الاشخاص والاحوال کما جمع بذالک بین احادیث الجهر والاخفاء بالقراءة ولا یعارض ذالک حدیث خیر الذکر الخفی لانه حیث خیف الریاء اوتأذی المصلین او النیام فان خلاهما ذکر فقال بعض اهل العلم ان الجهر افضل الخ

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۸ جلد ۱. مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب احکام المساجد)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۸ جلد ۱. مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب احکام المساجد)

﴿۴﴾ عن ابی معبد مولی ابن عباس اخبره ان ابن عباس خبره ان رفع الصوت بالذکر حین ینصرف الناس من المکتوبة کان علی عهد النبی ﷺ وقال ابن عباس کنت اعلم اذا انصرفوا بذالک اذا سمعته. (صحیح البخاری ص ۱۱۶ جلد ۱. باب الذکر بعد الصلوٰة)



## د مرشد ذکر بالجهر د پاره حلقه جوړول

**سوال:** یو مرشد د سحرګه مونځ نه پس د ځان نه ګیر چاپیره حلقه جوړه کړې او ذکر بالجهر کوی او حلقې والؤ ته هم دذکر بالجهر حکم کوي. او دغه وخت کښې تلاوت، درود شریف او مونځ کونکو ته د بهر وتلو هم وائي او وائي چه دا د مونځ او تلاوت وخت نه دې دا د ذکر وخت دې لیکن دا ذکر دومره په زوره سره کوي چه هلته کښې مونځ کول ناممکن وي او که ورته وائي چه ذکر لږ په قلاره کوئ نو وائي چه د ذکهر بالجهر منع کونکې کافر دې او دلیل دا پیش کوي چه درې مونځونه په جهر ولې دي. او دویم دلیل دا وائي چه واذا قرئ القرآن فاستمعوا له و انصتو لعلکم ترحمون، ، نو آیا په دې طریقې سره ذکر جائز دې؟

المستفتي: قاري فضل عظیم اکبر پوره نوشهره پیښور.... ۱۹۷۳/۳/۲۲

**الجواب:** ذکر بالجهر اګرچه في نفسه جائز دې لیکن د ایذاء په وجې سره ناجائز وي: یدل علیه مافی رد المحتار ص ۶۱۸ ج ۱ و فی حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفا خلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد و غیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قارئ الخ ﴿۱﴾ فقط

## په لاوډ سپیکرباندې جهري ذکرته بکواس وئیل او په دې د تنبیه کولو والا حکم

**سوال:** یو سړي په لاؤډ سپیکر باندې په زوره زوره کلمه وئیله نو یو سړي او وئیل چه دا ئې څه بکواس شروع کړې دې. نو آیا په دې خبرې سره هغه سړې کافر شو که نه؟ او کوم اوریدونکي چه پرې اعتراض نه کوي. دهغوي څه حکم دې؟ او ځوک چه پرې تنبیه او کړي د هغه څه حکم دي. ؟ داسې وخت کښې مسلمان له څه کول پکار دي؟

المستفتي: سید محمد

**الجواب:** چونکه تکلیف والا جهر ته د بکواس وئیلو احتمال موجود دې نو په داسې سړي باندې د کفر فتوي لګول بې محلبه ده. ﴿۲﴾ او اوریدونکې د قدرت باوجود هم چپ وي نو ګناه ګاردي. تنبیه ګولو والاسړې د ګناه نه بچ شو او هغه شرعي حکم ادا کړو. فقط

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۸ جلد ۱. مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب احکام المساجد)

﴿۲﴾ قال الحصکفی اذا کان فی المسئلة وجوه توجب الکفر و واحد یمنعه فعلی المفتی المیل لما یمنعه. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۱۶ جلد ۳. باب المرتد)

## د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په ګټو باندې د ذکر نه منع کول په تخصیص علي وجه التشریع باندې محمول ده

**سوال:** د راه سنت. کتاب په صفحه نمبر۱۱۸ باندې حضرت مولانا سرفراز خان صفدر صاحب داحدیث نقل کړیدي چه دهغې نه په ګټو باندې ذکر کولو نه ممانعت معلومیږي حدیث دادې ! د حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه یوه ورځ په یو جمات باندې تیریدل او شو نو جمات کښې ذاکرینو په ډله کښې یو کس وائي سل ځلي الله اکبر اووائي، نو په حلقه کښې ناست خلق په ګټو باندې سل ځلې او وائي. بیا وائي سل ځل لا الهَ الا الله او وایئ نو هغوي سل ځلې اووائی بیا وائی سل ځله سبحان الله او وایئ نو هغوي به سل ځلې تسبیح وئیلې. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل تاسو په ګټو او کاڼړو باندې څه وئیلې، هغوی اووئیل مونږ تکبیر اوتهلیل او تسبیح وئیلې. هغوی اوفرمائیل تاسوپه دې کاڼړو باندې خپل ګناهونه شمارئ څه ددې ضامن یم چه ستاسو دنیکو نه به هیڅ نه ضائع کیږي په تاسو تعجب دې اې د محمد صلی الله علیه وسلم امته! څومره زر په هلاکت کښې پریوځئ. تراوسه خو په تاسو کښې ډیر صحابه کرام موجود دي او تر اوسه خو دحضور صلی الله علیه وسلم جامې نه دي زړې شوې او تر اوسه پورې د هغه لوښي نه دي مات شوې نو هم په دې حالاتو کښې تاسو د بدعت دروازې کهلاؤهئ. ددې حدیث په بنا باندې د تسبیح وغیره څه حکم وی؟ بینوا توجروا

المستفتي:غلام حسین کیمل پور

**الجواب:** دا روایت د راه سنت مصنف د دارمي وغیره نه نقل کړې دې لیکن واضحه دې وی چه په مذکوره صورت کښې امرمنکر په ګټکو باندې تسبیح کول نه دی. لانه ثابت موقوفا ومرفوعاً بروایات صحیحة، ،او په حلقه اوجمع سره ذکر هم نه دې لثبوته في الاحادیث المرفوعة الصحاح، ،او

﴿۱﴾قال ابن عابدین (هل یکره رفع الصوت بالذکر والدعاء)اقول اضطرب کلام البزازیة فنقل اولا عن فتاوىٰ القاضی انه حرام لما صح عن ابن مسعود انه اخرج جماعة من المسجد یهللون ویصلون على النبی صلی الله علیه وسلم جهراوقال لهم ما اراکم الامبتدعین ثم قال البزازی وما روی فی الصحیح انه علیه السلام قال لرافعی اصواتهم بالتکبیر اربعوا على انفسکم انکم لن تدعوا اصم ولا غائباً انکم تدعون سمیعاً بصیراً قریباًانه معکم الحدیث یحتمل ان لم یکن للرفع مصلحة فقد روی انه کان فیه غزاة ولعل رفع الصوت یجر بلاء (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



منکر صرف تعین هم نه دې. لانه ثبت منه تخصیص الخمیس للتذکیر، بلکه دا انکار به په تخصیص علي وجه التتشریع یا سدباب باندې محمول کولي شي. او په ظاهره ددې مراد دا معلومیږي چه منکر په ګټو باندې شمارل دي لیکن دا د نورو روایتونو سره معارض دې نو په ټولو روایتونو باندې د نظر اچولو نه پس حکم کول پکار وي نه داچه یو روایت باندې نظر کولو نه پس دې فیصله اوکړې شي. فقط ﴿۱﴾

## په ګټکو باندې کلمه یا درود شریف وئیل

**سوال:** روازانه د سحر مونځ عموماً او یا چرته بل مقرر وخت باندې د ګټکو په ذریعې سره کلمه شریفه یا درود شریف وئیل څنګه دي؟

المستفتي:ماسټر غلام محمد ماړي کنجور

کیمل پوراټک ۲۵\ذي قعده ۱۳۸۸ھ

**الجواب:** د بعضې صحابه کرامو رضي الله عنهم نه انکار مروي دې لیکن داحادیث نبویه او بعضِ آثارو نه جواز معلومیږي لهذا دا جائز دي لکه څنګه چه د لرګي په تسبیح سره جائز دي. ﴿۱﴾ فقط

(بقیه حاشیه ګزشته صفحه )والحرب خدعة ولهذا نهی عن الجرس فی المغازی واما رفع الصوت بالذکر فجائز کما فی الاذان والخطبة والجمعة والحج وقد حرر المسئلة فی الخیریه وحمل ما فی فتاوىٰ القاضی على الجهر المضر وقال ان هناک احادیث اقتضت طلب الجهر واحادیث طلب الاسرار والجمع بینهما بان ذالک یختلف باختلاف الاشخاص والاحوال فالاسرار افضل حیث خیف الریاء او تاذی المصلین اوالنیام والجهر الفکر ویصرف سمعه الیه ویطرد النوم ویزید النشاط.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۸۲جلد ۵ کتاب الحظر والاباحة)
وایضاًفی ردالمحتار .لا بأس باتخاذ المسبحة.......ودلیل الجواز ما رواه ابو داؤدوالترمذی والنسائی وابن حبان والحاکم وقال صحیح الاسناد عن سعد بن ابی وقاص انه دخل مع رسول الله صلی الله علیه وسلم على امرأة وبین یدیها نوی او حصاً تسبح به فقال اخبرک الخ
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۱جلد ۱ مطلب الکلام على اتخاذ المسبحه)
وایضاً ما رواه الترمذی عن انس قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا مررتم بریاض الجنة فارتعوا قالوا وما ریاض الجنة قال حلق الذکر. مشکواة المصابیح ص۱۹۸ جلد ۱ باب ذکر الله عز وجل والتقرب الیه)
﴿۱﴾قال ابن عابدین والمشهور شرعاً اطلاق السبحة بالضم على النافلة قال فی المغرب لانه یسبح فیها ودلیل الجواز مارواه ابوداؤد والترمذی والنسائی وابن حبان والحاکم وقال صحیح الاسناد عن سعد بن ابی وقاص انه دخل مع رسول الله صلی الله علیه وسلم على امرأة وبین یدیها نوی او حصا تسبح به .........الخ مثل ذالک فلم ینهها عن ذالک وانما ارشدها الى ماهو ایسر وافضل ولو کان مکروهالبین لهاذالک ولا یزید السبحة على مضمون هذا الحدیث الا بضم النوی فی خیط ومثل ذالک لایظهر تاثیره فی المنع فلاجرم ان نقل اتخاذها والعمل بها عن جماعة من الصوفیة الاخیار وغیرهم الخ
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۱جلد ۱ .مطلب الکلام على اتخاذ المسبحة)

## د اختردَ مونځ نه پس دعا غوښتل مباح دی

**سوال:** د اختر دَمونځ نه پس دعا غوښتل څنګه دي وضاحت اوکړئ؟

المستفتي:سراج الدين حقاني ډوميل جهلم......۳ذي الحجه۱۴۰۶ھ

**الجواب:** داختر دَمونځ نه پس دعا غوښتل نه مطلوبِ شرعي دي او نه ممنوع شرعي دي. يو مباح کار دي او هر مباح د خارجي عوارضو په وجې سره کله حرام کيږي او کله واجب کيږي. ﴿۱﴾ فقط

## دعدم ايذاء په وخت کښې په جمات کښې ذکر بالجهر جائز دي

**سوال:** آيا په جماعت کښې ذکر بالجهر مکروه تحريمي دې چه په هغه وخت کښې نه څوک مونځ کوي او نه څه بل نقصان وي اګرچه بهتر خو په پټه باندې دې ليکن جهراً ولې حرام دې؟ په دليل سره مطلع کړې ممنون او فرمايئ.

المستفتي :حکيم عبدالرزاق هري پور هزاره...۱۹۶۹۱۱۳۱۹ :

**الجواب:** په جهر في المسجد کښې اختلاف دې راجح دادې چه کله اوده يا مونځ ګذار ته تکليف نه وي نو جائز دې.

في حاشية الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفا خلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغيرها الا ان يشوش جهرهم علی نائم او مصلی او قارئ ﴿۲﴾ فقط

---

﴿۱﴾قال ابن عابدين والمباح غير مطلوب الفعل وانما هو مخير فيه .(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۸۷جلد ۱.مطلب المختار ان الاصل فی الاشياء الاباحة)

وايضاً فی تقريرات الرافعی (اماما نص علی اباحته او فعله عليه السلام فلاينفع)فيه ان ما نص الشارع علی اباحته اوفعله تثبت الاباحة فيه بان الاصل فی الاشياء الاباحة ونص الشارع او فعله انما افاد حقيقة تقرير الثابت بالاصل .(تقريرات رافعی ص ۱۶ جلد ۱ کتاب الطهارة)

وعن ام عطية قالت امرنا ان نخرج الحيض يوم العيدين وذوات الخدور فيشهدن جماعة المسلمين ودعوتهم تعتزل الحيض الخ(مشکواة المصابيح ص ۱۲۵ جلد ۱ باب صلواة العيدين)

﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر فی المساجد باب احکام المساجد)



## په تراويح کښې الصلوة بر محمد په زوره وئيل

**سوال:** دَڅلور رکعته تراويح مونځ نه پس د اودريدو په وخت کښې الصلوة برمحمد ﷺ په زوره وئيل صحيح دي که نه؟ بينواتوجروا

المستفتي:صوفي محمد سخي محمد چتال سهګل آباد جهلم۱۹۶۹۱۱۳۱۰

**الجواب:** د التزام مالايلزم د وجې نه بدعت دي. ﴿۱﴾ فقط

## د ذکر او درود نه د منکر امامت اودَ دعانه د منکرمسئله

**سوال:** داسې کسان چه د فاتحې دعا او درود شريف مخالف وي داسې کس امام جوړول جائز دي؟ دارنګې په ګټکوباندې درود وئيل او په ښکاره باندې وئيل په دې کښې څه نقصان دې؟

المستفتي: شاه ميډيکل هال کيمل پور........۵شوال۱۳۹۵ھ

**الجواب:** کوم کسان چه د ماثور درود نه منکر وي هغوی امام مه جوړوئ. او که د درود په وجه تکليف رسولو ته بد وائی ياد خلاف شرع درودوئيلو نه منکروی نودَهغه په امام جوړولو کښې څه مسئله نشته،دارنګې ددعا نه منکر او په دعا باندې د التزام نه منکر دې دواړو کښې فرق دې اولنې د امامت قابل نه دې او دويم د امامت قابل دې. اوګټکو باند ذکر وغيره جائز او مسنون دې﴿ ۱ ﴾ البته دحد نه زيات په زوره وئيل او جهر کول داقسم کارونه ناجائز دي. فقط.

---

﴿۱﴾قال ابن عابدين لا يمنع من ذکر الله تعالیٰ فی وقت من الاوقات بل من ايقاعه علی وجه البدعة..........وبان تخصيص الذکربوقت لم يرد به الشرع غير مشروع.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۱۳ جلد ۱ باب العيدين)

﴿۲﴾قال ابن عابدين لا بأس باتخاذ المسبحة ،والمشهورشرعاًاطلاق السبحة بالضم علی النافلة قال فی المغرب لانه يسبح فيها ودليل الجواز ما رواه ابوداؤدو الترمذی والنسائی وابن حبان والحاکم وقال صحيح الاسناد عن سعد بن ابی وقاص الخ...........فلم ينهها عن ذالک وانما ارشدها الی ما هو ايسر وافضل ولو کان مکروها لبين لها ذالک ولايزيد السبحة علی مضمون هذا الحديث الا بضم النوی فی خيط ومثل ذالک لايظهر تاثيره فی المنع الخ(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۱جلد ۱ مطلب الکلام علی اتخاذ المسبحة)

وايضاً فی ردالمحتار اجمع العلماء سلفاً وخلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغيرها الا ان يشوش جهرهم علی نائم او مصل او قارئ الخ(ردالمحتار ص۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر)

## په درود ماثور او غیر ماثور کښې او ذکر خفي او جهري کښې کوم یو غوره دی

**سوال:** ذکر بالجهر غوره دي یا ذکر خفی؟ دارنګې کوم درود شریف چه په احادیثو کښې راغلې هغه غوره دې او که د خپل طرفنه درود شریف وئیل؟ بینوا توجروا.

المستفتي: نامعلوم.....

**الجواب:** کوم ځائې کښې چه شرعاً جهر مطلوب نه وي هلته اخفا غوره ده البته جهر جائز دې په دې شرط چه تکلیف رسول پکښې نه وي(۱) (ردالمحتار وغیره) او چه ماثور درودونه ډیر موجود وي نو غیر ماثور ته څه ضرورت دې. لیکن ددې سره که مضمون ئې صحیح وي نو لوستل ئې جائز دی. فقط

## د(الحمد لله رب السموٰتِ والارض رب العالمین الخ) دعا سند

**سوال:** د یو څیز د سند تپوس کول غواړم د هغې متعلق روایت دې چه ددې ویونکې به د مور پلار حقوق ادا کونکو نه وي تسبیح دا دې. بسم الله الرحمن الرحیم الحمد لله رب السموات والارض رب العالمین وله النور في السموات والارض وهوالعزیز الحکیم. ددې متعلق لږ تحقیق اوکړئ او جواب راکړئ چه آیا دا حدیث مبارک دې یا څه بل څه دې؟

المستفتي: محمد غفار فقیر آباد پشاور...۱۹ رجب ۱۳۸۹ھ.

**الجواب:** د مناسب تلاش باجود هم دا دعا په حدیث نبوي کښې ملاؤ نه شوه کیدیشي چرته د یو بزرګ ارشاد وي.

## د اذان نه پس لاس اوچتول او دعا کول

**سوال:** د اذان نه پس دعا کښې لاس اوچتول غوره دي یا لاس اوچتولو نه بغیر په زړه کښې دعاغوښتل غوره دي. په دې کښې د علماؤ څه اختلاف دې؟

المستفتي: مثل زاده تر لاندي صوابي....۱۲۱۵۱۱۹۶۹

(۱) قال ابن عابدین اجمع العلماء سلفاً وخلفاً على استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم على نائم اومصل او قارئ الخ
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب احکام المساجد)



**الجواب:** په دې دُعا کښې لاس اوچتول یا ددې نه منع یو هم ثابت نه دې خو بهتر داده چه لاس دې اوچت نه شي او په لاس اوچتونکې باندې دې انکار هم اونه کړې شی. وهوالموفق

## اسم اعظم د الله تعالیٰ نوم دې

**سوال:** اسم اعظم څه څیز دې؟

المستفتي: محمد عارف اسماعیله مردان ۱۹۱۸۱۱۹۷۷ء

**الجواب:** اسم اعظم د الله یو نوم دې چه د هغې په وجې سره دعا قبلیږي. وهوالموفق

## درود تاج لوستل

**سوال:** په درود تاج کښې چه کوم الفاظ دې دافع البلاء والوباء نه واخلې والاحد پورې مذکور دي بعضې صاحبان وائي چه دا صفت صرف د الله دې نو ددې وجې نه ئې لوستل صحیح نه دي ددینه شرک پیدا کیږي. آیا دا صحیح ده؟

المستفتي: سید فداءالرحمان پرائمري سکول شبقدر فورټ چارسده ۱۲۱۱۰۱۱۹۷۲

**الجواب:** درود تاج په دې عقیدې سره وئیل چه پیغمبر علیه السلام الله تعالیٰ د مصیبتونو ختمولو دپاره مقرر کړې دې دا شرک دې او حرام دې. او د یو صحیح العقیده سړي دپاره چه دهغه عقیده وي چه الله تعالیٰ دده په دُعا او توسل سره مصیبتونه وغیره ختموي نو-دا جائز دي لیکن درود ماثور پریخودل او غیر ماثور وئیل د انصاف نه لرې خبره ده. وهوالموفق

## توسل په ذوات الانبیاء والاولیاء او د دیوبند مسلک

**سوال:** علمائې دین ومفتیان شرع متین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه توسل په ذوات الانبیاء کښې د جمهوراهل سنت والجماعت مسلک څه دې؟ دَ دیوبندیانو حضراتو په دې کښې څه مسلک دې او ددې منکر دیوبندي دې یا نه؟

المستفتي: اهالیان ایبټ آباد ضلع هزاره....۲۲۱۲۱۱۹۶۹

**الجواب:** د دیوبند ټول اکابرین د توسل بالصالحین قائل دی مثلاً حضرت ګنګوهی، مولانا تهانوی رحمهما الله وغیره (اوګورئ المهند) توسل بالصالحین نجدیه سلفیه ډله نه منی لیکن د قرآن او حدیث نه ئې جواز شته دې.﴿۱﴾ که ضرورت وي نو بیا دلائل هم غوښتلي شي.فقط

## صلاة وسلام لوستل

**سوال:** صلاة وسلام لوستل څنګه دي، بعضې خلق دیکښې مختلفې خبرې کوي؟. المستفتي:محمد آمین تله ګنګ کیمل پور

**الجواب:** په نبي کریم ﷺ باندې صلوة او سلام وئیل عبادت دې که اذان نه پس وي او که د اذان نه مخکښې وي په دیکښې یو هم منع نه دې البته په التزام سره لوستل ﴿۲﴾ او په جهر باندې مونځ ګزار وغیره ته تکلیف رسول﴿۳﴾ او په حضور ﷺ باندې حاضر ناظر عقیدې سره لوستل ممنوع دي. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ التوسل بمحبة الصالحین قال الله تعالیٰ و کانوا من قبل یستفتحون علی الذین کفروا . ( بقره ) ذکر السدی انهم کانوا اذا اشتد الحرب بینهم و بین المشرکین اخرجوا التوراة و وضعوا ایدیهم علی موضع ذکر النبی ﷺ و قالوا اللهم انا نسئلک بحق نبیک الذی و عدتنا ان تبعثه فی آخر الزمان ان تنصرنا الیوم علی عدونا . فینصرون (روح المعانی ص ۳۲۰ جلد ۱ )

(۲) التوسل بشرکة الصالحین : قال الله تعالیٰ و ما کان الله لیعذبهم و انت فیهم .( الانفال ) (۳) التوسل باعمال الصالحه و الجاه للصالحین : قال الله تعالیٰ و کان ابو هما صالحاً ( الکهف ) (۴) التوسل بالاعمال و القرابة للصالحین : قال الله تعالیٰ و الذین آمنوا و اتبعتهم ذریتهم بایمان الحقنا بهم ذریتهم. (سورة الطور ) (۵) التوسل باعمال نفسه و طاعتها : قال الله تعالیٰ و ابتغوا الیه الوسیلة ٠ ( المائدة )

﴿۲﴾ قال ابن نجیم و لان ذکر الله تعالی اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت او بشئی دون شئی لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف المشروع . (البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العیدین)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین و فی حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً و خلفاعلی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد و غیر ها الا ان یشوش جهر هم علی نائم او مصل او قاری ٔ الخ (رد المحتار هامش الدر المختار ص ۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت با ب الذکر باب احکام المساجد )



## د ځان نه جوړ شوې درود شریف لوستل

**سوال:** ځمونږ په جمات کښې عموماً د جمعې په ورځ باندې امام صاحب د خطبې د اذان نه مخکښې د حمد او ثنا نه پس د مسلمانانو د شوق دپاره دسیرت پاک فضیلت بیانوي درود شریف په زور باندې وائي او خلق هم وائي، درود دادې (صل علي سیدنا صل علي محمد، صل علي شفیعنا صل علي محمد، صل علي رحیمنا، صل علي محمد، صل علي نور نا صل علي محمد، بعضې خلق دیته بکواس وائی.مونږ د صحیح صورتحال نه خبر کړئ؟

المستفتي: نامعلوم.........۱۳محرم ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** خبر شئ چه د درود خو د ساخته دې وئیل ئې جائز دي خو غوره نه دي. او کله کله یو جائز او مباح څیز هم د خارجي عوارضو د وجې نه ممنوع ګرځي،او درود ماثور انفرادي طریقې سره لوستل د هر څۀ نه غوره کار دې البته چرته یو جائز درود ته بکواس وئیل بکواس دې. وهو الموفق

## د درود تاج د موهم الفاظو مناسب تاویل

**سوال:** (۱) د درود تاج دالفاظ د پیغمبر علیه السلام په شان کښې وئیل څنګه دی؟ دافع البلاء والو باء والمرض والقحط والالم (۲) او په دې درود شریف کښې دا الفاظ هم دي، نور، من نورالله، یعني د الله تعالی دنور نه یو نور دې که ددې الفاظ مناسب تاویل وي نو اولیکئ او ثواب دارین حاصل کړئ؟

المستفتي: شمس الحق سرکي اټک....۵محرم۱۴۰۳ھ

**جواب:** ( ۱ ) تاویله ان الله تعالیٰ یدفع بدعائه و برکته القحط وغیره

(۲) و تاویل نور من نور الله ان نور الله مبدء ه لا انه مادته

ملاحظه: هذه الصلاة لیست ماثورة و مع ذالک هی موهمة للعوام و مستغنی عنها الخواص و یدل علیه اختلاف طبائع الناس. و هو الموفق

## درود تاج د موهم کیدو په وجه لوستل د شک باعث دي

**سوال:** دَ درود تاج، دا الفاظ د پیغمبر علیه السلام په شان کښي عقیدتاً یا بغیر عقیدي نه وئیل څنګه دی؟ چه دا فع البلاء والوباء والمرض والقحط والالم، او دا الفاظ چه نور من نور الله.

المستفتي: شمس الحق سرکي تحصیل وضلع اټک ۲۲/ذي الحجه ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** درود لوستل لوئي عبادت دي البته داکوشش مناسب دي چه ماثور درود اووئیلي شي غیر ماثور نه. او درود تاج د پیغمبر علیه السلام او سلف صالحینو نه غیر ماثور دي لهذا د خواصو دپاره دا وئیل او ماثور پریخودل د شک باعث دي. او د صحیح العقائد عوامو دپاره هم د موهم کیدو په وجه د شک باعث دي. (چه هغوي د پیغمبر علیه السلام د تسلط قائل نه وي دارنګې د ذات خدا وندي د ماده مخلوق کیدو معتقد نه وي او په دي الفاظو کښي دا تاویل کوي چه الله تعالی د پیغمبر په دعا او توسل سره بلا ګاني دفع کوي. ﴿۱﴾ او الله تعالی مبداء دَمخلوق دي نه ماده) وهو الموفق

## د اهل بدعتو د ذکر وصلاة نه اجتناب ضروري دي

**سوال:** (۱) ځمونږ د علاقي خوا او شا کښي مبتدعین خلق ذکر او درود شریف په زوره زوره د قوالئ او ګاني په شکل کښي کوي آیا دا طریقه صحیح ده؟ (۲) د آذان نه مخکښي او روستو د صلاة وسلام وضاحت هم اوکړئ؟

المستفتي: مولانا ولي الرحمان مدرسه تعلیم القرآن بالاکوټ مانسهره ۱۱/۷/۱۹۸۵

**الجواب:** (۱) ذکربالجهر جائزدي اګرکه په هیئت اجتماعي سره وي. په دي شرط چه د اوده او مونځ ګزاره د تکلیف نه خالي وي. کما في ردا لمحتار ۶۱۸ ج۱ عن الامام الشعراني ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین عن السبکی یحسن التوسل با لنبی الی ربه و لم ینکر ه احد من السلف ولا الخلف الا ابن تیمیة فا بتدع مالم یقله عالم قبله. (ردالمحتار ص ۲۸۱ جلد ۵ فصل فی البیع کتاب الحظر و الاباحة)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً و خلفاً علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قاری الخ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت با لذکر باب احکام المساجد)



البته چه کوم ذکر د اهل بدعت شعار وي د هغي نه دَ صحیح العقیده سړي اجتناب ضروري دي. (۲) صلوة او سلام غوره عبادت دي مګر د مروجو مبتدعینو شعار قطعاً بدعت دي د هغي نه احتراز په دي طریقي سره لازم دي. قال علیه السلام من احدث في امرنا هذا مالیس منه فهو رد. ﴿۱﴾

## جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته فرښتي درود شریف رسوي

**سوال:** کوم درود شریف چه مونږه وایو دا د الله تعالی محبوب حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم پخپله اوري یا فرښتي ئي ورته رسوي؟

المستفتي: محمد سلیم اعوان فیروز سنز لیبارټریز نوشهره ۱۰ ربیع الثاني ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** په صحیح حدیثو نو سره دا امر ثابت دي چه د لرې نه لوستلي شوي صلوة او سلام فرښتي هغوي ته رسوي ﴿۲﴾ او دا خیال چه د لرې نه ئي هم پیغمبر علیه السلام پخپله اوري د حدیث نه مخالف دي او امام زرقاني لیکلي دي چه دا خبره په خطیبانو کښي مشهوره ده لیکن ددي څه اصل نشته. وهو الموفق.

## په درود شریف کښي د مفرد دَضمیر مرجع

**سوال:** یو مولوي صاحب فرمائي چه اللهم صل علي سیدنا ومولانا محمد وعلي ال سیدنا ومولانا محمد وبارک وسلم علیه که چا دا درود اولوستلو نو دا درود غلط دي ځکه چه دلته. علیه. ضمیر مفرد دي او د ضمیر نه مخکښي دوه څیزونه ذکر دي محمد صلی الله علیه وسلم او ال. نو د تثنیي ضمیر پکار دي نو ددې خبرې څه جواب دي چه واقعي دا درود شریف غلط دي؟

المستفتي: حافظ محمد شفیع.... ۱۰/۱۰/۱۹۷۲

**الجواب:** دا ضروري نه ده چه ضمیر دي ټولو مذکوراتو ته راجع کړې شي او بله دا چه د کل واحد تاویل په دي کښي جاري کیدیشي. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ متفق علیه (مشکواة المصابیح ص ۲۷ جلد ۱ باب الاعتصام با لکتاب و السنة)

﴿۲﴾ عن ابن مسعود قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان لله ملائکة سیاحین فی الارض یبلغونی من امتی السلام. رواه النسائی و الدارمی. (مشکواة المصابیح ص ۸۶ جلد ۱ باب الصلوة علی النبی صلی الله علیه وسلم وفضلها)

## چا ته تکلیف رسولو نه خالي جهري ذکر جائز دي

**سوال:** که یو سړي نشیان او چرسیان د اسلام نه لرې خلق د حجرو نه اوباسي او د کلي نه بهر په صحراء کښې چاته تکلیف نه وي او څه د نیاوی غرض ئې هم نه وي او بغیر د ریا نه خالص د الله د رضا دپاره ئې د جهري ذکر دپاره راولي او هغه خلق جهري ذکر کوي نو دیکښې څه ګناه شته که نه.؟

المستفتي: محمد جمیل باغبانان ګجرات ضلع مردان..... ۱۹۷۲/۱۰/۱۱ء

**الجواب:** په دې جهري ذکر کښې چاته ایذاء او تکلیف نشته نو دا جائز دي. فی حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفا خلفا علیٰ استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قارئ (رد المحتار ص ۴۴۴ ج ۱) قلت الذکر بالجماعة مشروع لحدیث مرفوع رواه الترمذی وغیره واما الموقوف فلا یعارض المرفوع فلا بد من التاویل فی الموقوف. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د الله تعالی نه براه راست یاوسیلې سره دعا غوښتل جائز دي

**سوال:** د بعضې خلقو خیال دې چه د خپلو حاجتونو او مرادونو دپاره د اولیاء الله قبرونو ته تلل او دعاکول ضروري دي چه اې فلانکیه ! څما دپاره دَالله تعالی نه دا سوال اوکړه. ددې خلقو دا خیال دې چه مونږ براهِ راست د الله تعالی نه سوال نۀ شو کولې ځکه چه مونږ ګناه ګار یو لیکن د یوې ډلې خیال دې چه داسې کول صحیح نه دي. بلکه الله تعالی نه هر څوک هر وخت او هرحالت کښې براهِ

﴿۱﴾ قال ابن عابدین جاء فی الحدیث ما اقتضی طلب الجهر به نحو وان ذکر نی فی ملأ ذکرته فی ملأ خیر منهم رواه الشیخان و هنا ک احادیث اقتضت طلب الاسرار و الجمع بینهما بان ذلک یختلف باختلاف الاشخاص و الاحوال کما جمع بذلک بین احادیث الجهر و الاخفاء با لقراء ة و لا یعارض ذلک حدیث خیر الذکر الخفی لانه حیث خیف الریاء او تأذی المصلین او النیام فان خلا مما ذکر فقال بعض اهل العلم ان الجهر افضل لانه اکثر عملاً و لتعدی فائدته الی السامعین و یوقظ قلب الذاکر فیجمع همه الی الفکر و یصرف سمعه الیه و یطر د النوم و یزید النشاط. (ردالمحتار علی الدر المختار ص ۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت با لذکر)



راست سوال کولې شي. په دې دواړو کښې د چا قول صحیح دې. په اسلامي نقطه نظر سره وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: حضرت جمال ګورنر اکاؤنټنټ برانچ ګورنر هاوس پېښور ۲۲ رمضان ۱۴۰۵

**الجواب:** د قرآن او حدیث په رڼا کښې الله تعالی نه براهِ راست سوال کول بې شکه جائز دي چه هغه قریب او مجیب دې. اودَ نورو په وسیله سره هم کول جائز دي،﴿۱﴾ البته د چا په نیزد چه سماعِ موتی ثابت نه وي د هغوي په نیزد د وفات شوو اولیاؤ په وسیلې سره دُعا کول یو عبث اقدام دې. او دا نور ټول په ټوله باندې منکرات او بدعات دي. وهوالموفق

## په کټ کښې په ملاسته یا ناسته باندې درود شریف وئیل

**سوال:** د درود شریف متعلق خبرراکړئ چه آیا کټ کښې ناسته یا ملاسته باندې ددې د وئیلو جواز شته یانه.؟

المستفتي: جلال الدین ایډوکیټ ظهیر آباد مرج منډي پېښور ۱۹۸۵/۱۲/۲۱ء

**الجواب:** درود شریف په یو حالت کښې هم ممنوع نه دې﴿ ۲﴾ په ملاسته او ناسته وئیل په حدث اصغر او حدث اکبر کښې وئیل ټول جائز دي په قران اوحدیث کښې دَ درود شریف وئیلو بلا تقید اجازت شوې دې. البته د قرآن شریف د تلاوت منع د جنابت په حالت کښې راغلې ده. او د ملاستې په حالت هم کله چه سرپه څادر وغیره کښې پټ وي دا هم فقهاؤ منع کړې دي. ﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال ابن الهمام و یسئل الله حا جته متو سلاً الی الله بحضرة نبیه ثم قال یسأل النبی ﷺ الشفاعة فیقول یا رسول الله اسأ لک الشفاعة یا رسول الله اتو سل بک الی الله. (فتح القدیر ص ۳۳۷ جلد ۲)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین و مستحبة فی کل او قات الامکان ای حیث لا ما نع و نص العلماء علی استحبابها فی مواضع یوم الجمعة ولیلتها الخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۸۳ جلد ۱ مطلب نص العلماء علی استحباب الصلا ة علی النبی)

﴿۳﴾ و فی الهندیه لا بأس با لقراء ة مضطجعاً اذا اخرج راسه من اللحاف لا نه یکون کا للبس و الا فلا کذا فی القنیه. (فتاوی العالمگیریه ص ۳۱۶ کتاب الکراهیة)

## الصلوة والسلام عليك يا رسول الله وئيل

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائي چه زمونږ په علاقه کښي په رمضان شريف بعضي ځايونو کښي الصلاة والسلام عليک يارسول الله په زوره وئيلي کيږي چه خلق پيښمني له راپاسي نوآيادا درودشريف وئيل جائزدي؟

المستفتي: مولوي الله داد ګلستان پشين بلوچستان.....۱۹۸۹ء۱۳۱۹۱

**الجواب:** دا کلمات د حاضر ناظر په عقيدې سره وئيل شرک دي او د ملائکو رسولو په عقيدې سره خوجائز دي ليکن دا د اهل بدعت خلقو خاص شعاردي نو په دې حيثيت سره منع دي. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د جماع نه مخکښي دُعا لوستل

**سوال:** د جماع نه مخکښي څه وئيل پکار دي او فائده به ئي څه وي؟

المستفتي: محمد حنيف پيښور.....۱۸ذي القعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** ته د جماع نه مخکښي (اللهم جنبنا الشيطن وجنب الشيطن ما رزقتنا)، ﴿۲﴾ وايه چه دَ شيطانانو د شرکت نه محفوظ ئي.

## د دُعا په باره کښي جاهلانه خبرې او په مستحباتو باندې دوام

**سوال:** (۱) که يو سړې دا اووائي چه د دعا ګانو څه قدر نشته د پيغمبرانو هم ډير دعا ګاني نه دي قبولې شوې نو ددې خبرې څه حکم دې؟ (۲) د دوام على المستحبات څه حکم دې؟

المستفتي: مولانا فضل ربي.....۲۱\۱رجب ۱۴۰۳ھ

---

﴿۱﴾ قال العلامه طيبى (قوله من تشبه بقوم) هذا عام فى الخلق و الحلق والشعار و اذا كان الشعار اظهر فى التشبيه ذكر فى هذا الباب. (شرح الطيبى ص ۲۱۹ جلد ۸ كتاب اللباس الفصل الثانى)

﴿۲﴾ عن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ لو ان احدكم اذا اراد ان ياتى اهله قال بسم الله اللهم جنبنا الشيطان و جنب الشيطان ما رزقتنا فانه ان يقدر بينهما ولد فى ذلک لم يضره شيطان ابداً. متفق عليه (مشكواة المصابيح ص ۲۱۲ جلد ۱ باب الدعوات فى الاوقات)



**الجواب:** (۱) دا جاهلانه خبرې دي﴿۱﴾ داسې خبرونه ځان بچ کول لازم دي.

(۲) مندوب او مستحب دي كما في حديث البخاري﴿۲﴾.

## په خير باندې د خاتمې د پاره مفيد وظيفې

**سوال:** په خير باندې د خاتمې دپاره څه وظيفه او ذکر کول پکار دي چه هميشه لوستل ئې مناسب وي او څه تکليف پکښې هم نه وي؟ بينواتوجروا

المستفتي: ابن شير محمد تر لاندى مردان.....۱۲\۵\۱۱۹۲۹

**الجواب:** آية الكرسي، تسبيحاتِ فاطمي او تشهد وغيره. فقط

## تلاوت کول افضل او وظيفه کول انفع دی

**سوال:** ما د يو صاحب شريعت پير نه بيعت کړيدې او ماته ئې د يوې وظيفې کم ازکم روزانه پنځه سو ځلې د وئيلو حکم کړيدې اوما اوريدلي دي چه دتولو نه افضل ذکر قرآن پاک دې. داصحت د خرابي په وجه ځه دواړه وظيفې او تلاوت نه شم کولي اوس د شريعت په رنړا کښې وظيفه اختيار کړم که تلاوت؟

المستفتي: نا معلوم.....۱۵ جنوري ۱۹۷۵

**الجواب:** تلاوت کول افضل دي او وظيفه کول انفع دی. فقط

---

﴿۱﴾ عن ابى سعيد ن الخدرى ان النبى ﷺ قال ما من مسلم يدعو بدعوة ليس فيها اثم و لا قطيعة رحم الا اعطاه الله بها احدى ثلث اما ان يعجل له دعوته و اما ان يدخرها له فى الاخرة واما ان يصرف عنه من السوء مثلها قالوا اذانكثر قال الله اكثر رواه احمد. (مشكواة المصابيح ص ۱۹۶ جلد ۱ كتاب الدعوات)

﴿۲﴾ عن عائشة ان النبى ﷺ دخل عليها و عند ها امرأة قال من هذه قالت فلانة تذكر من صلاتها قال مه عليكم بما تطيقون فوالله لا يمل الله حتى تملوا و كان احب الدين اليه ما داوم عليه صاحبه. (قلت اعلم ان الدوام على الاعمال مندوب لكن التزام ما لا يلزم مذموم)

(صحيح البخارى ص ۱۱ جلد ۱ باب احب الدين الله كتاب الايمان)

قال اللہ تعالیٰ

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ

اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ

يُبَايِعْنَكَ عَلٰٓى اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا

وَّلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِيْنَ وَلَا يَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ

وَلَا يَاْتِيْنَ بِبُهْتَانٍ يَّفْتَرِيْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ

وَلَا يَعْصِيْنَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللّٰهَ ؕ

اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾

...



# کتاب

# التصوف والسلوک

• • •

# کتاب التصوف والسلوک

## د یو مرشد د رحلت نه پس بل مرشد سره بیعت

**سوال:** که یو مرشد وفات شي نو دویم مرشد سره بیعت کول جائز دي که نه؟ که جائز وي نو اولني مرشد کوم د دنیا نه لاړو آیا هغه په حقیقت کښې ژوندي نه دي. او هغه څمونږ مدد نشي کولې؟ برائې مهرباني د قرآن او حدیث په حوالو سره جواب راکړئ مشکور به یو.

المستفتي: عبد الغني کمپني اي پلاټون: ۲۴۱
ټریننګ بټالین رسالپور ۲۱\۱۴\۱۹۷۰

**الجواب:** دیو مرشد دوفات کیدونه پس دویم مرشد سره بیعت کول جائز دي. دټولو مشائخو هم دامعمول پاتې شویدې شاه ولي الله رحمه الله په القول الجمیل کښې لیکي!

**ان تکرار البیعة من رسول الله ﷺ ما ثور و کذلک عن الصوفیة اما من الشخصین فان کان بظهور خلل فی من بایعه فلا بأس و کذلک بعد موته او غیبته المنقطعة و امابلا عذر فانه یشبه المتلاعب و یذهب با لبرکة و یصرف قلوب الشیوخ عن تعهده انتهی. ﴿۱﴾ (مجموعة الفتاوی مولانا لکنهوی ص۲۱۸ جلد۲)**

لهذا دویم ځائې کښې بیعت کول بې شک شبهې نه جائز دې او د مړي نه اګر چه فیض رارسي ﴿۲﴾ لیکن په بیعت کښې فیض مقصود نه وي بلکه اصلاح او تزکیه مقصود وي چه د هغه د مړي نه نه کیږي. او د اولیاء الله دپاره چه کوم ژوند دي هغه د نیوي نه دي ګڼي نو میراث به ئې نه تقسیمدلو اودَ دوې د بیبیانو سره به نکاح نه جائز کیدله. او کوم مرشد چه مرید ته اووائي چه څما د وفات نه پس بل ځائې کښې بیعت مه کوه. څما نه به فیض رسیږي

﴿۱﴾ **ترجمه:** د بیعت تکرار د رسول الله ﷺ نه منقول دې او دغه شان دصوفیائې کرام نه هم، او که د دوه پیرانو نه وي نو که دڅه خلل د ظاهریدو په سبب باندې وي چاسره چه ئې بیعت کړې وي نو بیا خو څه خبره نه ده. او یا د هغه د مرګ نه پس او یا داسې غائب والي نه چه پته ئې نه لګي او د ملاقات توقع ورسره نه وي او که بغیر د څه سبب او عذر نه بل ځائې هم بیعت کوی نو دا خو د لوبو سره مشابهت دې او هر ځائې کښې بیعت کول برکت ختموي. او د مرشدانو زړونه دده د تعلیم او تهذیب نه اړوي.
(شفاء العلیل ترجمه القول الجمیل للامام ولی الله الدهلوی ص ۲۹)

﴿۲﴾ **قال الامام ولي الله الدهلوی و اما الاطلاع علی نسبة اهل الله فطریقة ان یجلس بین یدیه ان کان حیا او عند قبره ان کان میتاً و یفرغ نفسه عن کل نسبة و یفضی بروحه الی روح هذا الشخص زماناً حتی یتصل بها و یختلط ثم یرجع الیٰ نفسه الخ (القول الجمیل للامام ولی الله ص ۹۷ اشغال مشائخ نقشبندیه)**



دا چرته څوک خود غرضه دنیا والا دي چه داخلاص او تصوف نه بالکل عاري او خالي دي. فقط

## د زیارت رسول او کشفِ قبور طریقه او د مختلفو ذکرونو ثبوت

**سوال:** السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته بعد آداب وتعظیم و تکریم نه معروضِ خدمت یم چه بنده په یو کتاب کلیات امداد په، ضیاء القلوب تصنیف د حاجي امداد الله مهاجر مکي کښې لیدلي چه د حضور ﷺ دروح مبارک د شرف ذکر دحضور ﷺ دصورت مثالیه تصور کولو سره درود شریف اووائی. اوښی طرف ته یا احمد او ګس طرف ته یا محمد اوښي طرفته یا رسول الله یو زرځل اووائي نو انشاء الله په بیدارئ یا خواب کښې به ورته زیارت اوشي (کلیات امدادیه ص ۳۵، ۳۶) او د کشف قبور په باره کښې ئې هم په ص ۴۴۰ باندې لیکلي دي نو د مړو او ژوندو اهل الله په نسبت دریا فت کولو دا طریقه کیدشي یانه؟ ضیاء القلوب ص ۵۰، ۵۱ کښې د انحضرت ﷺ د زیارت طریقه ده په هغې کښې د آنحضرت ﷺ مثالي تصور به د ښائسته سپینو جامو او شین پټکي او نوراني مخ سره کوې. (الصلوة والسلام علیک یا نبي الله، الصلوة والسلام علیک یا حبیب الله وغیره مطلب دادې چه درسول الله تصویر مثالي او په صرف ندا سره آواز کول صحیح دي که نه؟ خو چه رسول اله ﷺ حاضر ناظر نه ګڼړي صرف په تصور مثالي او حرف نداء سره ئې رابلې او ذکرِ جاروب، ذکر حدا دي، سلطان الاذکار، ذکراره اود ذکر ضربونه لګول صحیح دي که نه؟

المستفتي: میاں عالمګیر ډاک اسماعیل خیل پیښور..... ۲۳ رجب ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** داسې عددونو ته عملیات وائي په هغې کښې دا ضروري ده چه د شریعت نه مخالف نه وي. او په دې کښې دا ضروري نه وي چه بعینها منقول او روایت شوې وي.

**والدلیل علیه ما ثبت فی غیر حدیث واحد من تغیر الرقیٰ و تقریر ها فی بعض فافهم ﴿۱﴾ ولا تکن من النجدیین.**

او د یو صحیح العقیده سړي دپاره په نداء کښې هیڅ حرج نشته دې.

**لانه لایعتقد النبی ﷺ حاضراً وناظراً وعالماً بالغیب و اما تصوره فلا ضیر فیه بدلیل جواز ذکر شمائله وهو لایمکن بدون التصور فتدبر. ولا تکن من المتوحدین.**

او کشف قبور وغیره هم په عملیاتو کښې یو عمل دې او د اهل فن په نزد باندې مجرب او مشاهد دي ﴿۲﴾ لیکن دا امر ظني دې قطعي نه دې. نو دا به

﴿۱﴾ **عن عوف بن مالک الاشجعی قال کنا نرقی فی الجاهلیة فقلنا یا رسول الله کیف تریٰ فی ذلک فقال اعرضوا علی رقاکم لا بأس بالرقیٰ مالم یکن فیه شرک. رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص۳۸۸ جلد ۲ کتاب الطب و الرقی الفصل الاول)**

﴿۲﴾ **قال العلامه ملا علی قاری وهذا الحدیث مثل قوله علیه الصلوٰة والسلام لو علمتم ما اعلم لضحکتم قلیلا و لبکیتم کثیرا. و فیه ان الکشف بحسب الطاقة و من کوشف بما لا یسعه یطیح و یهلک. (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص ۳۴۶ جلد ۱ کتاب الایمان)**

لازمي نه ګڼړي کیږي. واضحه دي وي چه د تصوف د ټولو طریقو مقصود د احسان د مرتبې حصول دي. وهوان تعبدالله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک ﴿١﴾ او د ١٩٨ ذکرونه او مراقبې چه مشائخو تلقین کړی دي د دې مرتبې د حصول ذریعې او اسباب دي په نورو الفاظو کښې دا معالجات دي. او علماؤ تصریح کړیده چه معالجاتو وغیره ته بدعات نشئ وئیلي کیدلي. بلکه دا په حقیقت کښې د وخت په مصلحتو نو کښې داخل دی. ﴿٢﴾ فقط

## د پیر مخصوص الفاظ او د بزګانو تصویرونه آویزان کول

**سوال:** څمونږ په علاقه کښې بعضې خلق څانته اهل طریقت وائي او د جمعې په شپه یو ختم کوي په هغې کښې دا الفاظ وائي، امدا د کن ازا هر غمي آزاد کن در دین ودنیا شاد کن یا شیخ عبد القادر جیلاني و یا شیخ عبد القادر شیئاً لله. او ورسره ورسره دا خلق د بزګانو تصویرونه مخامخ په دیوالونو زوړندوي او تعظیم ئې کوي او وائي چه څمونږه طریقه د نورو طریقو نه په جُدا طرز ده. نو جناب تاسو په مسئلو کښې د ټول پاکستان ماوی وملجاء یئ نو ددې مسئلو حل سره د حوالو نه اولیکئ؟

المستفتي: قاضي فیض الرحمان سیاه بدر کني علاقه ډوګدره دیر بالا ٢٩ ربیع الاول ١٣٩٠ھ

**الجواب:** که دا الفاظ د حاضر ناظر عقیدې یا د تسلط غیبی په عقیدې سره وائي نو مشرکان او کافران دي.

لما فی البزازیه من قال اروا ح المشائخ حاضرة یکفر ﴿٣﴾ انتهیٰ. و صرح ابن القیم فی مدارج السالکین ان العبادة هی عبارة عن التسلط الغیبی علماً و قدرة وصرحا الفقهاء والمتکلمون باختصاص علم الغیب بالله تعالیٰ (فلیراجع الی الخانیه باب النکاح و المسامره) ﴿٤﴾ او پیغمبر علیه السلام په تصویر سازئ باندې لعنت وئیلي دي او فرمائیلي دي چه کوم

---

﴿١﴾ (صحیح البخاری ص ١٢ جلد ١ باب سوال جبرئیل النبی ﷺ عن الایمان والا سلام والاحسان)

﴿٢﴾ قال ابن عابدین (البدعة) قد تکون واجبة کنصب الادلة للردعلی اهل الفرق الضالة وتعلم النحو المفهم للکتاب والسنة ومندوبة کاحداث نحو رباط ومدرسة وکل احسان لم یکن فی الصدر الاول الخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٤١٤ جلد ١ مطلب البدعة خمسة اقسام)

﴿٣﴾ (فتاوی بزازیه علی هامش الهندیه ص ٣٢٦ جلد ٦ کتاب الفاظ تکون اسلاما او کفر او خطاء) وایضا قال ابن نجیم من قال ارواح المشائخ حاضرة تعلم یکفر. (بحر الرائق ص ١٢٤ جلد ٥ باب احکام المرتدین) (بقیه حاشیه په راروانه مخ)



ځائې کښې د جاندار تصویرونه وي هلته د رحمت فرښتې نه ځي قال رسول الله ﷺ لا تدخل الملئکة بیتاً فیه کلب ولا تصاویر. (متفق علیه) وقال اشد الناس عذاباً عندالله المصورون (متفق علیه) ﴿١﴾

او په دې صورت کښې خو خاص طور سره د بت پرستئ سخته خطره موجوده ده. نو د داسې پیرانو نه هر مسلمان د پاره ځان ته ساتل ضروري دي. فقط

## مستوراتو د پاره زیارة القبور او قرآن او علم باندې پیرته فضیلت ورکول

**سوال:** (١) د فتنو په دې زمانه کښې د زنانو د پاره قبرستان ته او د اولیائې کرامو مزارونو ته تلل څنګه دي؟ او حال دا دې چه قدم په قدم باندې نوې نوې فتنې د ایمان د لوټ کولو په تلاش کښې دي. (٢) که څوک داسې او وائي چه څما د پاره د قرآن نه څما پیر صاحب غوره دي، نو ددې څه حکم دې؟

المستفتي: جمعه ګل محله کرشن پوره پشاور شهر...... ١٨١٥١١٩٧٠

**الجواب:** په اصل مذهب کښې زیارة القبور د سړو او زنانو د پاره یو شان جائز دي. لعموم الحدیث الآن زوروها ﴿٢﴾ لیکن مفتي به قول دا دې چه د فتنو د وجې نه د زنانو له اجازت ورنکړې شي لکه چه د جمعې د مونځ د پاره ورته جمات ته د تلو اجازت نشي ورکولې. ﴿٣﴾ (٣، ٢) دا سړې د جهالت د وجې نه په غُلو کښې مبتلا دې. ده د پاره توبه ضروري ده. ﴿٤﴾ فقط

---

بقیه حاشیه ﴿٤﴾ رجل تزوج امرأة بشهادة الله ورسوله کان باطلاً لقوله ﷺ لا نکاح الا بشهود وکل نکاح یکون بشهادة الله وبعضهم جعلوا ذلک کفراً لانه یعتقدان الرسول ﷺ یعلم الغیب وهو کفر. (فتاویٰ قاضیخان علی هامش الهندیه ص ٣٣٤ جلد ١ فصل فی شرائط النکاح)

﴿١﴾ (مشکواة المصابیح ص ٣٨٥ جلد ٢ باب التصاویر)

﴿٢﴾ (مشکواة المصابیح ص ١٥٤ جلد ١ باب زیارة القبور)

﴿٣﴾ قال العلامه ابن عابدین (قوله ولو للنساء) وقیل تحرم علیهن والاصح ان الرخصة ثابتة لهن بحر وجزم فی شرح المنیة بالکراهة لمامر فی اتباعهن الجنازة وقال الخیر الرملی ان کان ذلک لتجدید الحزن والبکاء والندب علی ماجرت به عادتهن فلا تجوز وعلیه حمل حدیث لعن الله زائرات القبور وان کان للاعتبار والترحم من غیر بکاء والتبرک بزیارة قبور الصالحین فلا بأس اذا کن شواب کحضور الجماعة فی المساجد وهو توفیق حسن. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٦٦٥ جلد ١ مطلب فی زیارة القبور)

﴿٤﴾ قال الله تعالیٰ ولا تزر وازرة وزر اخریٰ. (پاره: ٢٣ سورة الزمر آیت: ٨)

## په کافرانو کښې اولياء الله نشی کيدی

**سوال:** يو سړی وائي چه په کافرانو کښې هم اولياء الله وي او د مولانا روم د مثنوي حواله ورکوي. آيا دا عقيده سائل صحيح دي؟ بينوا توجروا.

المستفتي: مياں احسان الله ډاک اسماعيل خيل نوشهره پشاور ۳۰ جولائي ۱۹۷۳

**الجواب:** په کافرانو کښې اولياء الله نشي کيدلی. لان الولي هو المؤمن المتقي ﴿۱﴾ قال الله تعالى الا ان اولياء الله لا خوف عليهم ولا يحزنون ﴿۲﴾ الذين امنو او كانوا يتقون. ﴿۳﴾ په کافرانو کښې صاحبِ توجه، صاحبِ تصرف او صاحب نسبت کيديشي ليکن د ايمان نه کيدو په وجه باندې د هغوی ټول عملونه عبث او باطل دي. ﴿۴﴾ وهو الموفق

## د کامل مُرشد نه بيعت کول په قرآن او حديث او د اُمت د نيکانو په تعامل سره ثابت دي

**سوال:** د کامل مرشد نه بيعت کول جائز دي که نه؟

المستفتي: اراکين دار العلوم بحرين سوات.............. ۲۱ رجب ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د ارشاد او سلوک بيعت کول جائز دي په قرآن او حديث کښې ذکر دي او د امت صالحانو خلقو په دي عمل کړي دي. ﴿۵﴾ وهو الموفق.

﴿۱﴾ قال الملا على قارى الولى هو العارف بالله وصفاته بقدر ما يمكن له المواظب على الطاعات المجتنب عن السيأت المعرض عن الانهماک فى اللذات والشهوات والغفلات واللهوات.
(شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص ۷۹ خوارق العادات والكرامات للاولياء حق)

﴿۲﴾ (پاره: ۱۱ سورة يونس آيت: ۶۲) ﴿۳﴾ (پاره: ۱۱ سورة يونس آيت: ۶۳)

﴿۴﴾ قال الملا على قارى واما التى تكون اى الخوارق للعادة التى تو جد لاعدائه.....مثل ابليس......وفرعون...... والدجال اى حيث وردانه يقتل شخصا ويحييه مما روى فى الاخبار ......فلا نسميها اى تلک الخوارق ايات اى معجزات لانها مختصة بالانبياء عليهم السلام ولا كرامات اى لاختصاصها بالاصفياء ولكن نسميها قضاء حاجات لهم ......لان الله تعالىٰ يقضى حاجات اعدائه استدراجا اى مكراً بهم فى الدنيا وعقوبة لهم فى العقبىٰ......ويزدادون عصيانا اى ان كانو افجارا او كفرا اى ان كانوا كفاراً...... وذلک كله جائز اى وقوعه من الله او ثابت نقلا وممكن اى عقلا كما فى قضية ابليس ودعوته بقوله انظرنى الى يوم يبعثون واجابته بقوله سبحانه فانک من المنظرين الى يوم وقت المعلوم الخ. (شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص ۸۱ مايظهر من الخوارق على ايدى بعض الكفرة والفساق)

﴿۵﴾ قال الامام ولى الله الدهلوى. قال الله تعالىٰ ان الذين يبايعونک انما يبايعون الله. يد الله فوق ايديهم فمن نكث فانما ينكث على نفسه ومن اوفىٰ بما عهد عليه الله فسيؤتيه اجرا عظيماً.
واستفاض عن رسول الله ﷺ ان الناس كانوا يبايعونه تارة على الهجرة والجهاد وتارة على اقامة اركان الاسلام وعلى الثبات والقرار فى معركة الكفار وتارة على التمسک بالسنة والاجتناب (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د رسمی پير رسمی طريقې او دې پير نه بيعت کول

**سوال:** محترم المقام جناب مفتي محمد فريد صاحب مفتي اعظم دار العلوم حقانيه اکوړه خټک. عرض دادې چه دلته يو پير صاحب دې خلقو ته وظيفې ورکوی او وائي چه د ذکر په مينځ کښې په نفي او اثبات کښې د خپل پير تصور کوئ يعنی د لا اله، نه مخکښې او الا الله، نه مخکښې. آيا دا تصور جائز دې. په تراويح کښې د اولنئ تسبيح نه پس دا: پير صاحب نبي طرفته متوجې شي او مرحبا مرحبا ياشهر رمضان يا شهر غفران، وغيره الفاظ وائی آيا دا طريقه د فقهې په کتابونو کښې شته؟ دا پير تهجد، اشراق، او د ظهر، عصر او عشاءنه مخکښې څلور سنت وغيره او نفل مونځ نه کوي. ددې پير د لاسونو وينځلو لوښې جدا دې نو رخلق پکښې ورسره نه شي شريکيدلې. او مريدان د مصافحې په وخت کښې لاسونه ښکلول کوي او تيتيدل هم کوي او پير صاحب خلق نه منع کوي بلکه پير صاحب ورته جائز وائي دارنګې پير صاحب دواړه وختونو کښې د غوښې خوراک عادت دې نو آيا دې پير نه بيعت کول جائز دي يا نه؟

المستفتي: مولوي محمد تمر الدين لاچي کرم ايجنسي... ۳۰ شوال ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** وعليکم السلام نه پس دې واضحه وي چه دا رسمي پير دې او جاهل هم دې دده نه بيعت نه کول ضروري دي او د بيعت شو وکسانو دپاره اجازت دې چه د بل متبع سنت پير نه بيعت اوکړي. ﴿۱﴾ فقط

(بقيه حاشيه) عن البدعة والحرص على الطاعات كما صح انه ﷺ بايع نسوةً من الانصار على ان لاينحن. وروى ابن ماجة انه بايع ناساً من فقراء المهاجرين على ان لا يسئل الناس شيئا فكان احدهم يسقط سوطه لينزل عن فرسه فياخذه ولا يسئل احداً و مما لا شک فيه ولا شبهة انه اذا ثبت عن رسول الله ﷺ فعل على سبيل العبادة والاهتمام بشانه فانه لا ينزل عن كونه سنةً فى الدين.
(القول الجميل فى بيان سواء السبيل ص ۱۳ الفصل الاول)

﴿۱﴾ قال العلامه على قارى رحمة الله عليه الولى هو العارف بالله وصفاته بقدر ما يمكن له المواظب على الطاعات المجتنب عن السيئات المعرض عن الانهماک فى اللذات والشهوات والغفلات واللهوات.
(شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص ۷۹ الكرامات للاولياء حق)
وقالى ابن القيم الجوزية فاولياء الرحمن هم المخلصون لربهم المحكمون لرسوله فى الحرم والحل الذين يخالفون غيره لسنته لا يخالفون سنته لغيرها فلا يبتدعون ولا يدعون الى بدعة ولا يتحيزون الى فئة غير الله ورسوله واصحابه ولا يتخذون دينهم لهوا ولعبا ولا يستحبون سماع الشيطان على سماع القرآن الخ. (كتاب الروح ص ۳۲۷ الفرق بين اولياء الرحمن واولياء الشيطان)

## د طریقت، مراقبې او ذکر واذکار ثبوت او توسل بالصالحین

**سوال:** (۱) د طریقت د سلسلو بزرګان چه کومې مراقبې او ذکر کوي اوښائي د صحیح حدیثونو او صحابه کرامو او تابعینو نه ددې وجود ثابت نه دې نو بیا دا څنګه جائز کیدې شي حضرت مجد دالف ثاني رحمه الله په یو مکتوب کښې لیکلي دي چه څمونږ په نز د باندې نه یو بدعت سئیه دې او نه حسنه دې او د تاریخ نه دامعلومیږي بلکه پخپله د حضرت د تضانیفونه معلومیږي چه هغه ددې موجد دې. نو آیا دا بدعات نه دي. ؟ د قرآن او حدیث په رنړا کښې جواب راکړئ. (۲) د اذکار او مراقبو دپاره چه کوم لطائف سبعه متعین کړې شوې دي ددې وجو د دکوم ځائې. نه ثابت دې؟ خواجه باقي بالله، حضرت مجدد صاحب، شاه ولي الله، او د هغوي ټول خاندان (رحمهم الله) او ددې مرتبې نور حضرات هم ددې قائل دي او حال دادې چه وجود ئې ثابت نه دې. (۳) دغه شان دُعا کول، اې الله د فلانکې بزرګ په طفیل او توسل سره څما فلانکې کار اوکړې. که ددې ثبوت د صحابه کرامو نه نقل شوو دعاګانو نه وي نو راکړئ او دغه شان د قرآن او حدیث نه هم جواب راکړئ.

المستفتي: نامعلوم.........

**الجواب:** (۱) (الف). احسان په هرمسلمان باندې ضروري ده چه د هغې تفسیر پیغمبر علیه السلام په (الاحسان ان تعبدالله كانک تراه فان لم تكن تراه فانه يراک ﴿۱﴾ ارشاد فرمائیلې دې. اودا مرتبه ذکر وفکرسره حاصلیږی نو ددین بزرګانو چه کوم اذکار اومراقبات منتخب کړی دی. د تجربې په بنا باندې یا د کشف په بنا باندې یا د ایمان د فراست په بنا باندې﴿۲﴾ نو په حقیقت کښې دا د مشق او ریاضت په طور سره منتحب شوې دي او دا په مبادي او معالجاتو کښې داخل دي چه هغې ته بدعت نه وئیلې کیږی. لکه چه د صیغو او ترکیبونو مشق کول وغیره دي. (صرح به الشاطبی)

﴿۱﴾ (صحیح البخاری ص ۱۲ جلد ۱ باب سوال جبریل النبی صلی الله علیه وسلم عن الایمان والاسلام والاحسان الخ)
﴿۲﴾ قال الملا علي قاری ان كشف العلم با لامور الشرعية خير من كشف العلم بالامور الكونيه...... ثم اعلم انه قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اتقوا فراسة المؤمن فانه ينظر بنور الله ثم قرء قوله تعالیٰ ان فی ذلک لآيات للمتوسمين ای المتفرسين رواه الترمذی من رواية ابی سعيد الخدری رضی الله عنه ومما ينبغی التنبيه عليه هنا ان الفراسة ثلاثة انواع فراسة ايمانية وسببها نور يقذفه الله تعالیٰ فی قلب عبده وحقيقتها انها خاطر يهجم على القلب ويثب عليه كوثوب الاسد على الفريسة ومنها اشتقاقها وهذه الفراسة على حسب قوة الايمان فمن كان اقویٰ ايماناً فهواحدّ فراسته قال ابو سليمان الدارانی الفراسة مكاشفة النفس و معاينة الغيب وهی من مقامات الايمان انتهی الخ. (شرح فقه الاكبر لملا علی قاری ص ۸۰ مايظهر من الخوارق على ايدی بعض الكفرة)



بې شکه دا په معالجت یا دوخت په مصلحت سره تعبیرکول صحیح دي.

(ب) واضحه دې وی چه په مقتضاء دحدیث ,,انا عندظن عبدی بی،، باندې صوفیائې کرام ریاضت او ذکر وفکر (مراقبې) سره دالله تعالی نه دخپل حسن ظن په بناء باندې واقعات معلوموی، چه دا په چا باندې حجت خونه شی کیدې، لیکن په دې کښې فوائد موجود دی داطمینان په مثل، ﴿۲﴾ (۲) په ریاضت، فراست او کشف سره خو ددې په عدم جواز باندې هیڅ دلیل نشته او په جواز ئې ډیر روایتونه موجود دي. د دیوبند ټول اکابرین ددې په جواز باندې قائل دي. ومن دلائل جوازه كان ابوهما صالحا﴿۴﴾ الآية. وقوله تعالى الحقنا بهم ذريتهم. ﴿۵﴾ وحديث اسالک بمحمد نبيک وحديث بحق السائلين عليک وحديث السؤال بصعاليك المهاجرين. ﴿٦﴾ فقط

## د صوفیاء کرامو د چلې ویستلو په جواز کښې هیڅ شک شبه نشته

**سوال:** علمائې دین او مفتیانِ دشرع متین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې مشائخ څلویښت ورځې چله اوباسي نو آیا دا چله ویستل جائز دي او ددې څه ثبوت شته دې؟

المستفتي: رحمت کریم قادریه غفوریه جنیدیه چشتیه نظامیه نوشهره ۱۹۲٦\۲\۱۹

﴿۱﴾ عن ابی هريرة قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم يقول الله تعالیٰ انا عند ظن عبدی بی و انا معه اذا ذكر نی فان ذكرنی فی نفسه ذكرته فی نفسی الخ متفق عليه. (مشكواة المصابيح ص ۱۹٦ جلد ۱ باب ذكر الله عزوجل والتقرب اليه)
﴿۲﴾ قال الامام ولی الله الدهلوی و اما كشف الوقائع المستقلة فطريقه ان يفرغ نفسه عن كل شیٔ الا انتظار معرفة هذه الواقعة فاذا انقطع عنه كل حديث و كا ن الانتظار كطلب الماء للعطشان جعل يربوا بنفسه زماناً بعد زمان الی الملأ الاعلیٰ او السافل بقدر استعداده و يتجرد اليهم فانه عن قريب ينكشف عليه الامر بهتف هاتف او روية واقعة فی اليقظة او رؤيا فی المنام. (القول الجميل للشاه ولی الله ص ۹۸ طريق كشف الوقائع المستقبلة)
﴿۳﴾ قال الملا علي قاری ان كشف العلم با لامور الشرعية خير من كشف العلم بالامور الكونيه...... ثم اعلم انه قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اتقوا فراسة المؤمن فانه ينظر بنور الله ثم قرء قوله تعالیٰ ان فی ذلک لآيات للمتوسمين ای المتفرسين رواه الترمذی من رواية ابی سعيد الخدری رضی الله عنه ومما ينبغی التنبيه عليه هنا ان الفراسة ثلاثة انواع فراسة ايمانية وسببها نور يقذفه الله تعالیٰ فی قلب عبده وحقيقتها انها خاطر يهجم على القلب ويثب عليه كوثوب الاسد على الفريسة ومنها اشتقاقها وهذه الفراسة على حسب قوة الايمان فمن كان اقویٰ ايماناً فهواحدّ فراسته قال ابو سليمان الدارانی الفراسة مكاشفة النفس و معاينة الغيب وهی من مقامات الايمان انتهی الخ. (شرح فقه الاكبر لملا علی قاری ص ۸۰ مايظهر من الخوارق على ايدی بعض الكفرة)
﴿۴﴾ (پاره: ۱٦ سورة كهف آيت: ۸۲) ﴿۵﴾ (پاره: ۲۷ سورة الطور آيت: ۲۱)
﴿٦﴾ اللهم انی اسئلک واتوجه اليک بنبينا محمد صلی الله علیه وسلم الخ الحديث رواه الطبرانی صغير و كبير والبيهقی وحديث ان النبی صلی الله علیه وسلم كان يستفتح بصعاليک المهاجرين رواه صاحب شرح السنة فی شرح السنة وقال الملا علی قاری فی شرح فقه الاكبر قلت قدورد ايضاً اللهم انی اسئلک بحق السائلين عليک وبحق ممشای اليک الخ. (شرح فقه الاكبر لملا علی قاری ص ۱۳۲ دعاء الكافر غير مستجاب)

**الجواب:** که د چلې ویستلو نه مقصد په خلوت کښې عبادت وي﴿۱﴾ او دا مقصد وي چه ځلوینښت ورځې پر له پسې کوم عبادت او کړې شي نو هغه زړه کښې ښه کیني او دا چله د طیباتو د تحریم عملي نه هم خالي وي نو ددې په جواز کښې هیڅ شک شبه نشته.

قال الله تعالیٰ لا تحرموا طیبات ما احل الله لکم ﴿۲﴾. ونظیره الخلاء فی غار حراء ﴿۳﴾ واعتکاف موسیٰ علیه السلام اربعین لیلة المروی بلا نکیر ﴿۴﴾ وقال علیه الصلاة والسلام من صلے لله اربعین یوما فی جماعة یدرک التکبیره الاولیٰ کتب له برآء تان براءة من النار وبراءة من النفاق. ﴿۵﴾ فقط

## د اسم ذات د ذکر په وخت کښې د شیخ تصور

**سوال:** که یو سړې خپل شیخ حاضر او ناظر خو نه ګڼړی لیکن د اسم ذات د ذکر کولو په وخت کښې ئې خپل ځان سره ناست تصور کوي نو آیا په دې کښې څه شرعي موانع شته؟ او د لږ وخت د پاره د شیخ تصور کولو سره د اسم ذات ذکر کول جائز دي؟

المستفتي: محمد یعقوب خان اندرون فتح پوري دروازه مظفر ګړه

**الجواب:** د شیخ تصور جائز دې خو چه د علاج په طور سره وی﴿۶﴾ او د ثواب په طریقې سره نه وی.

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری وفراسة ریاضیة وهی التی تحصل بالجوع والسهر والتخلی فان النفس اذا تجردت عن العوائق والعلائق بالخلائق صارلها من الفراسة والکشف بحسب تجردها.
(شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۸۰ ما یظهر من الخوارق علی ایدی بعض الکفرة)
﴿۲﴾(پ: ۷ سورة المائدة رکوع: ۲ آیت: ۸۷)
﴿۳﴾ عن عائشة ام المؤمنین رضی الله عنها انها قالت اول مابدئ به رسول الله ﷺ من الوحی الرؤیا الصالحة فی النوم فکان لایریٰ رؤیا الا جاء ت مثل فلق الصبح ثم حبب الیه الخلاء وکان یخلو بغار حرآء الخ. (صحیح البخاری ص ۲ جلد ۱ باب کیف کان بدؤ الوحی الی رسول الله ﷺ)
﴿۴﴾ قال الله تعالیٰ واذ وٰعدنا موسیٰ اربعین لیلةً ثم اتخذتم العجل من بعده وانتم ظلمون (پاره: ۱ سورة البقره آیت: ۵۱)
﴿۵﴾(ترمذی ص ۳۳ جلد ۱ باب فی فضل التکبیرة الاولیٰ ابواب الصلوٰة)
﴿۶﴾ قال الشیخ محمد بن عبد الله الخانی النقشبندی الحنفی، الرابطة وهی طریقة مستقلة للوصول وعبارة عن ربط القلب بالشیخ الواصل الی مقام المشاهدة المتحقق بالصفات الذاتیة وحفظ صورته فی الخیال ولو بغیبته فرؤیته بمقتضی الذین اذا رؤا ذکر الله تحصل بها الفائده کما تحصل من الذکر بموجب هم جلساء الله تعالیٰ ولا یخفیٰ ماورد من الاحادیث فی الحث علی الجلیس الصالح والشیخ کالمیزاب ینزل الفیض من بحره المحیط الی قلب المرید المرابط وان وجد الفتور فی الرابطة یحفظ صورة شیخه فی خیاله بموجب المرء مع من احب فیحفظ الصورة یتحقق ویتصف المرید باوصاف الشیخ واحواله التی له الخ. (کتاب البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۴۲ فصل فی طرق الوصول)



## د پیرئ مریدئ اثبات او د وظیفو مقدار

**سوال:** پیرئ مریدئ د کوم آیت یا حدیث نبوي نه ثابت دي؟ او د وظیفو د مقدار څه ثبوت دې؟

المستفتي: دار العلوم هاشمیه جم روډ قمبر آباد باړه پشاور ۱۹ ذي قعده ۱۴۰۳ھ

**جواب:** قد ثبت هذه البیعة بقوله تعالیٰ یا ایها النبی اذا جاءک المؤمنات یبایعنک الآیة ﴿۱﴾. وبقوله علیه السلام بایعونی علی ان لا تشرکوا الخ ﴿۲﴾ واصل التصوف حدیث ان تعبد الله کانک تراه ﴿۳﴾. وتعین العدد لتطیب خاطر المرید ولتعرف تاثیره بالتجربة ولیس هو امراً لازماً ونظیره مقدار الدواء واجزاء ه. ﴿۴﴾ فافهم

## د نامحرم پیر نه ښځې د پاره پرده کول ضروري دی

**سوال:** آیا د یوې زنانه د پاره د خپل پیر صاحب نه پرده کول ضروري دي؟

المستفتي: سیف الدین ایم اې سرائې نورنګ بنون.............. ۱۹۹۷ء

**الجواب:** پیر چه نامحرم وی نو د هغه نه پرده کول ضروري دي. ﴿۵﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾(پاره: ۲۸ سورة الممتحنة آیت: ۱۲)
﴿۲﴾ عن عبادة بن الصامت رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال وحوله عصابة من اصحابه بایعونی علی ان لا تشرکوا بالله شیئا ولا تسرقوا ولا تزنوا ...... فبایعناه علی ذلک. (صحیح البخاری ص ۷ جلد ۱ باب علامة الایمان حب الانصار)
﴿۳﴾(صحیح البخاری ص ۱۲ جلد ۱ باب سوال جبریل النبی ﷺ عن الایمان والاسلام والاحسان الخ)
﴿۴﴾ یدل علیه ما قال العلامه الوسی فی الکلام علی النسخ وحقیقته فقال وذلک یختلف باختلاف الاعصار والاشخاص کالدواء الذی تعالج به الادواء فان النافع فی عصر قد یضر فی غیره.
(تفسیر روح المعانی ص ۵۵۶ جلد ۱ سورة البقره آیت: ۱۰۶)
﴿۵﴾ قال الله تعالیٰ وقل للمؤمنات یغضضن من ابصارهن ویحفظن فروجهن ولا یبدین زینتهن الا ماظهر منها ولیضربن بخمرهن علی جیوبهن ولا یبدین زینتهن الا لبعولتهن او ءابآءهن او ءابآء بعولتهن او ابنآئهن او ابناء بعولتهن او اخوانهن او بنی اخوانهن او بنی اخوٰتهن او نسائهن او ما ملکت ایمانهن او التابعین غیر اولی الاربة من الرجال او الطفل الذین لم یظهروا علی عورٰت النساء الخ (سورة النور پاره: ۱۸ آیت: ۳۱)
قال المجدد الف ثانی المحبوب الصمدانی رحمة الله علیه مجیبا لمن سأله عن طریق التعلیم للنساء ان کانت المرأة محرما فای مانع والا فتجلس وراء الحجاب وتأخذ الطریقه. (البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۴۰ فصل فی بیان ما یتعلق بالاخذ والشروع)

## د بل چا مرید کولو د پاره خلافت او اجازت شرط نه دي البته د برکت باعث دي

**سوال:** آیا د یو سړي د خپل پیر د اجازت او خلافت نه بغیر د خلقو مرید کول جائز دي یا نه؟

المستفتي: محمد اشرف عاطف تلمبه ملتان..........۲۳ذي قعده ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** د چا د مرید کولو د صحیح والي د پاره اجازت او خلافت شرط نه دي البته د برکت حاصلولو د پاره خلافت او اجازت شرط دي او د اهمیت د پاره خپل ظن کافي نه دي بلکه د اهل فن اعتماد حاصلول ضروري دي. وهو الموفق

## په یوه سلسله کښې د بل مرشد نه بیعت کول برابره خبره ده چه د مرګ نه مخکښې وي او که پس وي

**سوال:** (۱) یو سړې د مثال په طور سلسله قادریه کښې د بل مُرشد سره بیعت کولې شي که نه؟ مُرشد په ژوند کښې هم د دې سلسله قادریه د بل مُرشد سره بیعت کولې شي که نه؟ (۲) آیا د اولني مُرشد د وفات نه پس دویم مرشد سره بیعت کولې شي؟ او که په دویمې سلسلې کښې وي نو بیا به څه حکم وي؟ (۳) د بعضې حضراتو خیال دې چه د طریقت نه بغیر ولایت نه حاصلیږي. آیا واقعي د ولایت د پاره بیعت شرط دې؟

المستفتي: حافظ نور الهادي محب بانډه مردان....۲ذي الحجه ۱۴۰۵

**الجواب:** (۱) جائز دي«۲» كما فى تنقيح الفتاوى الحامدية (۲) د صالحینو تعامل په دویم ځائې کښې بیعت کولو باندې شته دي برابره خبره ده که دې سلسلې کښې وي یا بله کښې وي. البته په یو وخت باندې د مختلفو سلسلو د اورادو مشق کول د بدن او د ماغو د صحت د پاره مُضر دي. (۳) بیعت مستحب امر

«۱» قال الشيخ محمد بن عبدالله الخانى النقشبندى عن الرازى رحمة الله عليه ولا يخفى ان من تصدر للمشيخة من غير اذن فما يفسده اكثر مما يصلحه وعليه اثم قاطع الطريق فانه بمعزل عن رتبة المريدين الصادقين فضلاً عن المشائخ العارفين الخ. (كتاب البهجة السنية فى اداب الطريقة النقشبنديه ص ۳۵ باب فى بيان المشيخة)

«۲» قال الشيخ محمدبن عبد الله الخالدى النقشبندى الحنفى وجوزوا التعددبل فى حياة الشيخ الاول اذرأى الطالب رشده فى موضع آخر يجوز له من غير انكار لشيخه الاول ان يذهب اليه ويأخذ عليه ويتخذه شيخا ثانياً. (البهجة السنية فى اداب الطريقة النقشبنديه ص ۳۰ باب فى بيان المشيخة)

وقال الامام ولى الله الدهلوى فاعلم ان تكرار البيعة من رسول الله ﷺ ماثور و كذالك عن الصوفية اما من الشخصين فان كان بظهور خلل فى من بايعه فلا بأس و كذالك بعد موته او غيبته المنقطعة واما بلا عذر فانه يشبه المتلاعب و يذهب بالبركة و يصرف قلوب الشيوخ عن تعهده. (القول الجميل ص ۲۹ حكمت تكرار بيعت)



البته د ولایت د حصول د پاره چه څومره ذریعې دي په هغې کښې دي«۱» شاهراه او کامیاب ذریعه هم دا ده.«۲» وهو الموفق

## په بیعت کښې د پیغمبر عليه السلام سره ملاؤول او د شیخ طریقت د پیژندګلو معیار

**سوال:** یو صاحب د تصوف او سلوک په موضوع باندې کتاب لیکلې دې او د شیخ طریقت متعلق د پیژندګلو په ذکر کښې ئې فرمائیلې دي چه د تصوف او سلوک منزلونو سرکولو د پاره، د (فنافي الرسول) مراقبه د بنیاد حیثیت لري او کوم شیخ چه دومره نشي کولې هغه یقیناً د شیخ طریقت کیدلو په اعتبار سره ناقص دې، (دلائل السلوک ص ۲۷، ۲٦) د خپل بیعت د طریقې متعلق فرمائي چه د دې ناچیز طریقه هم داده چه چرته م هم اول په خپل لاس باندې بیعت نه دې اخستلې صرف تعلیم ورکوم او اولني منزلونه سرکړم په دربارِ نبوي ﷺ کښې رسیدو سره د حضور ﷺ په لاس مبارك باندې بیعت کوي. او که څوك دعوی کونکې دربارِ نبوت ته رسیدل نه شي کولې بیا بیعت کوی. نو هغه د هو که باز دې، تپوس به ترې کیږي بس نبه پوهه شئ چه د کامل او ناقص دغه پیژندګلو ده. (دلائل السلوک ۲۷،۲٦) اوس سوال دادې چه آیا واقعي شیخ طریقت د پاره د مرید بیعت کول او د پیغمبر عليه السلام په لاس مبارک باندې کول دا د هغه د کامل کیدو نښه ده. ګنړي نو (العیاذ بالله) داسې پیر د هوکه باز دې نیولې کیږي به، او ناقص دې. آیا دا تصوف په کتاب او سنت باندې مبنی دې او په دې عقائدو او نظریاتو کښې د کتاب مصنف خپل ځان سلسله عالیه دیوبندیه سره منسلك کوی، نو آیا د عقیدې په دې انتساب کښې هغه صحیح دې؟

المستفتی: محمد الطاف ربانی دیوبندي خطیب جامع مسجد راوی روډ لاهور ۱۰ جمادي الثاني ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دې مؤلف چه د ارشاد او دعوت د پاره کوم شرط مقرر کړې دې هغه د ځان نه جوړ کړې شوې دې او بدعت دې دا اشتراط نه د قرآن او حدیث نه معلوم دې او نه د اجتماع او قیاس نه او نه صوفیائې عظامو دا شرط لګولې دې او دا

«۱» قال الامام ولى الله الدهلوى فاعلم ان البيعة سنة و ليست بواجبة لان الناس بايعوا النبى ﷺ و تقربوابها الى الله تعالىٰ ولم يدل دليل على تاثيم تاركها ولم ينكر احد من الائمة على انها ليست بواجبة. (القول الجميل ص ۱۹ الفصل الثانى)

«۲» قال الشيخ محمد بن عبد الله الخانى عن الشيخ عبد الوهاب الشعرانى قدس الله سره قال ولا شك ان علاج امراض الباطن من حب الدنيا والكبر والعجب والرياء والحقد والحسد والغل والنفاق كله واجب كما تشهد له الاحاديث الواردة فى تحريم هذه الامور والتوعد بالعقاب عليها فعلم ان كل من لم يتخذله شيخا يرشده الى الخروج عن هذه الصفات فهو عاص لله تعالىٰ ورسوله ﷺ لانه لا يهتدى لطريق العلاج بغير شيخ ولو حفظ الف كتاب فى العلم الخ. (كتاب البهجة السنية فى اداب الطريقة العلية النقشبنديه ص ۴ مقدمه)

مدعي په خپل کلام کښې متناقض هم دې. ده په کتاب کښې د کشف ډير مذمت بيان کړې او د هغې نه پس ئې دا خاص قسم کشف د کمال او ارشاد مدار ګرځولي دې. حقيقت دادې چه دا مدعي خدائې والا نه دې. ګيني نو په فناء او ترکِ دعوي سره به ښائسته وی. وهو الموفق

## د طريقت د مقاصدونه چه بې خبره پيروي د هغه نه لرې کيدل پکار دی

**سوال:** يو سړې خپل ځان ته اهل الله وائي. ذکر کولو وخت کښې وائي چه ماته بيت الله په نظر راځي مسجد نبوي په نظر راځي حضور ﷺ په نظر راځي دا سړې خلق هم بيعت کوي او وائي چه تاسو ټول د حضور ﷺ مريدان شولې او داهم وائي چه څه دخپل مريد شپږو مياشتو کښې دننه د پيغمبر علیه السلام سره ملاقات کوم او نه منونکو ته بدې ردې وائي. نو دداسې سړي څه حکم دې؟

المستفتي: خادم مسجد شاه فيصل ډيره اسماعيل خان.. ۲۴\صفر ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا سړې اهل الله نه دې. داسړې د بيعت او طريقت د مقاصدو﴿۱﴾ نه ډير لرې دې. د حق طلب کونکو دپاره دده نه ځان ساتل ضروري دي.
وهو الموفق

## د مرشد دوفات کيدلو د وجې نه د بل مرشد نه بيعت کول اود تعويذاتو او عملياتو کولو حکم

**سوال:** (۱) که يو سړې د چا سره بيعت کړې وي بيا هغه مُرشد وفات شي نو آيا هغه دبل مرشد نه بيعت کولې شي چه دده تکميل اوش؟ (۲) حزب البحر لوستل او د تعويذاتو او عملياتو څه حکم دې؟

المستفتي: نامعلوم.... ۲ربيع الاول ۱۴۰۲

**الجواب:** (۱) د صالحينو په نزد دامعروف دي چه هغوي د شيخ د وفات نه پس د

﴿۱﴾ قال غوث الاسلام والمسلمين شاه غلام علی عبد الله المجد دی پوشيده نيست که طريقه (عليه نقشبنديه) عبارت است از دوام توجه بقلب وکمهد أفياض واعتدال درنوافل عبادات وتوسط درترک مألوفات وتعمير اوقات باوراد واذکار که بحديث صحيح ثابت شده اند ودرين طريقه مقامات سلوک ازتوبه تامقام رضاباجمال معمول است وحاصل آن دوام حضور بذات الٰهی وانجذاب جبی روحی وذوق وشوق وجمعيت قلبی است واستغراق درمشهود خودموافق حديث شريف (الاحسان ان تعبدالله کانک تراه) وصف حال اين طريقه است۔ (مقامات مظهريه ص ۵ فصل اول درذکر طريقه نقشبنديه مجدديه)



بل شيخ نه تکميل کوي. ﴿۱﴾ (۲) د حزب البحر لوستل او تعويذونه او عمليات کول صحيح دي چه د ناجائز او شرکي کلماتو نه خالي وي. لحديث مسلم اعرضوا علي رقاکم لا باس بالرقي مالم يکن فيه شرک ﴿۲﴾ ولحديث عبدالله بن عمرو بن العاص رواه ابوداؤد. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## د جذبې راتلو وجوهات او د توجه د اثر د لرې کولو علاج

**سوال:** څمونږ کلي کښې يو سړې د يو پير صاحب نه بيعت کړې دې او اوس نور خلق هم بيعت کوي دجمعې په شپه په هيئت اجتماعي سره ذکر کوي او د ذکر په وخت کښې په هغوي باندې جذبه راځي په جمات کښې دانګې توپونه وهي. ددې څه حکم دې؟ اوددې اثر به څنګه ختم شي؟

المستفتي: ابو عاصم تجمل شاه متهه مغل خيل پشاور ۲ربيع الثاني ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** جذبه راتلل حق دي﴿۴﴾ ليکن د هغې د راتللو مختلف وجوهات دي﴿۱﴾ د اُلوهيت د عظمت تجلي راتلل (۲) د توجه په وجه باندې د سينې تنګوالي راتلل﴿۳﴾ په باطن کښې د شيطان د خول. نو دا جذباتي کيفت خامخا کمال ګڼړل د تصوف نه دعاري کيدو دليل دې

﴿۱﴾ قال الشيخ محمد بن عبد الله الخالدی النقشبندی وجوزوا التعدد بل فی حياة الشيخ الاول اذا رأي الطالب رشده في موضع آخر يجوز له من غير انکار لشيخه الاول ان يذهب اليه وياخذ عليه ويتخذه شيخا ثانياً. (البهجة السنية فی اداب الطريقه الخالديه النقشبنديه ص ۳۰ باب المشيخة وادابها) وقال الامام الدهلوی ان تکرار البيعة ......اما من الشخصين فان کان بظهور خلل فی من بايعه فلا بأس و کذلک بعد موته او غيبته المنقطعة. (القول الجميل ص ۲۹ تکرار البيعت)
﴿۲﴾ (مشکواة المصابيح ص ۳۸۸ جلد ۲ کتاب الطب والرقیٰ)
﴿۳﴾ (ابوداود ص ۱۸۷ جلد ۲ کيف الرقی کتاب الطب)
﴿۴﴾ جذبه بذات خود حق ده خو دا مغلوبيت دې کمال نه دې البته کله کله د سهو او هيرې پشان په کاملو خلقوهم راځي چه د بشريت شان ئې ظاهرشي لکه حضرت موسیٰ علیه السلام چه د تجلئ د عظمت په مشاهده کښې بې هوشه شوې وو. الله تعالی فرمائي. فلما تجلي ربه للجبل جعله دکا وخرموسی صعقا (الاعراف ع۱۷) او دغه شان صحابه کرامو ته عذاب قبر مستخصر شو نو آوازئې اوکړو. کما في صحيح البخاري ص ۱۸۴ جلد ۱ قام رسول الله ﷺ خطيبا فذکرفتنة القبر اللتي يفتتن فيها المرء فلما ذکر ذلک ضج المسلمون ضجة. او دارنګه زراره بن اوفي چه په مونځ کښې فاذا نقرفي الناقور، تلاوت اوکړو، نو وفات شو (کما في الترمذي في باب من وصف صلاة النبي علیه السلام با لليل قبل باب نزول الرب تبارک وتعالى الى السماء الدنيا کل ليلة. او فقهاء هم جذبې ته جائز وائي خو چه کله بې اختياره وي. کمافی الطحطاوی ص ۲۵۹ قبيل باب ما يفسد الصلاة. وفی مجمع الانهر عن التسهيل الوجد مراتب وبعضه يسلب الاختيار فلا وجه لمطلق الانکار وفي التتار خانيه مايدل على جوازه للمغلوب اللذی حرکاته کحرکات المرتعش انتهیٰ د ګوزن والا اندامونه بې اختياره حرکت کوي ليکن ددې حرکاتو ورته علم وي بعضې سلفو او خلفو په دې جذب او وجد انکار کړې لکه علامه آلوسی د وتقشعرمنه جلود الذين يخشون ربهم ثم تلين جلودهم وقلوبهم الي ذکرالله په تفسير کښې د حضرت اسماء، ابن عمر، قتاده، ابن جبير او ابن سيرين رضی الله عنهم نه انکار روايت کړې. روی عن عبدالله بن عروة بن الزبير قال قلت لجدتی اسماء [بقيه حاشيه په راروانه صفحه]

او د پوهه خلقو د بيعت نه د متنفره کولو ذريعه ده.

**نوټ:** په مجمعي کښې ناست کس چه کله، حسبنا الله ونعم الوكيل ولا حول ولا قوة الا بالله. او وائي نو دې سره د توجه اثر ختميږي لکه د سوره کهف اول ايتونه لوستلو سره چه د دجال اثر ختم کيږي. وهو الموفق

## د بيعت شرعي حيثيت او د ډاکټر اسرار بيعت د سمع او طاعت

**سوال:** (۱) د بيعت شرعي حيثيت څه دې؟ ددې څو قسمونه دی؟ (۲) د صحيح مسلم په حديث کښې چه وئيلې شوي دي چه کوم سړې د امير د بيعت نه بغير مړشو هغه د جاهليت په مرګ مړشو، نو په مو حوده وخت کښې ددې وعيد نه بچ کيدلو دپاره څه لاره ده؟ (۳) ډاکټر اسرار احمد صاحب (تنظيم اسلامي والا) چه کوم د سمع او طاعت بيعت اخلي آيا د قرآن او حديث په رڼا کښې ددې څه ګنجائش شته؟

المستفتي: عبد القدوس هاشمي لاله رخ واه کينټ... ۲۶ شوال ۱۴۰۵هـ

**الجواب:** (۱) د قرآن او حديث نه پنځه قسمه بيعت ثابت دي، بيعت علي الايمان، بيعت علي الجهاد، بيعت علي الخلافة، بيعت علي الهجرة او بيعت د ارشاد

[بقيه حاشيه] كيف كان يصنع اصحاب رسول الله ﷺ اذا قرء وا القرآن. قالت كانوا كما نعهم الله تدمع اعينهم وتقشعر جلودهم. قلت فان ناسا ههنا اذا سمعوا ذالك تاخذهم غشية قالت اعوذ بالله تعالىٰ من الشيطان (ص۲۵۹ جلد۲۳) سورة الزمر مكتبه رشيديه) او په صفحه ۲۲۰ جلد ۲۳ کښې فرمائي چه اسماء رضي الله عنها عبد الله بن زبير ته او وئيل لا تقعد معهم او هم په دغه صفحه د عبد الله بن عمر نه روايت کوي چه دده په خيټه کښې شيطان داخل شي. قال ابن عمر وقد رءى ساقطاء من سماع القرآن فقال انا نخشى الله تعالىٰ ومانسقط هؤلاء يدخل الشيطان فى جوفهم. او د قتاده نه روايت کوي. انما هذا ذهاب العقول والغشيان في اهل البدع وانما هو من الشيطان.. او د ابن سيرين نه روايت کوي چه بيننا وبين هؤلاء اللذين يصرعون عند قراءة القرآن ان يجعل احدهم على حائط باسطا رجليه ثم يقرء عليهم القرآن كله فان رمى بنفسه فهو صادق.

نو تحقيق دادې چه هغه وجد منکر دې چه په تکلف سره وي په قصد او اختيار سره وي او چل ول او دهوکه وي، د انبياء عليهم السلام عقلونه قوي او حوصلې لوئي وي او دغه شان د صحبت په برکت سره د صحابه کرامو رضي الله عنهم حوصلې هم لويې او عقلونه مضبوط وؤ نو د تجلياتو او برکاتو برداشت به ئې کولې شو او د صوفيائې کرامو حوصلې او عقلونه دومره لويې نه وي نو د تجلياتو او برکاتو برداشت او هضم نشي کولې نو ځکه پرې وجد او جذب راځي نو ددې وجې نه علامې آلوسي په روح المعاني صفحه ۲۲۰ جلد ۲۳ کښې فرمائي. ويقول مشائخهم ان ذلک لضعف القلوب عن تحمل الوارد وليس فاعلو ذلک في الكمال كالصحابة اهل الصدر الاول في قوة التحمل فما هو الا دليل النقص. او قاضي ثناء الله پاني پتي به تفسير مظهری جلد۸ سورة الزمر کښې فرمائي

قلت وجه طريان هذه الحالة كثرة نزول البركات والتجليات مع ضيق حوصلة الصوفى وضعف استعداده انتهى. (والتفصيل فى السلسله المباركه للشيخ محمد فريد دامت بر كاتهم) (از مرتب)



وهي في قوله تعالى يٰايها النبي اذا جاءک المؤمنات الاية﴿۱﴾. وفي حديث عبادة بن الصامت، رواه البخاري وغيره.﴿۲﴾ او دا مروجه بيعت وطريقت پنځم قسم دي. (۲) په دې حديث کښې دريم قسم مراد ددې د حق خليفه مقرر کول په واجبات عامه﴿۳﴾ کښې دي. (۳) کوم کس چه د ديندار وعلماء په نزد د اعتماد قابل نه وي او د صالحينو د صحبت او تربيت نه محروم وي نو د هغه سره بيعت کول د اهل فن د مزاج مخالفت بلکه د دين تباهي ده.﴿۴﴾

## په طريقت کښې قوالي، ډول سرنا او موسيقى اوريدل نشته

**سوال:** بعضې خودنما پيران خپل ځانونه د چشتيه طريقې سره منسلک ګڼړي او ددې دعوې باوجود قوالي او ډول سرناوالا مجلس مستحسن او د اجر او ثواب کار ګڼړي او کوم علماء کرام چه ددې خراب کار نه منکرين دي، په هغوي باندې سخت رد اعتراضونه کوي. نو آيا په يوه طريقه او شريعت کښې ددې قسم قوالئ او ډول سرنا اوريدلو د جواز څه شرعي دليل شته؟

المستفتي: محمد ثناء الله خان شبقدر چارسده....۱۹۷۸ء

**الجواب:** د احاديثو او فقهي عبارتونو نه د ډول سرنا حرمت د رڼړا ورځ پشان معلوم دي. البته امام غزالي رحمه الله وغيره په څو شرطونو سره د جواز طرفته ميلان کړيدې، او هغه شرطونه، په دې قواليانو کښې معدوم او مفقود دي، لهٰذا دې له جائز ګڼړونکو باندې د کفر سخته خطره موجود ده. د اخلق د خپلو بد معاشو او عياشو په وجې سره ددې بزرګانو په کلام سره پناه حاصلول غواړي،

﴿۱﴾ (پاره: ۲۸ سورة الممتحنة آيت: ۱۲)
﴿۲﴾ (صحيح البخاری ص۷ جلد ۱ باب علامة الايمان حب الانصار)
﴿۳﴾ قال الملا على قارى مسئله نصب الامام فقد اجمعوا على وجوب نصب الامام وانما الخلاف فى انه يجب على الله او على الخلق بدليل سمعى او عقلى فمذهب اهل السنة وعامة المعتزلة انه يجب على الخلق سمعا لقوله عليه الصلاة والسلام على ما اخرجه مسلم من حديث ابن عمر رضى الله عنهما بلفظ من مات بغير امام مات ميتة الجاهلية ولان الصحابة رضى الله عنهم جعلوا اهم المهمات نصب الامام حتى قدموه على دفنه عليه الصلاة والسلام ولان المسلمين لا بد لهم من امام يقوم بتنفيذ احكامهم الخ. (شرح فقه الاكبر للقارى ص ۱۴۶ ومنها مسئلة نصب الامام)
﴿۴﴾ قال العلامه حصكفى وعند اهل الحقيقة الجمع بين العلم والعمل لقول الحسن البصرى انما الفقيه المعرض عن الدنيا الزاهد فى الاخرة البصير بعيوب نفسه. قال ابن عابدين الزاهد فى الاخرة...... اقول ومثله فى الاحياء للامام الغزالى بزيادة حيث قال سال فرقد السنجى الحسن عن شى فاجابه فقال ان الفقهاء يخالفونک فقال الحسن ثكلتک امک وهل رأيت فقيهاً بعينک انما الفقيه الزاهد فى الدنيا الراغب فى الاخرة البصير بدينه المداوم على عبادة ربه الورع الكاف عن اعراض المسلمين العفيف عن اموالهم الناصح لجماعتهم. (الدر المختار مع رد المحتار ص۲۸ جلد۱ مقدمه) وفى البهجة السنية قال الرازى رحمه الله تعالىٰ ويجب على الطالب الصادق فى بدايته ان لا يصحب اكثر مدعى المشيخة فى هذا العصر البتة الا بظهورا مارات الصدق بالهام من الله تعالىٰ للطالب او بشهادة الصادقين من اهل الطريق لذلک الشيخ. (كتاب البهجة السنيه ص ۳۴ باب فى بيان المشيخة)

لیکن فقه حنفي ددې مستحل الرقص والغناء ته کافر وئیلي دي، ﴿۱﴾

## د بل پیر نه بیعت کول ممنوع نه دی

**سوال:** بنده د یو پیرنه بیعت کړیدي لیکن اوس په هغه کښې د سنتونه مخالف څه کارونه ښکاري نو آیا ځه دهغه سره بیعت ختم کړم او بل ځائې کښې بیعت کولې شم که نه؟

المستفتي:مولوی اختر زمان بنوں....۱۹۷۸ء۱۰۱۱۸۱

**الجواب:** د فقها او صوفیاء په نزد باندې بل ځائې کښې بیعت کول ممنوع نه دي.﴿۲﴾ او خاصکر چه د شرعي عُذر په وجې سره وي. کمافی تنقیح الفتاوي ص۳۶۹جلد۲. وهوالموفق

## د یو شاعِر په اشعارو کښې خپل پیر د پاره شرکي اوصاف بیانول

**سوال:** که یو شاعر د خپل پیر دپاره شرکیه اوصاف ثابت کړي او غلط شرکي اشعار وائي نو څه حکم دې؟

المستفتي:نامعلوم.....۱۹۷۸ء۱۰۱۱۸۱

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط سره په شرکیه اشعارو سره شاعر کافر کیږي او نکاح ئې ماتیږي.دده داصلاح کولو دپاره توبه کول ضروري دي او د همیشوالي په صورت کښې ورسره موالات پریخودل ضروري دي. فقط

﴿۱﴾قال ابن عابدین (قوله ومن یستحل الرقص قالوا بکفره)المرادبه التمائل والخفض والرفع بحرکات موزونة کما یفعله بعض من ینتسب الی التصوف وقد نقل فی البزازیه عن القرطبی اجماع الائمة علی حرمة هذاالغناء وضرب القضیب والرقص قال ورأیت فتویٰ شیخ الاسلام جلال الملة والدین الکرمانی ان مستحل هذا الرقص کافر وتمامه فی شرح الوهبانیة ونقل فی نور العین عن التمهید انه فاسق لا کافر ثم قال التحقیق القاطع للنزاع فی امرالرقص والسماع یستدعی تفصیلا ذکره فی عوارف المعارف واحیاء العلوم وخلاصته ما اجاب به العلامة النحریر ابن کمال باشا الخ.(ردالمحتار هامش الدر المختار ص۲۳۷ جلد ۳ قبیل باب البغاة مطلب فی مستحل الرقص)

﴿۲﴾قال الشیخ محمد بن عبد الله النقشبندی وجوزوا التعدد بل فی حیاة الشیخ الاول اذارأی الطالب رشده فی موضع آخر یجوزله من غیر انکار لشیخه الاول ان یذهب الیه ویاخذ علیه ویتخذه شیخاً ثانیاً ......فیجوزاستفادة التعلیم والصحبة مع مشایخ متعددة وینبغی ان یعلم ان الشیخ هو الذی یدل المرید علی الحق تعالیٰ واکثر ما یلاحظ هذاالمعنی واوضح فی تعلیم الطریقة وشیخ التعلیم استاد الشریعة ودلیل الطریقة الخ.(کتاب البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۳۰ باب فی بیان المشیخة وادابها)

﴿۳﴾فی الهندیه یکفر اذا وصف الله تعالیٰ بما لایلیق به او سخر باسم من اسمائه او بامر من اوامره اوانکروعده ووعیده اوجعل له شریکاً اوولداً او زوجة او نسبه الی الجهل او العجز اوالنقص. (فتاویٰ هندیه ص۲۵۸ جلد۲ باب موجبات الکفر منهامایتعلق بذات الله وصفاته)



## د مریدانو احوال معلومیدل او کشفیاتو سره متعلق متفرق کارونه او عملونه

**سوال:** بنده مولانا عبدالغفور مدني عباسي نه بیعت شوې دي او په خوب کښې درود وئیلو سره حبیب مصطفی ﷺ صدیق اکبر، عمر فاروق او علي مرتضی رضی الله عنهم د دیدار نه مشرف شویدې. دې ورځو کښې د حضرت مولانا عبدالسلام صاحب نه په سلسله قادریه کښې د خلافت نعمت حاصل شو، نو یوڅو مسئلې دي چه دهغې حل کول دي.(۱) ندائې محمد ﷺ په درود کښې جائزدې یا ناجائز.لکه څنګه چه دحاجی امداد الله صاحب وغیره په نعتیه کلام کښې دي.دغسې یامحمد، یارسول الله اود استمداد جواز څنګه دې؟ (۲) یا علي مشکل کُشا، ګنج بخش فیض عالم او یا سید غوث الاعظم وئیل جائز دي که نه؟ (۳) د مخلوق نه طمع او طلب د مدد کول، د خواهشاتو تابعداري کول یا د غیر الله نه طلب کول شرک دي که نه دي؟ (۴) دمشائخو توجه کول څنګه دی؟ (۵) دشیخ دتصورڅه حکم دې؟ (۶) ذکرسره دتصورنه جائزدې یا نه؟ (۷) دبعضې مشائخو دخپلو مریدانو داحوالونه خبریدل څنګه دی؟ (۸) علم غیب عطائی نه ذاتی، کشف قلبی کشف القبور بعطائې الهی شرك دې یا نه؟ (۹) دسنت مطابق کشفیاتو باندې عمل کول څنګه دی؟

المستفتي:شیخ محمد اسلم کریانه مرچنټ اکوړه ختک.....۲رجب۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په صلاة وسلام کښې د ندا والا کلماتو استعمال جائز دې چه دا نداء په دې عقیده باندې بناء وي چه فرشتې دا درود شریف پیغمبر ته رسوي، او داکلمات د نداء د حاضر ناظر په عقیدې سره استعمالول یا د علم غیب په عقیدې سره (چه دا غیرالله غیب دان دې) ښکاره شرک دې او ښکاره کفر دې.لکه څنګه چه د صحیح العقیده سړي دپاره د عشق او محبت په طور جائز او مباح دي. (۲) د صحیح العقیده سړي په کلام کښې تاویل کول ضروري دي او نور خلق خود کفر د تاویل نه بچ کولې نه شي.(۳) د تسلط غیبي په عقیدې سره مبني مدد طلب کول ښکاره شرک دې. (۴) ممکن او جائزدي﴿۱﴾ (۵) جائز دي او ډیر کرته مُضر کیږي هم. (۶) جائز دي﴿ ۲﴾ (۷) جزوي طور باندې کیږي کُلي طور نه کیږي. (۸) علمِ کُلي عطائي ښکاره شرک دې او کشف ممکن او جائز دي. (۹) چه دشریعت سره متصادم نه وي نو جائز دي. ﴿۳﴾

**نوټ:** دامسئلې تفصیل غواړي،نوکه دتفصیل ضرورت وي نوصرف یو سوال راولیږه وهوالموفق

﴿۱﴾قال الامام ولی الله الدهلوی فالتا ثیر فی الطالب ان یتوجه الشیخ الی نفسه الناطقة و یصاد مها با لهمة التامة القویة ثم یستغرق فی نسبة با لجمعیة و هذا بعد ان تکون نفس الشیخ حاملة لنسبة من نسب القوم و کانت ملکة راسخة فیها فتنتقل نسبته الی الطالب علی حسب استعداده و منهم من یشوب بهذا التوجه الذکر والضرب علی قلب الطالب واذا غاب الطالب فانهم یتخیلون صورته و یتوجهون الیها . (القول الجمیل ص۹۴ توجه دادن)

﴿۲﴾قال العلامه شکارپوری و اذا غاب الشیخ عنه یخیل صورته فی خیاله بوصف المحبة والتعظیم فانه یفید فائدة صحبة . (قطب الارشاد ص ۵۵۸ الشغل العاشر)

﴿۳﴾قال ملاعلی قاری و لذا لم یعتبر احد من الفقهاء جواز العمل فی الفروع الفقهیة بما یظهر للصوفیة من الامور الکشفیة او من حالات المنامیة . (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص ۳۵۸ جلد ۹ کتاب الفتن)

## د غوث، قطب او ابدال وضاحت او د تصرف مطلب

**سوال:** بعضي خلق وائي چه فلانکي سړي د فلانکئ علاقې متصرف دي، څوک وائي چه فلانکي سړي د غرونو متصرف دي. ددې څه مطلب دې؟ دغسې غوث، قطب، ابدال په مخکښې امتونو کښې هم وو یا دا شرف صرف دې امت ته حاصل دې و ضاحت اوکړئ؟

المستفتي: محمد اصغر صده کوهاټ....یکم رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د پیغمبرانو علیهم السلام نه پس د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه مرتبه ده که هغه غوث او قطب نه وی نو په دنیا کښې به بل څوک غوث او قطب څنګه شي او هغه نه د دنیا متصرف وو او نه د علاقې، دا غوث او قطب اصطلاحي الفاظ دي(۱) او د اولیاء الله، د مختلفو درجو عنوانات دي او دا خلق تصرف اصطلاحي (په قوت ارادي سره انقلاب راوړل) کوي(۲) لیکن وما تشاؤن الا ان یشاء الله او انک لا تهدي من احببت ولکن الخ، الاية. باندې نظر ساتل هم ضروري دي. وهو الموفق

## د مراقبې په حالت کښې د حضور ﷺ سره ملاقات کول او په حکم باندې د عمل کولو شرعي حیثیت

**سوال:** مفتیان حضرات دې باره کښې څه فرمائي چه یوه زنانه ده تهجد ګزاره ورځ شپه د الله تعالی په عبادت مشغوله وی، خو عالمه نه ده، هغه فرمائي چه کله څه څه توجه او کړم نو په مراقبه کښې د پیغمبر علیه السلام د دیدار نه مشرف شم، او باقاعده د پیغمبر علیه السلام سره د سوال او جواب سلسله جاري وي. دا زنانه صاحب نصاب نه ده بلکه ډیر د غربت ژوند تیروي، تیر شوي غټ اختر کښې ئې وئیل چه ما ته پیغمبر علیه السلام د مراقبې په حالت کښې اوفرمائیل چه د اختر په موقع کښې دوه څاروی ذبحه کړه او د زید، عمر، بکر، په نوم سره قرباني ورکړه، اوس سوال دادې چه ددې غربت په حالت کښې دې دپاره قرباني کول صحیح

(۱) قال الشیخ محمد زاهد بن الشیخ حسن الدوزجوی قال السید الغوث هو القطب حین ما یلتجا الیه ولا یسمیٰ فی غیر ذلک الوقت غوثا آه والقطب عبارة عن الواحد الذی هو موضع نظر الله فی کل زمان اعطاه الطلسم الاعظم من لدنه بیده قسطاس الفیض الاعم وزنه یتبع علمه وعلمه یتبع الحق وعلم الحق یتبع الماهیات الغیر المجعولة فهو یفیض روح الحیات علی الکون الاعلیٰ والاسفل. (ارغام المرید فی شرح النظم العتید ص ۵۶)
وقال الملا علی قاری قلت مهم الاقطاب فی الاقطار یاخذون الفیض من قطب الاقطاب المسمیٰ بالغوث الاعظم فهم بمنزلة الوزرا تحت حکم الوزیر الاعظم. (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص ۳۵۵ جلد ۹ کتاب الفتن)
(۲) پوهه شه چه توجه، تصرف او تاثیر یو داسې څیز دې چه صرف نفساني کمال دې نه کرامت دې اونه په تصوف کښې داخل دې دا کافر او فاسق هم کولې شي د توجه حکم پشان د وسلې دې چه د جائز مقصد دپاره جائز او ناجائز دپاره ناجائز د توجه، حقیقت په قوت ارادي سره یو کار کول دې پیغمبر علیه السلام فرمائي. ان من عباد الله من لو اقسم علی الله لابره. رواه البخاری. یعنې بعضې د الله بندګان قوت ارادي او همت والا دې چه الله تعالی ئې په خپله اراده کښې نه نامراده کوي. او په حدیث قدسي کښې فرمائي: انا عند ظن عبدی بی رواه الشیخان الخ (سلسله مبارکه ص ۱۷۴ للشیخ محمد فرید دامت برکاتهم)



دي یا نه؟ واجب به وي که نفل؟ ددینه علاوه آیا هر وخت دا زنانه په مراقبه کښې د پیغمبر علیه السلام دیدار کولې شي او که نه؟ او د ملاقات په وخت کښې رسول الله ﷺ نه وظیفې اخستلې شي او بیا زید، عمر، بکر ته رسول صحیح دي که نه؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتي: الحاج محمد قاسم صاحب صدر منتظمه کمیټي
مدني جامع مسجد نوشهره صدر. ۲۳صفر ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** د مراقبې په حالت کښې په توجه سره د رسول الله ملاقات د اولیاء الله او اعداء الله دواړو دپاره ممکن نه بلکه واقع دي. لیکن دې حالت کښې چه د رسول ﷺ کوم کلام واوریدلې شي دهغې قانون دادې که دا کلام د قرآن او حدیث سره تضاد ساتي نو په هغې به عمل نه کیږي دا په الهام او کشف کښې داخل دې دهغې پشان معامله به ورسره کیږي او که ددې کلام د قرآن او حدیث سره تضاد نه وي نو په هغې عمل کول نه مطلوب شرعي دي. او نه ممنوع شرعي دي. (۱) لهذا ددې ضابط په بنیاد باندې دا زنا نه اختیاري قرباني کولې شي واجب پرې نه ده. وهو الموفق

## په مونځ کښې جذبه راتلل او د قوتِ حافظې د پاره وظیفه

**سوال:** بعضي خلق د مراقبې په دوران کښې په جذبه کښې راشي او دریږي او کله کله د جذبې په حالت کښې داسې ژبه وائي چه هیڅوک پرې نه پوهیږي نه پیر او نه مرید. او بعضې کسان د مونځ په حالت ټوپونه وهي. ددې باره کښې شرعي حکم څه دې؟ دارنګې د قوتِ حافظې دپاره او د مطالعې جاري کیدلو دپاره څه وظیفه اوښایئ؟

المستفتي: شیرزمان دارالعلوم نظامیه عیدک میرعلي وزیرستان ۴ربیع الاول ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** په جذب صادق او جذب کاذب کښې هر صاحب قلب فرق کولې شي دداسې جذباتو نه امان غوښتل پکار دي چه په مونځ او عبادت کښې رکاوټ پیدا کړي. او د علم د حاصلولو او مطالعې جاری کولو دپاره د ماسخوتن د مونځ نه پس ۲۱ ځلې سورة کوثر لوله. وهو الموفق.

## الصلوة والسلام علیك یارسول الله د حضرت خواجه عبدالمالك صاحب رحمه الله ښودلې شوې وظیفه نه ده

**سوال:** بنده ته پیر عبدالمالک صاحب دا وظیفه ښودلې وه، الصلوة والسلام

(۱) قال العلامه شیخ احمد الفاروقی المجدد الف ثانی، الهام مثبت حل وحرمت نه بود وکشف ارباب باطن اثبات فرض وسنت نمی نماید ولایت خاصه یا عامه در تقلید مجتهدان برابر اند کشوف والهامات ایشان را مزیت نمی بخشند. (مکتوبات امام ربانی ص ۱۵۵ جلد ۲ مکتو
(۲) قال العلامه سید احمد الطحطاوی الوجد مراتب وبعضه یسلب الاختیار فلا وجه لمطلق الانکار وفی التتارخانیه م جوازه للمغلوب الذی حرکته کحرکات المرتعش. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۱۷۳ جلد ۱ قبیل باب ما یفسد

علیک یارسول الله چه په ورځ شپه کښې ۳۱۳ ځلې لوله د اتلسو کالو نه د بنده دا وظیفه ده اوس یو مولوی صاحب وائی چه دا خو مشرکانه وظیفه ده یعني صحیح نه ده. او دا تاته د شرک تعلیم درکوي نو آیا د مولوي صاحب خبره صحیح ده او که د پیر صاحب مرحوم والا خبره صحیح ده؟

المستفتي: عبدالرحیم نقشبندي شاهي آباد کالوني اورنګي ټاؤن کراچي نمبر ۱۴ـ ۱۰ ربیع الاول ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** دا وظیفه د حضرت صاحب ښودلې شوې وظیفه نه ده او که درود په دې نیت او عقیدې سره اووئیلې شي چه فرښتې ئې ورته رسوي ﴿۱﴾ نو شرک نه دې او که د علم غیب او حاضر ناظر په عقیدې سره وي نو شرک دې. وهو الموفق

## د بریلوي پیرنه بیعت او د یا مصطفي مشکل کشا الغیاث..الخ وظیفه

**سوال:** که یو کس د یو پیر صاحب نه وظیفه واخلي بیا ورته معلومه شي چه دا پیر د بریلیانو عقیدې والا دې نو د بل پیر نه وظیفه اخستل صحیح دي یا نه؟ (۲) یا مصطفي مشکل کشا، الغیاث یا رسول الله اغثنا یا حبیب الله. دا وظیفه کول څنګه دي؟

المستفتي: عبدالله مهاجر مدرسه منبع العلوم
لا لحاج جلال الدین حقانی میران شاه ۱۲ صفر ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** (۱) داسې مرید باندې ضروری ده چه بغیر د اجازت نه لاړ شي او د بل صحیح العقیده پیرنه بیعت او کړی، چه په علم او عمل کښې ترقي نصیب شي. ﴿۲﴾ (۲) خواص ئې په تاویل باندې خبروي د هغوي د پاره دا وظیفه جائز ده او د عوامو د پاره زهر قاتل دي. وهو الموفق

## په کوه طور باندې د موسی علیه السلام د بې هوشۍ نه د جذبې استدلال او په جمات کښې د جذبې حکم

**سوال:** بعضې خلق په جمات کښې د ذکر کولو په وخت کښې امام صاحب خلقو

﴿۱﴾ عن ابن مسعود قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان لله ملائکة سیاحین فی الارض یبلغونی من امتی السلام. (رواه النسائی والدارمی.(مشکواة المصابیح ص ۸۶ جلد ۱ باب الصلوٰة علی النبی صلی الله علیه وسلم)

﴿۲﴾ قال الامام ولی الله الدهلوی ان الغرض من البیعة امره با لمعروف و نهیه عن المنکر وارشاده الی تحصیل السکینة لباطنة و ازالة الرذائل واکتساب الحمائد ثم امتثال المسترشد به فی کل ذلک فمن لم یکن عالما کیف یتصور منه هذا. (القول الجمیل ص ۲۲ شرائط البیعت)



ته متوجه شي او په مخاطبینو باندې جذبه راولي او د جذبې په وخت کښې جمات کښې ټوپونه وښي او ډډې پکښې بدلوي او دلیل د حضرت موسی علیه السلام حالت پیش کوي چه وخر موسی صعقا الایة، آیا په جمات کښې د شور غوبل او چغو وهلو څه جواز شته؟

المستفتي: اهالیان بانډه اربابان اسماعیل خیل نوشهره ۱۱/۷/۱۱ ۱۴۰ھ

**الجواب:** په جمات کښې ټوپونه وهل او چغې وهل ناجائز کارونه دي او دا د جمات توهین دې. او د طریقت نه متنفره کول دي. موسی علیه السلام په صحرا کښې د الله تعالی د عظمت په وجه سره بې هوشه شوې وو، او دا خلق او د دوي پیران د دې عظمت لائق نه دی، دوی بې هوشه کیږی نه. ﴿۱﴾ او که بې هوشه وي نو د بې هوشۍ په حالت کښې نه او د س باقي پاتې کیږي او نه مونځ صحیح کیږي. ﴿۲﴾ او دا عجیبه خلق دي چه په صحرا کښې پرې جذبه نه راځي او د خلقو مخې ته پرې راځي. وهو الموفق

## جاهلانو او د اتباع سنت نه محرومه خلقو باندې جذبې راتلل د طریقت نه نفرت پیدا کول دي

**سوال:** څمونږ ځائې کښې یو فرقه پیدا شوې ده چه ډیر په زوره سره ذکر کوی او رقص کوی، سانتیۍ اړوی عوام ورته جذبه وائي د دې شرعاً څه حکم دې؟

المستفتي: عظیم الدین تنګي چارسده.....۱۷/۶/۱۱ ۱۴۰ھ

**الجواب:** جذبه راتلل حق دي لیکن دا کمال ګڼړل ناحق دي کومو خلقو سره چه علم دین نه وي د قرآن په لوستلو باندې په جذبه کښې نه راځي د اتباع سنت نه محروم وي ﴿۳﴾ نو د هغوي جذبه راتلل د طریقت نه نفرت پیدا کولو والا ده. اعاذنا الله تعالی عنه، وهو الموفق.

﴿۱﴾ قال العلامه آلوسی، عن ابن عمر وقد رأی ساقطا من سماع القرآن فقال انا لنخشی الله تعالیٰ وما نسقط. هؤلاء یدخل الشیطان فی جوف احدهم ......هذا نعت اولیاء الله تعالیٰ قال تقشعر جلودهم وتبکی اعینهم وتطمئن قلوبهم الی ذکر الله تعالیٰ ولم ینعتهم الله سبحانه بذهاب عقولهم والغشیان علیهم انما هذا فی اهل البدع وانما هو من الشیطان. واخرج بن ابی شیبه عن ابن جبیر قال الصعقة من الشیطان وقال ابن سیرین بیننا وبین هؤلاء الذین یصرعون عند قراءة القرآن ان یجعل احدهم علی حائط باسطا رجلیه ثم یقرأ علیهم القرآن کله فان رمیٰ بنفسه فهو صادق. (روح المعانی ص ۳۸۴ جلد ۱۳ سورة الزمر آیت: ۲۳)

﴿۲﴾ قال الحصکفی وینقضه اغماء ومنه الغشی. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۰۶ جلد ۱ باب نواقض الوضوء)

﴿۳﴾ قال الامام رازی رحمه الله وقد اجمعوا علی ان کل حقیقة ردتها الشریعة فهی زندقة وان الشریعة حق العبودیة والحقیقة هی حقیقة العبودیة وکل من صار من اهل الحقیقة وجب علیه التقید بحق العبودیة وحقیقتها وصار مطالبا باداب زائدة لیست علی غیره وکل من خلع من عنقه ربقة التکلیف خامر باطنه الزیغ والتحریف وقد کان الجنید رضی الله عنه یقول لا تلتفتوا قط لشخص ولو تربع فی الهواء الا ان رأیتموه تقید بالشریعة امراً ونهیا. (البهجة السنیه فی اداب طریقة النقشبندیه ص ۳۵ قبیل کتاب الاذکار)

## د مودودیانو په جماعت کښې داخلیدو والا مُرید سره مصلحتاً تعلق ختمولې شي

**سوال:** که یو مرید د بیعت کولو نه پس په مودودي جماعت کښې شمولیت اختیار کړي او خپلې ټولې همدردئ د جماعت دپاره وقف کړي نو داسې کس باره کښې ستاسو څه ارشاد دې. آیا دغه دا طریقه کار خو به د بیعت نه خلاف نه وي ځکه چه ټول اکابر آمت او رباني علماء خاص طور سره شیخ الاسلام سیدحسین احمد مدني او حضرت مولانا محمد زکریا صاحب ددې جماعت سخت مخالف وو چه په هغې باندې د هغوي رسالې او مکتوبات ګواه دي. جواب راکړئ؟

المستفتي: محمد صادق کهلابټ ټاؤن شپ هري پور.... ۲۱ محرم ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په مودودي جماعت کښې داخلیدلو سره بیعت نه ماتیږي البته چه پیر او مرشد کله دداسې کس د اصلاح نه مایوسه شي نو د مصلحت دپاره ورسره بیعت ختمول پکار دي. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د نقباء، ابدال، عمد، غوث وغیره تشریح او ثبوت

**سوال:** علمائې دین د ې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه مولانا محمد ایوب پشاوري د خپل کتاب (حلیة الاولیاء) په صفحه ۱۵ باندې لیکي.

وعن الکنانی النقباء ثلثمائة والنجباء سبعون والبدلاء اربعون والاخیار سبعة والعمد اربعة والغوث واحد مسکن النقباء المغرب ومسکن النجباء مصر ومسکن ابدال الشام والاخیار سیاحون فی الارض والعمد فی زوایا الارض ومسکن الغوث مکه۔

دې مسئلې باره کښې ستاسو حضراتو څه رائې ده ؟.

المستفتي: مولوي عبد الحق اکبر پوره نوشهره... ۱۶ نومبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** په احادیثو کښې د اولیاؤ او ابدالو الفاظ راغلي دي نور الفاظ علماؤ

---

﴿۱﴾ قال الشیخ محمد بن عبد الله الخانی النقشبندی انه یجب علی الشیخ اذا علم ان حرمته سقطت من قلب مرید ان یطرده من منزله سیاسة فانه من اکبر الاعداء و کذلک یجب علی الشیخ ان یشغل المرید بظواهر الشریعة وطریق العبادة......وینبغی للشیخ ان لا یغفل عن ارشاد المرید الیٰ مافیه صلاحه فیأمره ان یغلق الباب بینه وبین بقیة من عنده من اولاده فانه ما علی المرید اضر من صحبة الضد. (البهجة السنیة فی [illegible]اب الطریقة النقشبندیه ص ۳۴ باب فی بیان المشیخة)



جوړ کړي دي او په دیکښې چه کوم یو لقب یا ډیوټي د نصوصو سره متصادم نه وي نو دغې په تسلیمولو کښې څه حرج نشته ﴿۱﴾ لاکن هذا الکلام المسطور فی الاستفتاء لایخلو من نظر لان مولانا عبدالقادر الجیلانی قدس سره کان یسکن في بغداد الی آخر حیاته وکان عند اهل الفن غوثا وقطبا. فافهم

## بیعت او سلوک او طلب فیض د اولیاؤ نه او وسیله او دعا وغیره

**سوال:** (۱) چند مسائل تحت بحث علمائے افغانستان بودند لهٰذا حل مطلب نمائیم، الاول حکم طریقت یا بیعت چیست که برائے مردم توسط شیخ تلقین میگردد۔ ویا به اصطلاح مرید میشوند مشروع است یا نه؟ (۲) طلب نمودن فیض از ادله واولیاء الله را وسیله ساختن به خداوند چه حکم دارد۔ (۳) دعا نمودن به حرمت انبیاء واولیاء جواز دارد یا نه۔

المستفتی: عبدالله صاحب افغان مهاجر پشاور شهر...... یکم رشعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** (۱) مریدی عبارت است از بیعت شدن ومشروعیت آں ثابت است از آیت یا ایها النبی اذا جاءک المؤمنات یبایعنک الآیة ﴿۲﴾ (سورة الممتحنه) واز حدیث عبادة بن صامت رواه البخاری فی کتاب الایمان ﴿۳﴾ وکفی بالتعامل اصلاً ودلیلاً ۔ (۲) استفاضه اہل از اہل جائز بلکه واقع است لاکن به نحیکه اہل فن متعین کرده اند۔ ﴿۴﴾ (۳) جائز است بلاشک وشبهه ۔ ﴿۵﴾

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: حدیث الابدال من الاولیاء له طرق عن انس مرفوعاً بالفاظ مختلفة کلها ضعیفة ذکره ابن الدیبع وعن ابن الصلاح اقوی ما روینا فی الابدال قول علی انه بالشام یکون الابدال واما الادباء والنجباء والنقباء فقد ذکرها بعض مشائخ الطریقة ولا یثبت ذلک قلت قال الزرکشی فی مسند احمد من حدیث عبادة ابن الصامت مرفوعا الابدال فی هذه الامة ثلاثون مثل ابراهیم خلیل الرحمن کلما مات رجل ابدل الله مکانه رجلاً وهو حسن وله شاهد من حدیث ابن مسعود فی الحلیة. (الموضوعات الکبریٰ للقاری ص ۴۸ رقم حدیث ۔ ۱۴۵)

﴿۲﴾ (پاره : ۲۸ سورة الممتحنه آیت : ۱۲)

﴿۳﴾ عن عبادة بن الصامت رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال وحوله عصابة من اصحابه بایعونی علی ان لا تشرکوا بالله شیئا ولا تسرقوا ولا تزنوا ولا تقتلوا اولادکم ولا تأتوا ببهتان تفترونه بین ایدیکم وارجلکم ولا تعصوا فی معروف فمن وفی منکم فاجره علی الله .....فبایعناه علی ذلک .
(صحیح البخاری ص ۷ جلد ۱ باب علامة الایمان حب الانصار کتاب الایمان)

﴿۴﴾ قال العارف عبد الغنی النابلسی قدس سره فی شرح ابن الفارض قدس سره ما یتحیله السالک من معانی تجلیات الحضرة الالهیة وقت حضوره معها بها لا بنفسه انما یکون من المرشد الکامل بطریق التوجه الربانی والامداد الرحمانی فتارة یاتی بالالقاء الالهامی من القلب الی القلب مع صدق الحال وتارة یاتی بتقریر العبارات وتبیین الاشارات وتارة بالباس خرقة الصوفیة المشهورة وشرطها..... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## غوث، قطب، او ابدال د بندګئ او عبدیت درجې دی د الوهیت نه دی

**سوال:** په تصوف کښې چه کوم د غوث، قطب او ابدال اصطلاحات دي، دا د کوم ځائې نه ثابت دي او د کومې زمانې نه شروع شوې دي. ددې مرتبو تفصیل اوکړئ.
المستفتي: محمد شعیب دار العلوم عربیه ګجرات مردان ۲۰ شوال ۱۴۰۳۱ه

**الجواب:** د اولیاؤ وجود د قرآن او احادیثو نه ثابت دې﴿۱﴾ او د ابدال وجود صرف د احادیثو نه ثابت دې. اخرجها احمد وابن عساکر. البته نور الفاظ قطب، غوث وغیره د علماء راسخینو د کلام نه معلوم شوې دي. ﴿۲﴾ خو بهر حال دا د بندګئ او عبدیت درجې دي نه دا چه د الوهیت، او ربوبیت او قیومیت منصبونه دي. وهو الموفق

## د مولوي الله یار خان چکړالوي اختراعي او من ګهړت طریقت!

**سوال:** محترم العلامه مولانا شیخ الحدیث مفتي اعظم محمد فرید صاحب دامت برکاتکم!

---

(بقیه حاشیه) کمال الصدق من الطرفین فیسری الحال الصادق با مر الله تعالیٰ فی المرید الصادق وتارة ینظر الشیخ الصادق من قوله ﷺ حکایة عن ربه کنت بصره الذی یبصر به فی الحدیث المشروط بالتقرب بالنوافل الخ. (البهجة السنية فی اداب الطریقه النقشبندیه ص ۴۲ فصل کتاب الاذکار)

﴿۵﴾ قال ابن عابدین یراد بالحق الحرمة والعظمة فیکون من باب الوسیله وقد قال الله تعالیٰ وابتغوا الیه الوسیلة وقد عد من اداب الدعاء التوسل علی ما فی الحصن وجاء فی روایة اللهم انی اسألک بحق السائلین علیک وبحق ممشای الیک فانی لم اخرج اشرا ولا بطراً الحدیث. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۸۱ جلد ۵ فصل فی البیع کتاب الحظر والاباحة)

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ الآان اولیاء الله لا خوف علیهم ولاهم یحزنون. الذین آمنوا وکانوا یتقون. (سورة یونس آیت: ۶۲، ۶۳ پاره: ۱۱) وقال الله تعالیٰ وما کانوا اولیاءه. ان اولیاءه الا المتقون ولکن اکثرهم لایعلمون. (پاره: ۹ سورة الانفال ع: ۱۸ آیت: ۳۴)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری الابدال من الاولیاء (الحدیث) له طرق عن انس مرفوعا بالفاظ مختلفة کلها ضعیفة ذکره ابن الدبیع. وعن ابن الصلاح: اقویٰ ماروینا فی الابدال قول علی انه بالشام یکون الابدال واما الادباء والنجباء والنقباء فقد ذکرها بعض مشائخ الطریقة ولایثبت ذلک. قلت وقال الزرکشی فی مسند احمد من حدیث عبادة بن الصامت مرفوعا الابدال فی هذه الامة ثلاثون مثل ابراهیم خلیل الرحمن کلما مات رجل ابدل الله مکانه رجلاً. (کشف الخفاء ص ۲۴ جلد ۱ مسند احمد ص ۳۲۲ جلد ۵) وهو حسن وله شاهد من حدیث ابن مسعود فی الحلیة. قال السیوطی وله شواهد کثیره بنیتها فی التعقبات علی الموضوعات، ثم افردتها بتالیف مستقل. (الموضوعات الکبریٰ للقاری ص ۴۸ رقم حدیث: ۱۴۵)



مولوي الله یار خان چکړالوي یو مولوي صاحب دې چه د تصوف په یوه خاصه طریقه باندې چلیږي. او د هغه څه اتباع کونکي ځمونږ په وطن کښې موجود دي، دده د بیعت طریقه دا ده چه عام طور سره دده په بیعت کښې زنانه او ماشومان ټول داخلیدلې شي، او چه کله داخل شي نو په هغه ورځ یا په دویمه ورځ دا دعوي کوي چه ماته دومره کشف ملاؤ شوې چه ماته د هر سړي حالات معلومیږئ او خلقو ته وائي چه فلانکي سړې په دوزخ کښې دې او فلانکې په جنت کښې دې. او بعضو ته وائي چه څوک هم ځمونږ په طریقې کښې راشي مونږ ئې بالذات د رسول الله ﷺ سره ملاوهو، او هر سړې هم چه په دیکښې داخل شو په هغه ورځ خلیفه مجاز جوړیږي. او ټولې هغه خبرې کوي کومې چه اصل خلیفه کوي. مولوي الله یار خان په خپل تصنیف کښې وائي چه کوم پیر څوک رسول الله ﷺ ته نشي رسولې هغه پیر ډاکو دې. (دلائل السلوك ص ۴۸۱۴۷) په هغوي کښې بعضې متبعین وائي چه مونږ ته په مراقبه کښې ټول انسانان د خنزیرانو، سپو، او لومبړو وغیره په شکل کښې معلومیږي. او بعضې خلق په هغوي کښې داسې وائي چه د روح اصل شکل هغه دې چه کوم د مرګ نه روستو ورکولې کیږي. او هغه شکل مونږه اوس وینو او په نظره راځي.، او دا هم وائي! چه فلانکي مړي ته ما تعلیم ورکړو او د هغه لطائف مي منور کړل نو د هغه دباره په عذاب کښې تخفیف یعني اساني او شوه، او دا وائي چه مونږ کله هم او غواړو، د مړو، فرښتو، روحونو او ژوندو سره هم سره دلرې والی نه خبرې کولې شو. او په دوي کښې دا هم دي. چه کوم سړې زمونږ په حلقه کښې نوې داخل شي نو داخلق د ژوب (بلوچستان) نه آواز کوي، الله یارخان! او الله یارخان د چکړاله نه جواب ورکوي، چه دا سړې مارسول پاک ﷺ ته پیش کړو، بس دې داخل کړئ، او چه کله یو سړی ته دعوت ورکوي نو مقبرې ته ئې بوځي او د برزخ عذاب وغیره ورته اوښائي نو هغه چه دا کارونه اووینې نو مجبور شي او داخل شي. او په هغوي کښې چه کوم کسان د تلاوت قابل دي هغوي وائي چه مونږ په لوح محفوظ کښې تلاوت کوو. ځکه چه دې قرآن کښې کله کله غلطې هم کیږي نو مونږ ته بیا وئیلو کښې تکلیف وي. او بعضې پکښې دا وائي چه زمونږ شق صدر څو ځلې شوې ده. لکه د رسول الله ﷺ چه شق صدر شوې وؤ، او که هغوي ته دا اووئیلې شي چه کیدېشي دا مکاشفات دَ شیطان په تلبیس سره وي؟ نو جواب کښې وائي چه ځمونږ د

کشف منزلو نه د عرش نه بره دي او هلته د شیطان تسلط نشته دي. او دا مکاشفات ټولو ته کیږي لیکن الاجهل فالا جهل ته زیات کیږي. خاص طور سره ماشومانو او زنانو ته ډیر کیږي. او نو ر خلق هم دا تصدیق کوي چه دوي څمونږ نه غټې مرتبې والا دي او په دې سلسله کښې شیعه ګان هم شامل دي هغوي ډیر کشف والا دي. او کوم خلق چه د دین په زده کړه او خودنه کښې مشغول وي هغوي ته وائي چه دا د نجات لاره نه ده، بلکه د نجات لاره داده چه په عوامو او جاهلانو خلقو کښې ګرځې او دعوت ورته ورکوي او ورته وائي چه دهر حاجت علاج په دې طریقه کښې دي مثلاً مریض ته وائي چه د دوایئ په ځائي باندې باندي د شفا سبب دادې، او طالب علم ته وائي چه د ذهن کولاؤ والي دا سبب دي او دمالدارئ سبب دې وغیره وغیره

(۱) الله یار خان په اسرار الحرمین صفحه ۷۱ کښې وائي ! څما مخکښې دا عقیده وه چه شیعه ګان کافران دي بیاما رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو نو هغوی دا عقیده صحیح اوګرځوله.

(۲) اسرار الحرمین صفحه ۶۶: ما نوح علیه السلام اولیدلو هغه وئیل څما قبر مسجد خیف ته نزدې دي تفسیرونو غلط ښودلې دي، په صفحه ۶۷ باندې لیکي چه فلانکې حدیث کښې دا جمله شته ځکه چه ماته فاطمه رضی الله عنها وئیلي دي. ددې پیر په باره کښې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: علماء ژوب بلوچستان..... ۴ ربیع الثاني ۱۳۹۶ه

**الجواب:** ددې لیکلو شوو خبرو په بنیاد باندې په دې اختراعي (ځان نه جوړشوې) طریقو کښې داخلیدل خلاف طریقت دې بلک د شریعت نه خلاف دي ځکه چه د طریقت غرض او غایت د احسان او اخلاص حاصلول دي. ان تعبدالله کانک تراه فان لم تراه فانه یراک، الحدیث. کشف او تصرف نه دي. مثلاً مریدان نیغ په نیغه د پیغمبر علیه السلام دربارته ته رسول وغیره، دا کارونه د تصوف والا په نزد نه مقاصد دي او نه ئې په دې باندې دارو مدار دي.(۱) نو چه دې ډلي دا زیاتي خیزونه مقاصد جوړ کړل او دا ئې د کمال دار ومدار

(۱) قال الشیخ احمد الفاروقی المجدد الف ثانی فی رعایة الشریعة اعلم ان رعایة ادب من الاداب والاجتناب عن کراهة ولو تنزیهیة افضل من الذکر والفکر والمراقبة والتوجه بمراتب نعم اذا جمع هذه الامور مع تلک الرعایة لقد فاز فوزاً عظیماً ولایحصل ذلک بدون دوام العبودیة اذالمقصود من خلق الانسان انما هواداء وظائف العبودیة واما العشق والمحبة فی الابتداء فتعلقه بهما لا جل قطعه عما سوی جناب الحق تعالیٰ ولیسامن المقاصد بل لاجل تحصیل مقام العبودیة ......فلهذا کانت العبودیة نهایة مراتب الولایة ولیس فی درجات الولایة مقام فوق العبودیة دوامها لایتصور بدون اداء العبادة الخ. (البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۳ مقدمه)



جوړ کړل او دائې د خپلې ډلې زیاتولو د پاره یوچل ول جوړ کړو. نو دداسې خلقو نه اهل اسلام له بچ کیدل ډیر زیات ضروري دي.

**نوټ:** د کشف او خُوب په وجه باندې په مړي یا ژوندي باندې بد ظنه کیدل حرام دي. دارنګې دوي سره داهل حق تحقیقات رد کول یولوئې زړورتوب بلکه حماقت دې. وهو الموفق.

## د مولوی الله یارخان چکړالوي په باره کښې د ژوب علماؤ په دويم ځل تپوس

**سوال:** محترم مفتي صاحب تاسو دینه مخکښې د مولوی الله یارخان په باره کښې مونږ ته فتوی راکړې وه په هغې کښې تاسو لیکلي وؤ، چه ما مکمل کتابونه مطالعه کړي نه دي. اوس مونږ په دويم ځل باندې د فتوٰی کولو خواهش لرو ځکه چه کیدیشي اوس تاسو دهغوي د کتابونو مطالعه کړې وي په دې ځل باندې مونږ د کتابونو عبارتو نه نه دي درلیږلي او دینه مخکښې استفتاء کښې مونږ عبارت درلیږلي وؤ. او دويمه خبره دا چه مونږ دا نه غواړو چه آیا دا کافر دې که مسلمان، بلکه مونږ دا غواړو چه آیا دده سره بیعت جائز دې که نه؟ منجانب: علماء ژوب بلوچستان

**الجواب:** محترم! اصولي طور سره مونږ دمخکښې جواب نه د زیات جواب ورکولو مجاز نه یو، دداسې سړي نه ځان ساتل ضروري دي چه هغه د دې هر نوی تعمیر د پاره د باقي د ورانولو پالیسي لري.

## د مولوي الله یار خان چکړالوي باره کښې په دریم ځل تپوس

**سوال:** محترم جناب مفتي صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! د مولوي الله یار خان متعلق ستاسو جوابونه ملاؤ شویدي، مهرباني اوکړئ یو واضحه او صفا جواب اولیکئ چه یوه لاره متعینه شي، ستاسو حضراتو فتوي د دواړو طرفونو د تائید کولو احتمال لري ډیره مهرباني به وی؟

از مولوي الله داد خطیب جامع مسجد فورټ سنډیمن

(۱) قال الرازی رحمه الله ومن المدعین للطریق جماعة وسموا انفسهم بالمشایخ الصادقین کما یقال الملامیة والقلندریة والحیدریه والحریریه وکذلک من ینسب نفسه الی الاحمدیه والدسوقیه والرفاعیه والمسلمیه والبسطامیه واشباههم فان الغالب علی هؤلاء مخالفتهم لطریق من انتسبوا الیه فان المنقول عن اشیاخ هؤلاء التقید باداب الکتاب والسنة قال والضابط فی تمییز الصادقین منهم من غیرهم اقامتهم الاعمال الشرعیة علی قانون المتابعة والتادب باداب اهل الطریق علی وفق سیر المشائخ قال وکل من ادعی انه خلص مع الله ضمیره ونال رتبته فی الحقیقة الخ. (البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۳۵ باب فی بیان المشیخة)

**الجواب:** محترم المقام جناب الله داد صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته؛ د حضرت الاستاد مفتی اعظم دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک جناب مفتي صاحب مدظله په نوم باندې ستاسو د طرفنه څو څلې تپوسونه اوشول، حضرت د امت برکاتهم تاسو ته اصولي جوابونه درکړل او مدلل جوابونه ئې درکړل، دارالافتاء ددینه علاوه شخصي فیصله نشي کولی البته څه دوه خبرې کووم. (۱) داسې سړې چه دهغه د تصوف رنګ د سلفو صالحینو او اکابرو مرحومینو نه خلاف وي او دهغه دعوت د جمهور اهل اسلام مطابق نه وي. (۲) د هغه مریدان د شرعي پابندئ نه بغیر د الوتلو د عوی کوي او په عوامو کښې دفتني خورولو کلکه اراده هم لري نو دداسې کس نه صرف دا نه چه بیعت نه دې کول پکار بلکه دهغه سره ناستې پاستې او تعلق ساتلو نه هم بچ کیدل ضروري دي. هذا ما عندی ولعل عند غیری احسن من هذا.

لیکونکي: عبدالحکیم خادم دارالافتاء دارالعلوم حقانیه په مُهر حضرت صدر مفتي صاحب مدظله دارالعلوم حقانیه مفتي محمد فرید صاحب دامت وبرکاتهم.

## د مولوي الله یار خان تصوف او طریقت شنډ او بغیر نتیجې دي

**سوال:** مولوي الله یار خان د خپل کتاب دلائل السلوک په صفحه ۴۴ باندې لیکي چه سړې په شپږ میاشتو کښې د انحضرت ﷺ سره روحاني تعلق قائمولې شي. په دویم کتاب کښې ئې لیکلي دي چه زمونږ په جماعت کښې څو کسان داسې شته چه په یوه هفته کښې د انحضرت ﷺ په لاس مبارک باندې بیعت ورکولې شي په صفحه ۴۷ باندې لیکي! که یو مدعي دربارِ نبوي ته رسیدل نشي کولي او بیا هم بیعتو نه اخلي نو هغه به ماخوذ وي او دهوکه باز دې د ناقص او کامل دغه پیژند ګلو ده. د کتاب دلائل السلوک په صفحه ۵۸ باندې ئې د غوث، قیوم، قطب وغیره اعلي اوصاف ذکر کړي.دي نو د غوث په اوصافو کښې ئې دا هم لیکلي دي چه هغه خپلو شاګردانو ته غیبي فیض ورکوي او بیا لیکي! په څو مزارونو ځما تیریدل اوشو خلق د عقیدت اظهار کوي او صاحب قبر ته عذاب ورکولې کیږي وغیر وغیره. دده څو شاګردان او مریدان ښکاره په ښکاره دعوي کوي چه ځمونږ حضرت هم ټول منصبونه تقسیموي یعني د ظاهري شیخ نه ئې نه بیعت کړې او نه ئې تربیت حاصل



کړې، دې باره کښې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: حق نواز فاضل وفاق المدارس ناظم دفتر جامعه اشرفیه سکهر ۸ رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دې پیر صاحب چه د بیعت کوم شرطونه مقرر کړې دي نو په دیکښې ئې ټولو متقدمینو او متاخرینو ارباب طریقت نه مخالفت کړې دې.او د تعجب قابل ئي دا متضاد خبرې هم دي چه کله کشف غیر معتد به ګرځوي او کله ورته د کمال او ولایت شرط وائي.بهر حال داسې دعوي کونکې پیر د ځنګلیانو او فوجیانو خلقو سره مناسبت لري د طالبانِ خدا دپاره داسې تصوف شنډ او بغیر نتیجې دې.وهو الموفق.

## د پیر د الفاظو. مقبولک مقبولی ومردودک مردودی.. حکم

**سوال:** که یو پیر اووائي چه مقبولك مقبولی ومر دودك مردودی، بیا دا سړې په هر مجلس کښې دا خبره کوي.ددې څه حکم دې؟

المستفتي:عطاءالرحمان پیر سباق نوشهره...۲۳ صفر المظفر ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا الفاظ په مکر او دهوکې سره وئیلې شوې دی په دې سره عوام او وهمي خلق ځان ته په رغبت کښې راولي،داسې الفاظو وئیلو والا پخپله د مردود کیدلو په خطرو کښې ګرفتار دې د قبولیت او ردکیدلو دارومدار د شریعت په موافقت او مخالفت باندې دې(۱) دچا په عزم او اراده باندې نه دې:فقط

## بیعت فسخ کول. په مجلس ذکرکښې د ارواحوحاضري اودعلمائي حق میانه روی

**سوال:** (۱) دکوم شیخ نه چه مرید ته فائده نه کیږي نوآیا د بل پیرنه بیعت کول صحیح دی؟ او حال دا چه د مخکښې شیخ سره هم اعتقاد لري. (۲) کوم مرید چه د مخکښې پیر نه ورته فائده هم وي دا بیعت فسخ کړي او بل پیر سره بیعت اوکړي نو په دې کښې څه ګناه شته؟ (۳) آیا د اولیائې کرامو، علمائې عظامو یا ټولو انسانانو روحونه دنیا ته واپس راتللې شي؟ (۴) یو صوفي صاحب وائي چه په مجلسِ ذکر کښې ادب سره ذکر کوئ ځکه چه د سلسله طریقت د اصحابو روحونه حاضریږي چه په مجلسِ ذکر کښې کیني. آیادا عقیده صحیح ده؟ (۵) یو

(۱) وقد قال الجنید رضی الله عنه یقول لاتلتفتوا قط لشخص ولو تربع فی الهواء الا ان رأیتموه تقید بالشریعة امراً ونهیاً. (البهجة السنیة فی الطریقة النقشبندیه ص ۳۵ باب فی بیان المشیخة)

کس نه مې اوریدلي دي چه د اهل سنت والجماعت عقیده ده او د علمائي دیوبندهم دا مسلک دې تر دې چه د حضرت شیخ التفسیر مولانا احمدعلی لاهوری رحمة الله علیه نه هم دا خبره په (انوار ولایت) کښې نقل شوې ده. کومه خبره چه په سوال نمبر ۴ کښې لیکلې ده آیا د هغه داسې وئیل صحیح دي؟

المستفتي: میاں گل زاده ډاک اسماعیل خیل نوشهره پشاور ۱۹۷۰/۱۱/۱۹ء

**الجواب**: (۱) د معمولاتو د پابندئ باوجود هم مرید ته فائده نه ورکوي. مثلاً د سنتو د اتباع او رغبت ورته نه حاصلیږي نو هغه دپاره تجدید جائز دي. (مجموعة الفتاوی صفحه ۲۱۷ نمبر ۲) ﴿۱﴾ (۲) داسې کس په هر ځائي کښې د برکت او فائدې نه محرومه وي (القول الجمیل)، یعني دا کار موثم (گناه والا) نه دې خو مُضر دې. ﴿۲﴾ (۳) مولانا رشید احمد گنگوهي، قاضي ثناء الله پاني پتي، امام شاه ولي الله او امام سیوطي رحمة الله علیه په خپلو کتابونو کښې جواز لیکلې یعني د الله تعالی په اجازت سره راتللې شي. اوکه د حوالو ضرورت وي نو بیا رجوع اوکړئ. ﴿۳﴾ (۴) اگر چه دا ممکن ده او ډیر کرته د کشف په ذریعې سره هم ثابت دي. لیکن دا عقیده د عوامو دپاره د مشکوکو شبهاتو باعث جوړیږي. (۵) په علمائي حق کښې میانه روي موجود ده نه د نجدیانو سلفیانو پشان سختي کوي او نه د مبتدعینو پشان صرف آرزو گانو نه عقیدې جوړوي. د مولانا احمد علی لاهوری صاحب کشف کیدل منلې شوې خبره ده او دهغه د شرک او بدعت رد کول هم څه پټه خبره نه ده فقط

﴿۱﴾ وایضاً قال الشیخ محمد بن عبد الله الخانی النقشبندی وجوزوا التعدد بل فی حیاة الشیخ الاول اذا رأی الطالب رشده فی موضع آخر یجوز له من غیر انکار لشیخه الاول ان یذهب الیه ویاخذ علیه ویتخذه شیخا ثانیا. (البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۳۰ باب فی بیان المشیخة)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن حجر المکی فی خاتمة الفتاویٰ من المسائل المنشورة والاخذ عن مشائخ متعددین یختلف الحال فیه من بین من یرید التبرک ومن یرید التربیة والسلوک فالاول یاخذ ممن شاء لاحجر علیه واما الثانی فیتعین علیه علی مصطلح القوم السالمین......ان لا یتدیٔ الا بمن جذبه الیه حاله قهراً علیه بحیث اضمحلت نفسه بقاهر حال ذلک الشیخ المحق وتحلت له عن شهواتها وارادتها فحینئذٍ یتعین علیه الاستمساک بهدیه والدخول تحت جمیع اوامره ورسومه ......فان لم یجدحال شیخ کذلک فلیتحر اورع المشائخ واعرفهم بقوانین الشریعة والحقیقة .ویدخل تحت اشاراته ورسومه کذلک ومن ظفر بشیخ بالوصف الاول والثانی فحرام علیه عندهم ان یترکه ......اذخاصیته سوء الادب زوال البرکة وتبدل النور بالظلمة والحجاب والبعد المعنوی والضرر تغیر طبع الشیخ اولم یتغیرالخ .(البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۲۴ باب فیما یلزم المرید من الشرائط)

﴿۳﴾ (والتفصیل فی کتاب الروح لابن القیم الجوزیه المسالة الثالثه هل تتلاقی ارواح الاحیاوارواح الاموات)



## د حقیقت محمدي او روح محمدي نه د بریلیانو د استدلالاتو نه جواب

**سوال**: بریلیان حضرات پیغمبر علیه السلام حاضر ناظر او عالم الغیب او په کائناتو کښې متصرف گڼري او علمائي دیوبند دې عقیدو ته شرکیه وائي. بریلیان وائي چه مونږ دا عقیدې د پیغمبر علیه السلام دپاره د بشریت په لحاظ نه ثابتو و. بلکه د حقیقت محمدیه په جهت سره ئې ثابتوؤ. چه حقیقت محمدیه د کائناتو مصدر او مبدء او اصل دي. لکه څنگه چه مصدر په خپلو ټولو مشتقاتو کښې موجود وي نو دغه شان حقیقت محمدیه هم د کائناتو په ذره ذره کښې جاري او ساري دې هغې ته مونږ حاضر او ناظر وایو او دهغې په وسیلې سره کائنات جوړ شوې او قائم دي او هغې ته متصرف في الکائنات وایو دا عقیدې مونږ په لحاظ د وجود سره نه منو. دارنگې د علمائي دیوبند عقیده ده چه حقیقت محمدیه د کائناتو اصل او مبدآ الاثار دي علمائي دیوبند ددې حقیقت محمدیه په وجې سره د نبوت بالذات او حیات بالذات عقیدې لري بلکه د آدم علیه السلام د پیدائش نه مخکښې د پیغمبر علیه السلام د نبوت بالفعل قائل دي حال دا دې چه د حقیقت محمدیه اصطلاح د وحدة الوجود نظریې والا اصطلاح ده لکه چه ابن عربي دا په اوومه صدئ کښې د ځان نه جوړه کړې. حقیقت محمدیه د ذات مطلق (الله تعالی) اولنې تعین او اولنې تنزل هم گڼري او د اتسلیموي چه دا نظر په د کشف نه ثابت ده او د موضوعي او ضعیفو حدیثونو سهارائې اخستې ده. مثلاً حدیث د لولاک الخ اول ما خلق الله العقل، حدیث او حدیث د جابر رضی الله عنه وغیره. په اولنئ پیړئ داسې څه څیزنه دې ثابت، او دیوبندي حضرات دا نظریه د تکمیل ایمان ذریعه گڼري او ددې کشفي او اختراعي نظریې مختلف تعبیرونه ئې د عقائدو په کتاب کښې لیکلي نو آیا دیوبندي او بریلوي اختلاف په صحیح بنیاد ونو باندې دي؟ بینوا توجروا.

المستفتي: صوفي انور حویلی بهادر شاه شورکوټ جهنگ ۲۴ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب**: اول ما خلق الله روحي، او، اول خلق الله نوري، ضعیف روایتونه دي لیکن ددین د ضروریاتو سره متصادم نه دي او حقیقت محمدي یو کشفي امر دي. ﴿۱﴾ دا نه ده د روحِ محمدي نه تعبیر دې او نه د نورِ محمدي نه تعبیر دې. کما لایخفي علی من راجح الی کتب اهل التصوف ﴿۲﴾ په داسې کشفي کار سره

﴿۱﴾ شیخ العلامه مفتي اعظم مفتي محمد فرید دامت برکاتهم فرمائي چه په حقیقت محمدي او حقیقت احمدي کښې فرق دا دې چه حقیقت محمدي هغه حقیقت دې چه محبوبیت سره لړ مقدار د محبیت هم گډو شوې وي او حقیقت احمدی هغه حقیقت دې چه خالص محبوبیت پکښې دې. (سلسله مبارکه ص ۲۷۱ مراقبات ولایت کبریٰ)

﴿۲﴾ قال الشیخ احمد فاروقی مجدد الف ثانی در جواب گویم که حقیقت محمدی نهایت مقامات نزول محمد علیه السلام است از واج تنزیه وتقدیس وحقیقت کعبه نهایت مقامات عروج است ـ (مکتوبات امام ربانی ص ۳۳۴ جلد ۱ مکتوب ۲۰۹)

ضروريات دين مجروح كول نه ده نص تقاضا ده او نه د عقل. او د عالم د روحِ محمدى نه فيض كيدل نه مردود دي او نه ممنوع، ,,لسكوت الاحاديث عنه،، البته ټول عالم د روح محمدي ماده او مصدر كيدل مردود دى.

لاستلزامه وجود روح محمد فى المسلم والكافر وفى النجاسات والطيبات ولا ستلزامه كون روحه جزء من كل مخلوق مثل المصدر من المشتقات وغير ذلک من الاشكالات ـ وهو الموفق

## د يو ژوندي پير نه بيعت كول او تعويذونه پرې كول او درود وئيل

**سوال:** (۱) د ژوندي پيرنه بيعت كول څنګه دي ؟ (۲) په يو پير باندې تعويذونه كول چه څما فلانكې كار اوشي دا څنګه دي؟ (۳) د مونځ كولونه پس يا هر وخت چه وي درود شريف وئيل څنګه دي؟ بينوا توجرو.

المستفتي: سيف الدين اټک

**الجواب:** (۱) د ژوندي او باشريعت صحيح العقيده پير نه بيعت كول مستحب او اهم كار دې ﴿۱﴾ (۲) نه ممنوع دي او نه مطلوب بلكه مباح دي خو چه مضمون غلط او د شرك نه وي. ﴿۲﴾ (۳)درود شريف وئيل بذاتِ خود يو عظيم عبادت دي خو التزام د مالايلزم عظيم بدعت دې. ﴿۳﴾ فقط

## د مشرك مبتدع، جاهل او متجاهل پير نه بيعت كول

**سوال:** (۱) يو پيرعرس كوى، كتې ګوتې ښكلوي، د آذان مخكښې خامخا صلاة و

﴿۱﴾قال الامام العارف الشيخ عبدالوهاب الشعرانى قد اجمع اهل الطريق على وجوب (لزوم)اتخاذ الانسان له شيخا يرشده الى زوال تلک الصفات التى تمنعه من دخول حضرت الله تعالىٰ بقلبه لتصح صلاته من باب مالايتم الواجب الا به فهو واجب (لازم) ولا شک ان علاج امراض الباطن من حب الدنيا والكبر والعجب والرياء والحقد و الحسد والغل والنفاق كله واجب الخ. (البهجة السنية فى اداب الطريقة النقشبنديه ص ۴ مقدمه)

﴿۲﴾لحديث ورد فيه لابأس بالرقىٰ مالم يكن فيه شرك رواه مسلم و ابوداؤد .(مشكواة المصابيح ص۳۸۸ جلد ۲ كتاب الطب والرقى) وايضاً عن عبد الله بن عمر ومن لم يعقل كتبه فاعلقه. (ابو داؤد ص۱۸۷ جلد ۲ باب كيف الرقىٰ كتاب الطب)

﴿۳﴾قال ابن عابدين وبان تخصيص الذكر بوقت لم يرد به الشرع غير مشروع. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۱۳ جلد ۱ باب العيدين)



سلام وائي. دداسې پيرنه بيعت كول او دهغه مريد كيدل څنګه دى؟ (۲) كه يو پير علمائې ديوبند د اسلام نه خارج ګڼړي او احمدرضا خان حق او مقتدا منى دداسې پيرنه بيعت كيدل څنګه دي؟

المستفتي: قائم الدين ډهوک زمان ميان والى....۱۹۷۸ء۱۷۱۱۲۳

**الجواب:** (۱) د اهل اسلام دپاره د مشرك اومبتدع پيرنه بيعت كول حرام او ډير لويه ګناه ده. ﴿۱﴾ (۱) دداسې جاهل يا متجاهل پير مريد كيدل په جهل كښې دباقي پاتې كيدلو كاميابه ذريعه ده.

## د صفات جماليه، جلاليه او مراقبو وضاحت

**سوال:** علمائې كرام دې مسئلې باره كښې څه فرمائي چه جمالي صفت او دهغې مصداق او نښه څه ده؟ او دغه شان صفت د جلال څه څيز دې او آيا ددې د مراقبو اثرات ددې مطابق وي؟

المستفتي: خليل الرحمان انور خطيب مونټن آرټلري رجمنټ جهلم ۳ شعبان ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** په كومو صفاتو كښې چه د غلبې معنىٰ وي لكه عزيز، ملک، قهار، منتقم، وغيره دېته جلالي صفات وائي. او په كومو صفاتو كښې چه د شفقت او ترحم معنىٰ وي لكه رحمان، رحيم، غفور، نو دېته صفات جماليه وائي. ﴿۲﴾ (وفى الحقيقة الصفات هي المبادى والاسماء هى المشتقات) او ددې صفاتو او اسماؤ مراقبې جمالي او جلالي وي، علي وفق الصفات والاسماء. فقط

## د كامل پيرطريقت د پيژند ګلو طريقه

**سوال:** ستاسو حضراتو په نزد باندې په پاكستان كښې كامل پير طريقت څوک دي او د بيعت قابل پير والا نښه څه ده؟

المستفتي: محمد عبد الغفور نرول دروازه ډيره اسماعيل خان. ۱۹۷۲/۱۱/۱۱

﴿۱﴾قال الامام رازى والضابط فى تميز الصادقين منهم من غيرهم اقامتهم الاعمال الشرعيه على قانون المتابعة و التأدب باداب اهل الطريق على وفق سير المشائخ قال و كل من ادعى انه خلص مع الله ضميره ونال رتبة فى الحقيقة وانه تنزه عن التقيد بظاهر الشريعة وسقط عنه التكليف والارتسام بمراسم الشريعة وجعل التقيد بالشريعة للعوام المنحصرين فى مضيق الاقتداء فاعلموا انه مفتون فى دينه وهو من اهل الالحاد والزندقة والفلسفة والاباحة فاياكم ان تصحبوا مثل هذا وتعتقدوه فان ظلمة انفاسه سم قاتل لقلوب المريدين اولا يعلم هذاالجاهل المغرور ان الشريعة هى قشرلب الحقيقة الخ. (البهجة السنية فى اداب الطريقة النقشبنديه ص۳۵ باب اداب المشيخة)

﴿۲﴾قال العلامه الوسى والصفات اما جمالية او جلالية، وللاولىٰ السبق كما يشير اليه حديث سبقت رحمتى غضبى . وباء الجر اشارة اليها لانها الواسطة فى الاضافة والافاضة . الخ (روح المعاني ص ۸۹ ابحاث جليلة فى البسملة)

الجواب: د علماؤ او صلحاؤ په زړونو کښې چه کوم پیر مقبولیت موجود وي(۱) د هغه نه بیعت کول پکار دی مثلاً مولانا محمد عبدالمالک صاحب صدیقی، مولانا محمد عبدالله درخواستی صاحب، وغیره وغیره فقط

## د الله ﷻ د موجوداتو سره د معیت وضاحت

سوال: د موجوداتو سره د الله جل شانه معیت په کومه طریقه منل صحیح وي ځکه چه محققین علماء کرام د معیتِ علمي قائل دي اود وجودی صوفیاء د معیت ذاتي قائل دي. دا مسئله د معرفت خداوندي سره متعلق ده نو په دې وجه باندې صحیح نوعیت څه دې؟

المستفتي: صوفي انوار خالد شور کوټ ضلع جهنګ... ۲۴ رمضان ۱۴۰۵ھ

الجواب: په معیت علمی او معیت ذاتی کښې کما یلیق بشانه، هیڅ تضاد نشته. وهوالموفق

## د فیوض الحرمین کتاب په مؤلف باندې تنقیدی نظر

سوال: یونظر په کتاب، فیوض الحرمین. چه ماسټرفاروق مردان والا لیکلی دی.

المستفتي: نامعلوم معرفت محمود الحق حقاني صاحب... یکم ۱ نومبر ۱۹۸۳

الجواب: که دا مؤلف (صاحب کشف) مجذوب وي نو دده مؤاخذه او ردنه کول د طریقي نه خلاف کار دي او که مجذوب نه وي نو دا د کاملانو د طبقې نه نه معلومیږي. د کاملانو رویه فناء او ترکِ دعوي وي. لیکن ددې کشفونو د شریعت سره غیر متصادم کیدلو په وجه باندې ده ته د ګمراهئ نسبت کول قابلِ اعتراض خبره ده.

نوټ: دداسې مدعیانو نیول په هره زمانه کښې د اهل علمو معمول پاتې شوې دې. وهوالموفق

(۱) وعن الامام الرازی رحمه الله تعالیٰ یجب علی الطالب الصادق فی بدایته ان لایصحب اکثرمدعی المشیخة فی هذا العصر البتة الا بظهور امارات الصدق بالهام من الله تعالیٰ للطالب اوبشهادة الصادقین من اهل الطریق لذالک الشیخ. (کتاب البهجة السنیة فی اداب الطریقة النقشبندیه ص ۴۳)



## د اردو یو شعر وضاحت

سوال: علمائي کرام دې باره کښې څه فرمائي چه څو ورځې یو نعت خوان په عرس کښې دا شعر اووئیلو چه د دې وئیل څنګه دي؟ شعر دادې:

پھریں تھے کعبہ میں بھی پوچھتے اجمیر کا رستہ
جو رکھے اپنے سینوں میں تھے ذوق وشوق عرفانی

ترجمه: ګرځیدلو په کعبه کښې او داجمیر شریف دلارې تپوس ئې کولو څوک چه په سینو کښې عرفان د ذوق او شوق لرې هغه داسې وي.
آیا داسې وئیل صحیح دی؟ بینوا و توجروا

المستفتي: خلیل احمد صاحب............ ۴/۳/۱۹۷۴

الجواب: په دې شعر کښې خلاف شرع خبره نشته ځکه چه د الله په کور کښې هم د کامل شیخ د تربیت نه بغیر الله ته رسیدل مشکل دي. وهوالموفق

## د نبي ﷺ سره براه راست د بیعت او خبرو کولو دعوی کول

سوال: زید دعوی کوي چه څه د نبي کریم ﷺ سره براه راست بیعت کووم او کوم پیر چه دربار نبوی ته براهِ راست رسول نشي کولې هغه پیرنه دې. دویمه دعوی داده چه څه د هر مړي سره خبرې کولې شم او ښودلې شم چه جنتي دې که دوزخي دې. اود مقتول نه د قاتل په باره کښې تپوس هم کولې شم. دریمه دعوی داده چه کله څه حج له لاړم نو دربار نبوی کښې مې د پیغمبر علیه السلام په وړاندې یو څو مسئلې پیش کړې هغه ئې حل کړې او بیا نبي علیه السلام اوفرمائیل چه دا ځما او خپلې خبرې اولیکه چه دین هم مضبوط وي. او خلق ترینه فائده واخلي. اوڅه خبرې نورې هم دي دهغې باره کښې نبي کریم ﷺ اوفرمائیل (اکتم في صدرک، (یعني ځان سره ئې اوساته) هلته کښې ناست ووم د روضه اطهر. نه دمؤذن آواز راغې چه، آشهد، لفظ واوریدلې شو نو پیغمبر علیه السلام وفرمائیل چه دا حضرت بلال دې او چه، حي علي الفلاح ته اورسیدلو نو د مسجد نبوي نه مؤذن اذان شروع کړو. څلورمه دعوی داده چه کله څه حج له لاړم نو ټولو انبیاؤ سره مې ملاقات اوخبرې اوکړې او دهغوي د دفن ځایونه مې معلوم کړل. دهغې قبرونو نښې وي د اوکه نه وي او دهغې پیغمبرانو نومونه په قران کښې وو او که نه وُو. او د صحابه کرامو سره مې هم ملاقات او خبرې اوکړې. نو د شریعت په رڼا کښې ددې سړي څه حکم دې؟

المستفتي: نامعلوم............ ۱۵ جنوري ۱۹۷۵

**الجواب**: دا ټول کارونه ممکن دي بلکه واقع شوي هم دي لیکن غالباً ددي دعوي کونکي دهوکه باز او دروغژن وي. وهو الموفق

## په طریقه چشتیه کښې قوالي او موسیقي نشته

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه طریقه چشتیه والا د قوالئ سره موسیقي هم کوي په دې کښې څه حَرج شته که نه؟

المستفتي: سید عنایت الرحمان چارسده..... ۱۹۱۲۱۱۹۹۱

**الجواب**: موسیقی کول حرام دي د قرآن، احادیثو او د فقهې نه ددې حُرمت ثابت دې. ومن فعله فقد فعله علاجاً لا التذاذا کشرب الخمر للتداوی. وقیل فعله جذباً لاهل الهنود.《۱》 فافهم

## د پیر او استاذ یو شان حق دې

**سوال**: په سړي باندې د پیر حق زیات وي که د اساذ؟ او که دواړه برابر دي؟

المستفي: حافظ اخترعلي دارالعلوم ګجرات مردان.... ۵ربیع الاول ۱۴۰۵

**الجواب**: د پیر او استاذ حق یو شان دې. شیخ عبد الحق محدث دهلوي په اشعة اللمعات کښې لیکلي دي چه طریقه او سلوک په علِم ظاهر کښې داخل دي. فلیراجع الی کتاب العلم.

## د اولیاؤ کرامت او په قبر سره فیض حاصلول

**سوال**: د ولی د وفات نه پس دهغه کرامت برقراروی که ختمیږي؟ دارنګې د ,,شاه عبدالعزیز اور ان کی تعلیمات، نومې کتاب په صفحه ۵۱ باندې لیکلي دي چه په اهلِ قبور کښې بعضې بزرګان په کمال کښې مستثنٰی دی او د هغوي کمال په متواتر طریقې سره ثابت نه دي، دهغې بزرګانو نه د مدد غوختلو طریقه داده چه دهغه بزګ د قبر په سر طرف باندې به ګوته کیږدي

《۱》 قال ابن عابدین وما یفعله متصوفة زماننا حرام لا یجوز القصد والجلوس الیه ومن قبلهم لم یفعل کذلک..... قلت وفی التاتر خانیه عن العیون ان کان السماع سماع القرآن والموعظة یجوز وان کان سماع غناء لهو حرام باجماع العلماء ومن اباحه من الصوفیه فلمن تخلی عن اللهو وتحلی بالتقویٰ واحتاج الی ذلک احتیاج المریض الی الدواء وله شرائط ...... والحاصل انه لا رخصة فی السماع فی زماننا. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۴۶ جلد ۵ کتاب الخطر والاباحة)



او د الٓم، نه تر مفلحون پورې به اووائي بیا به د قبر ښپو طرفته لاړ شي او آمن الرسول نه تر آخر د سورة بقره پورې به اووائي او په ژبې سره به اووائي چه اې څما حضرته د فلانکي کار دپاره. د الله په دربار کښې څه دُعا اوزاري کووم تاسو هم دعا اوکړئ. بیا به قبلې ته مخ کړي او د خپل حاجت دپاره به د الله تعالی نه دعا اوغواړي. نو آیا دا طریقه چرته د حدیث نه ثابت ده او که خود ساخته ده؟ او په دې کښې د بزرګ نه سفارش کول ثابتیږي نو آیا دا الله تعالی په دربار کښې دقیامت نه مخکښې د چا سفارش کیدیشي او ددې نه دا هم ثابتیږي چه مړی آوري او دعا هم کولې شي نو آیا دا صحیح ده؟ او دا کتاب محوله مولوی ظهیر الدین او حمد او تبصره د حضرت شاه رفیع الدین محدث دهلوي او تصحیح د مولانا سبحان محمود صاحب استاد کراچي.

اَلمستفتی: خلیل الله زروبوی از تهائی لینډ.......... ۲۵جنوري ۱۹۷۵

**الجواب**: محترم المقام السلام علیکم نه پس داخبره واضحه وی چه د احادیثو نه دا ثابت دي چه په مرګ سره هغه عمل منقطع کیږي چه په هغې باندې ثواب او عذاب مرتب کیږي الاباذنه فی حق البعض، دارنګې دا هم ثابت دي چه په قبر کښې مړي ته یو قسم حیات ورکولې کیږي چه په هغې سره د ثواب او عذاب، ادراک او احساس کولې شي خبرې هم کولې شي او ریدل هم کولې شي البته په قرآن پاک کښې ډیرو داسې مسئلو ته توجه نه ده ورکړې شوې، دارنګې د احادیثو نه کرامت دمرګ نه پس او توسل هم ثابت دې. چه د ټولو علمائې دیوبند متفقه عقیده ده. خلافاً للسلفیه والنجدیة. او دُعا هم کولې شي اګرچه مونږته دهغې علم نه کیږي. دهغوي نه فیض هم رسیږي او د استفاضې چه کومې طریقې مشائخو نه منقول وی نو هغې کښې دا ضروري دي چه د قرآن او حدیث سره متصادم نه وی بلکه ټولو عملیاتو کښې دا قانون دې (لان النبي ﷺ قرر الرقي التي لا تشتمل علي الکلمات الشرکیه 《۱》 فافهم.

## د خلافِ شریعت پیر سره اقاله او متبع سنت پیرنه بیعت ضروري دي

**سوال**: د کوم پیرنه چه خلاف شریعت کارونه ثابت وي د هغه اتباع ضروري ده او یو طرفته کیدل ترې نه ضروري دي؟

المستفتي: الحاج نیازولي شاه حسن خیل شمالي وزیرستان ۲ رمضان ۱۴۰۵ھ

《۱》 عن عوف بن مالک الاشجعی ...... فقال لا باس بالرقیٰ مالم یکن فیه شرک. رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص ۳۸۸ جلد ۲ کتاب الطب والرقی)

**الجواب:** د خلافِ شریعت پیر نه بیعت کول یو هلاکونکي کار دي.﴿۱﴾ دهغه نه واپس کیدل او بل پابند شریعت او متبع سنت پیرنه بیعت کول ضروري دي. که دا پیر خوشحاله وي او که خفه وي. فقط

## د بدعتي او جاهل پیرنه بیعت کول د بې برکتئ او هلاکت باعث دي

**سوال:** یو بریلوي پیر دي چه ډیر مبتدع او مشرکانه عقائد ساتي د نبي علیه السلام د بشریت نه هم منکردي اوجاهل هم دي نوآیا داسې پیرنه بیعت کول جائزدي؟

المستفتي: گل محمد خان کوټ ادو مظفرگړه......۲۳/۴/۱۹۸۵ء

**الجواب:** داسې پیر چه نه پخپله عالم وي او نه علماؤ سره کیني دهغه نه بیعت کول حرام دي چه کوم پخپله کالاعمي دې نوروته به د الله تعالی لاره څه اوښائي.﴿۲﴾ نو چه کوم پیر غیرالله غیب دان مني او یا د سید البشر ﷺ د بشریت نه منکر وي اوغیرالله په تسلطِ غیبي باندې ایمان ساتي یاسرود او موسیقي کوي نو دداسې پیر نه بیعت کول د بې برکتئ او هلاکت باعث دي.

وهوالموفق

## وجد غیر اختیاري امر دي

**سوال:** آیا ذکر په وخت کښې وجد راتلل د ثواب کار دي؟ دداسې وجد په باره کښې د احنافو علماؤ څه رائې ده؟

المستفتي: سبحان الله آلو مردان....یکم ربیع الثاني ۱۳۹۲ھ

﴿۱﴾ قال الشیخ محمد بن عبد الله الخانی الخالدی وایاک ان تصحب احداً من المدعین للطریق بلبس الزی اوتدعهم یاخلون علیک العهد فانهم اذی من الثعبان وذلک لانک تشهد الاذی من الثعبان فتاخلمنه حذرک ولا هکذا من ظهر مظهر الصلاح وهو فی الباطن شیطان فی زی انسان ...... والضابط فی تمییز الصادقین منهم من غیرهم اقامتهم الاعمال الشرعیه علی قانون المتابعة والتأدب باداب اهل الطریق علی وفق سیر المشائخ الخ.(البهجة السنیة ص ۳۵ باب فی بیان المشیخة وادابها)

﴿۲﴾ قال الامام ولی الله الدهلوی وانما شرطنا العلم لان الغرض من البیعة امره بالمعروف ونهیه عن المنکر وارشاده الی تحصیل السکینة الباطنة وازالة الرذائل واکساب الحمائد ثم امتثال المسترشد نه فی کل ذلک فمن لم یکن عالما کیف یتصور منه هذا.(القول الجمیل مع شفاء العلیل ص ۲۲ حکمت بیعت)



**الجواب:** وجد یو غیراختیاری امردې په سلف صالحین باندې هم راغلې دې لهذا په دې باندې انکار کول منکردې.﴿۱﴾

## د وجد بعضې مسئلې

**سوال:** د وجد په حالت کښې چه په قی وغیره باندې جمات خراب شي نو په دې سره جمات پلیت کیږئ او که نه؟ او آیا دا طریقه واقعي د ثواب او نجات باعث ده؟ او که د قران او حدیث نه خلاف ده؟

المستفتي: سبحان الله آلو مردان یکم ربیع الثاني ۱۳۹۲ھ.

**الجواب:** قئ کول په ډکه خولې سره پلیت او نجس دي﴿۲﴾ د کوم سړي په باره کښې چه د قې کولو یقین وي یا غالب گمان وي هغه جمات ته منع کول جائز دي که ذاکر وي. اوکه نه وي. او که دا کار (وجداو قې) علاجاً ورفعاً للخطرات کوي نو د ثواب باعث دي او که بالخصوص هم داثابت گڼړي، یائې د التزام ما لایلزم درجې ته رسوی، نو بیا بدعت دي.﴿۳﴾ فقط

## خلاف شریعت سړې ولی الله نشي کیدلې

**سوال:** که یو سړې د راتلونکو حالاتو پیشنگوئي کوي چه په هغې کښې بعضې خبرې صحیح هم خیژي لیکن دهغه ظاهر هم د شریعت موافق نه دي او قول وفعل ئې هم د اسلام نه مخالف دي نو داسې سړې ولي الله کیدیشي؟

المستفتي: حضرت جمال کلرک افس گورنر هاؤس پشاور ۲۲ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** داسې سړې ولي الله منل د جاهل یامتجاهل کاردي.﴿۴﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامه طحطاوی الوجد مراتب وبعضه یسلب الاختیار فلاوجه لمطلق الانکار وفی التتارخانیة مایدل علی جوازه للمغلوب الذی حرکاته کحرکات المرتعش.(طحطاوی علی المراقی ص ۱۷۳ قبیل باب ما یفسد الصلاة)

﴿۲﴾ قال العلامه سید احمد طحطاوی انه لا فرق بین انواع القئ سواء قاء من ساعته ام لا ......والصحیح انه حدث ونجس فی الکل کما فی الجلی.(طحطاوی علی المراقی ص ۴۹ فصل فیماینقض الوضوء)

﴿۳﴾ قال العلامه ابن نجیم ولان ذکر الله اذاقصدبه تخصیص بوقت دون وقت او بشئ دون شئ لم یکن مشروعا حیث لم یرد الشرع به لانه خلاف مشروع.(البحر الرائق ص ۱۵۹ جلد ۲ باب العیدین)

﴿۴﴾ قال العلامه محمد عبد العزیز الفرهاری الولی هو العارف بالله تعالیٰ وصفاته بحسب ما یمکن ای بقدر الامکان المواظب ای الملازم علی الطاعات حتی قیل ان الولی الکامل لایترک المندوب، المجتنب عن المعاصی حتی انه یخرج بالکبیرة واصرار الصغیر عن الولایة، المعرض عن الانهماک ای الاستغراق فی اللذات والشهوات.الخ (النبراس شرح شرح العقائد ص ۲۹۵ کرامات الاولیاء حق)

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما انزل الله داء الا انزل له شفاء. (الحديث)





# كتاب الطب والرقية والتعويذ

# کتاب الطب والرقية والتعويذ

## د ظالم د پاره د ختم قران په وسیلې سره خیرې کول

**سوال:** عمر ظالم او شرارتي سړی دی چه د زید د تنګولو او بې عزته کولو او خلقو په مخکښې د شرمولو ډیر کوشش کوي د هغه نه ځان خلاصول ګران دي آیا په شریعت کښې داسې سړي د پاره د خیرو په طور سره ختم القرآن جائز دي که نه؟

المستفتي: سید واچ میکر بس اډه مردان... ۲ محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د ظالم په حق کښې خیرې کول جائز دي. قال الله تبارک وتعالى لا يحب الله الجهر بالسوء من القول الا من ظلم (۱) که د ختم القرآن په وسیلې سره وي او که نه وي. فقط.

## د مار د زهرو کوزولو منتر او د هغې حکم

**سوال:** بنده د مار د زهرو کوزولو یو عمل کوي چه د ډیرې مودې نه د یو بزرګ نه داسې راروان دي او دا عمل خالص په انساني همدردئ باندې دی د هر قسم مالی فائدو نه خالی دي تر اوسه مې هیڅ نه دي حاصل کړې. او تر نن پورې دا عمل ناکامه شوې نه دې د عمل الفاظ دادي. بسم الله الرحمان الرحيم. ګالا کهیرا کالابس جس کوکاتې کالا کرچړ بس. حضرت شیخ شرف الدین یحي منیري کی دهائی سې اتر بس اتر بس اتر بس) آیا دا الفاظ خو شرکیه نه دي. ؟ ددې څه حکم دی؟ او دا منتر جائز دی که ناجائز ؟

المستفتي: محمد سرور اسماعیل پور بهکر پنجاب.... ۱۰ ذیقعده ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** که دهائي ګفته وائي نو دا همت او عزیمت دې چه د مُباح عملیاتو نه دي. (۲) او که دهائي د بل څه نوم وي نو بیا مونږ خبر کړه. وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (پ:۶ سورة النساء رکوع:۱ آیت:۱۴۸)

﴿۲﴾ عن عوف بن مالک قال کنا نرقی فی الجاهلية فقلنا یا رسول الله صلى الله عليه وسلم (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د تیغ بندئ د تعویذ شرعي حیثیت

**سوال:** که یو کس د خپل ځان د حفاظت د پاره د تیغ بندئ تعویذ کوي نو شرعاً ددې تعویذ څه حکم دی؟

المستفتي: نامعلوم.... ۱۲ محرم ۱۴۱۱ھ

**الجواب:** دا بچاؤ په معجزه، کرامت، توجه او جادو سره کیدې شی (۱)(۲)

## د مار لړم یا لیوني سپي دم او ډوریژو غیره مخصوص عمل جائز دي

**سوال:** (۱) که چاله مار لړم تک ورکړې یا ئې لیوني سپي او چیچي په هغه باندې دم کول جائز دي که نه؟ (۲) که جائز وي نو هر سړې دم اچولې شي او که نه کوم سړې ته چه اجازت وي ؟ (۳) څمونږ په علاقه کښې چه لیوني سپې څوک او چیچي نو د صاحبزادګانو یوه کورنئ ده، هلته کښې ځي هغوي بیا لس تولې وریژې غواړې چه په اُلټه میچنه باندې میده شوې وي نو دهغې نه ګولئ جوړوي کړي هغه سړي له ئې په لاس کښې ورکوي چه دا ورانې کړه او ګوره ورته او دې دم هم وائي. نو په هغه وریژو کښې هغه وینښته راوخیژي د کوم قسم رنګ والا سپي چه دې چیچلې وي. نو آیا ددې وریژو وغیره دا عمل د شریعت په رڼا کښې جائز دي که نه؟

المستفتي: حاجي موسیٰ خان بازار مردان.... ۱۶ ستمبر ۱۹۷۹ء

---

(بقیه حاشیه) کیف تری فی ذلک فقال اعرضوا علي رقاکم لا بأس بالرقا ما لم تکن شرکا. (ابو داؤد ص ۱۸۲ جلد ۲ باب ما جاء فی الرقی کتاب الطب)

﴿۱﴾ په کوم تعویذ کښې چه جائز الفاظ وي هغه به جائز وي او په کوم تعویذ کښې چه شرکیه او ناجائز الفاظ وي هغه به نا جائز وي.

لحدیث عوف بن مالک اعرضوا علی رقاکم لا بأس بالرقی ما لم تکن شرکاً. (ابو داؤد ص ۱۸۶ جلد۲ باب ما جاء فی الرقی کتاب الطب) (از مرتب)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين (السحر) تعلمه و تعليمه حرام اقول مقتضى الا طلاق و لو تعلم لدفع الضرر عن المسلمين و فی شرح الزعفرانی السحر حق عندنا وجوده و تصوره و اثره و فی ذخيرة الناظر تعلمه فرض لرد ساحر اهل الحرب و حرام ليفرق به بين المرأة و زوجها وجائز ليوفق بينهما الخ (ردالمختار هامش الدرالمختار ص ۳۳ جلد ۱ مقدمة الشامی)

**الجواب:** (۱) جائز دي لحدیث عوف بن مالک رواه ابوداؤد(۱) (۲) بغیر اجازت نه حلت حاصلیږي لیکن همت نه حاصلیږي. (۲) (۳) جائز دي (۳)

## مار ګرم چیچلي په پاړو د مول

**سوال:** که مار خوک او چیچل نو دهغه دمول په مور پلار یا کلي علاقې نور مسلمانان په قرآن او حدیث سره افضل دي او که په پاړو باندې او دا جائز دي که نه؟

المستفتي: فضل کلام بازار تور ډهیر مردان

**الجواب:** چه کوم دم او منتر د شرکیه کلماتونه خالي وي په هغې کښې هیڅ ګناه نشته لحدیث عوف بن مالک قال رسول الله ﷺ اعرضوا علي رقاکم لا باس بالرقی مالم تکن شرکا(رواه ابو داؤد) (۴) باقي د نیک او بد او قرآن او غیر قران د امتیاز او فرق کولو نه دچانکار نشته. وهوالموفق

## د شیخ بابر د ځنګل لښتي په درد والا ځائي باندې مږل

**سوال:** دیو سړي سره د شیخ بابر رحمه الله د ځنګل یوه لښته ده.او د زخمونو او دردونو دپاره ئي په دې طریقه استعمالوي چه بس خلق راځي او هغه لښته په درد والا ځائي باندې ګرځوي نو آیا دا شرک نه دې یو مولوي صاحب به هم دخپلو جړونو درد دپاره دااستعمالوله نو ماورته د شرک اووئیل هغه دا حدیث اووې انما الاعمال بالنیات، نو آیا ددې حدیث په رڼا کښې دا عمل صحیح

(۱) عن عوف بن مالک قال کنا نرقی فی الجاهلیة فقلنا یا رسول الله ﷺ کیف تری فی ذلک فقال اعرضوا علي رقاکم لا بأس بالرقا ما لم تکن شرکا(ابوداؤد ص ۱۸۶ جلد ۲ باب ما جاء بالرقی)

(۲) قال العلامه ابن القیم الجوزیة ان الاذکار و الایات او الادعیة التی یتشفی بها ویرقی بها هی فی نفسها نافعة شافعةولکن تستدعی قبول المحل وقوة و همة الفاعل ...... و کان للراقی نفس فعالة و همة مؤثرة فی ازالة الداء. (الجواب الکافی لابن القیم ص ۱۰ دواء العی السوال)

(۳) یدل علیه ما فی الهندیة قال شهاب الدین الاذامی لا بأس باحراق الغثاء الملتقط من الطریق وادارته حول من اصابته العین و نظیره صب الشمع فوق الصبی الخائف قال الشیخ اللباری انما یباح اذا لم یرا لشفاء منه کذا فی القنیه(فتاوی هندیه ص ۳۵۶ جلد ۵ الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات کتاب الکراهیة)

(۴) (ابوداؤد ص ۱۸۶ جلد ۲ باب ما جاء فی الرقی کتاب الطب)



کیدلي شي چه هغه وائي دا څه تبرکاً استعمالوم شرکاً نه ددې شرعي حیثیت څه دې؟

المستفتي: عبدالوهاب سکنه زړه میانه نوشهره........۳ ربیع الاول ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** دا عمل شرک نه دې بلکه تبرک دې.والتبرک لیس بشرک لثبوته باشعار النبي علیه السلام ولباسه ووضوءه و دمه وفضلاته وغیر ذالک.لیکن په تبرکات ثابته کښې ددې تبرک هیڅ اصل نشته نو لهذا نه په دې لښته کښې تبریک شته کما عند الفرقة القبریة او نه په کښې تشریک شته کما عند الفرقة النجدیة ولنعم ماقیل الجاهل اما مفرط واما مفرط او ددې حدیث نقل کول دلته کښې بې محله دي البته انا عند ظن عبدي بي(۲) حدیث څه ناڅه مناسبت لري.فقط

## د مریض د شفا د پاره د قرآن شریف سره اوبه تلل

**سوال:** بخدمت اقدس جناب مفتي صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک. ما پر له پسې دوه نسخې د قرآن مجید په خپلو لاسونو باندې اولیکلې اوس پته نشته چه خلقو ته څنګه معلومات اوشو چه دا قلمي نسخې دي اوس خلق راځي دا د تلې په یو طرف کښې کیږدي او بل طرفته ورسره اوبه وزن کوی او وائي چه کله دا اوبه مریض باندې او څکولې شي یا په نورو اوبو کښې ملاؤ شي او مریض له پرې غسل ورکړیشي نو هر څنګه مرض چه وي شفا ورته کیږي. نو آیا په دې تول کولو او وزن کولو به خو د قرآن مجید احترام ختمیږي نه او ایا دا عمل جائز دې؟ مهرباني اوکړئ شرعي حکم واضح کړئ چه څه ئې خلقو ته اووایم. بینو اتوجروا

المستفتي: نائب صوبیدار شیر محمد قریشي دوبیرن کلان راولپنډي ۱۹۲۹ء/۱۹۱۵۱

**الجواب:** د قران مجید تول کول سپکوالي نه دي نه شرعاً او نه عرفاً نو په دې

(۱) عن عثمان بن عبدالله بن موهب قال ارسلني اهلی الی ام سلمه بقدح من ماء و کان اذا اصاب الانسان عین اوشئ بعث الیها مخضبه فاخرجت من شعر رسول الله ﷺ و کانت تمسکه فی جلجل من فضة فخضخضته له فشرب منه قال فاطلعت فی الجلجل فرأیت شعرات حمراء. رواه البخاری. (مشکواة المصابیح ص ۳۹۱ جلد ۲ باب الطب والرقی)

(۲) عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ یقول الله تعالی انا عند ظن عبدی بی و انا معه اذاذکرني فان ذکرنی فی نفسه ذکرته فی نفسی وان ذکرنی فی ملأ ذکرته فی ملأخیر منهم .متفق علیه (مشکواة المصابیح ص ۱۹۶ جلد ۱ باب ذکرالله و التقرب الیه)

عمل هیڅ مسئله نشته دي خو په دي شرط چه دعبادت او ثواب په نیت سره نه وي بلکه د عمل او علاج په ارادې سره وي.﴿۱﴾ والدلیل علي جواز العملیات تقریر النبي ﷺ الرقي اللتي صح مضمونها﴿۲﴾ فقط

## د فکر، وسوسې او پریشانئ د پاره وظیفه

**سوال:** څه غوارم چا ماسره د یو څیز غم نه وي لیکن طبیعت مي داسې جوړ شوي دې چه د معمولي خبرې سره سخت فکر او پریشاني وي چه ځما د برداشت نه بهر وي مثلاً جامې لرې خیرنې وي یا بل څه معمولي خبره چه بالکل د فکر قابله نه وي او ماته سخت فکر جوړیږي. او حال دا دې چه ځه د زړه نه بالکل فکر نه غوارم او دا وسوسې راته راځي او سخته پریشاني راته جوړیږي.لهذا تاسو حضرات ددې غیر اختیاري، نفساني او شیطاني پریشانئ په باره کښې څه حل راولیږئ؟او دَ دعا ګانو خصوصي درخواست کوم.

المستفتي:عبدالرشید فورت ایئر میډیکل هاستل نمبر ۲ پشاور یونیورسټي۱۹۷۹ء/۲۲/۱۴۱

**الجواب:** ته لا حول ولاقوة الا بالله. په کثرت سره وایه او الم نشرح سورة کم نه کم یولس ځلې وایه او څه موده پورې یو ناني علاج هم اوکړه.فقط

## په مونځ کښې د وسوسو لرې کولو د پاره وظیفه

**سوال:** ماته په مونځ کښې وسوسه راځي او خیال راځي چه بس مونځ پرېږدم ډېر زیات فکر مند یم چه دا وسوسې به څنګه ختمې شي؟ څه حل راته راولیګئ ډېره مهرباني به وي.

المستفتي:عبدالرشید کامران جنرل ستور....۵ربیع الثاني ۱۳۹۶

﴿۱﴾ قال ابن عابدين اختلف فى الاستشفاء با لقرآن بان يقرأ على المريض او الملدوغ الفاتحة او يكتب فى ورق و يعلق عليه او فى طست و يغسل و يسقى و عن النبى ﷺ انه كان يعوذ نفسه قال رضى الله عنه وعلى الجواز عمل الناس اليوم و به وردت الاثار.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۵۷ جلد ۵ قبيل فصل فى النظر كتاب الحظر والاباحة)

﴿۲﴾ عن جابر قال نهى رسول الله ﷺ عن الرقى فجاء ال عمر و بن حزم فقالوا يا رسول الله ﷺ انه كانت عندنا رقية نرقى بها من العقرب وانت نهيت عن الرقى فعرضوها عليه فقال ما ارى بها باساً من استطاع منكم ان ينفع اخاه فلينفعه رواه مسلم وايضاً عن عوف بن مالك الاشجعى قال كنا نرقى فى الجاهلية فقلنا يارسول الله كيف ترى فى ذلک فقال اعرضوا على رقاكم لا با س بالرقى ما لم يكن فيه شرک رواه مسلم (مشكواة المصابيح ص۳۸۸ جلد ۲ كتاب الطب والرقى)



**الجواب:** ستا دا وسوسې بدمنل او ددې د نه راتللو آرزو کول دا عین ایمان دي. کما في حدیث مسلم نعم ذاک صریح الایمان﴿۱﴾ (مشکواةص۱۹) دا نه کفر دې او نه ګناه ده ته اعوذ بالله من الشطن الرجیم لا حول ولاقوة الا بالله العلي العظیم. هره ورځ اویا ځلې وایه او حلال خوراک کوشش کوه. وهوالموفق

## دمونه او تعویذونه د احادیثو نه ثابت دی

**سوال:** دم درود، تعویذونه وغیره چه هرقسمه وي د محبت، دشمنئ، اولاد پیدا کیدلو، بیمارئ او روزګار پیدا کیدلو دپاره چه وي د قرآن او حدیث په حوالې سره صحیح دي که نه؟او رسول ﷺ څوک دم کړې دي؟ یائې چا ته د تعویذ حکم کړې دې؟ د قرآن او حدیث په حوالې سره خبر راکړئ.

المستفتي:عبدالشکور....۹۱۵۱۱۹۷۳

**الجواب:** واضحه دې وی چه پیغمبر ﷺ بیماران دم کړي دي او صحابه کرام ﷺ ته ئې د دم وئیلو اجازت ورکړې دي او صحابه کرامو ﷺ بیماران دم کړي دي او دا ټولې خبرې په بخاري شریف وغیره کښې صراحةً موجود دې.﴿۲﴾ دارنګې هغه عملیات چه په خلافِ شریعت کلماتو باندې مشتمل نه وي هغه ئې هم جائز ګرځولې دي. لحدیث مسلم اعرضوا علي رقاکم لا باس

﴿۱﴾ عن ابى هريرة رضى الله عنه قال جاء ناس من اصحاب رسول الله ﷺ الى النبى ﷺ فسالوه انا نجد فى انفسنا ما يتعاظم احدنا ان يتكلم به قال او قد وجدتموه قالوا نعم قال ذاک صريح الايمان. رواه مسلم. (مشكواة المصابيح ص ۱۸ جلد ۱ باب فى الوسوسة)

﴿۲﴾ (۱) عن عائشة ان النبي ﷺ كان ينفث على نفسه فى المرض الذى مات فيه با لمعوذات فلما ثقل كنت انفث عليه بهن وامسح بيد نفسه لبركتها فسا لت الزهرى كيف ينفث قال كان ينفث على يديه ثم يمسح بهما وجهه (۲) وعن ابى سعيد الخدرى ان ناساً من اصحاب النبي ﷺ اتوا على حي من احياء العرب ...... اذا لدغ سيد اولئک ...... فجعل يقرأ بام القرآن و يجمع بزاقه و يتفل فبرأ الخ (۳) عن عائشه قالت امرنى النبى ﷺ او امر ان يسترقى من العين (۴) عن ام سلمة ان النبى ﷺ راى فى بيتها جارية فى وجهها سفعه فقال استرقوا لها فان بها النظرة الخ (۵) عن عائشة قالت كان النبى ﷺ يعوذ بعضهم يمسحه بيمينه اذهب البا س رب الناس واشف انت الشاف لا شفاء الا شفاء ک شفاء لا يغادر سقماً. وهكذا احاديث اخر فى هذا الكتاب (صحيح البخارى ص ۸۵۴، ۸۵۵، ۸۵۶ جلد ۲ كتاب المرضى)

بالرقي مالم يكن فيـه شـرك «۱» دارنګي تعويذ ليكل او مرئ وغيره ته زوړندول د صحابه كرامو نه ثابت دي. لحديث عبدالله بن عمرو بن العاص (رواه ابـوداؤد) «۲» لهذا په دې سره انكار كول غلط فهمي يابد فهمي ده. وهو الموفق

## د وسوسې لرې كولو د پاره د مطالعې كتاب

**سوال:** (موت كے وقت) دا تصنيف د مفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله دي دا كتاب به كومې ځائې كښې ملاؤ شي يا د وسوسو لرې كولو دپاره بل كتاب اوښايئ؟

**الجواب:** دا كتاب د دارالعلوم كراچي نه راوغواړئ او د وسوسو دلرې كولو دپاره د احياء العلوم كتاب عاشر، مطالعه اوكړي.

## د خوفِ خداوندي پيدا كيدلو طريقه

**سوال:** د خوفِ خداوندي پيدا كولو ذريعه اوښايئ؟ مهرباني به وي.

السائل: پانده خان لكي مروت...۲۵ ذي الحجه ۱۴۹۲هـ

**الجواب:** د الله تعالىٰ په وعيدونو باندې په مشاهداتو كښې يقين او عقيده ساتل او په دې خيال باندې څه وخته پورې (۲۰، ۲۵ منټه) كلك پاتې كيدل د خوف باعث دي. «۳» وهو الموفق

## خيالاتِ فاسده او د هغې د پاره وظيفه

**سوال:** ماته ډير ناجائز او بد خيالونه راځي آيا په دې سره نكاح ماتيږي؟ څه وظيفه راته هم اوښايئ.

السائل: شير جان شهباز خيل بنوں.... ۱۳۹۲هـ

---

«۱» (مشكواة المصابيح ص۳۸۸ جلد ۲ كتاب الطب و الرقى)

«۲» عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ...... وكان عبد الله بن عمر ويعلمهن من عقل من بنيه ومن لم يعقل كتبه فاعلقه عليه. (ابوداؤد ص ۱۸۷ جلد ۲ باب كيف الرقى كتاب الطب)

«۳» عن ابى بن كعب قال كان النبى صلى الله عليه وسلم اذا ذهب ثلثا الليل قام فقال يا ايها لناس اذكروا الله اذكروا الله جاءت الراجفة تتبعها الرادفة جآء الموت بما فيه جاء الموت بما فيه رواه الترمذى. (مشكواة المصابيح ص ۴۵۷ جلد ۲ باب البكاء والخوف)



**الجواب:** كه دا خيالاتِ فاسده غير اختياري وي نو د حديث په بنياد سره نه ګناه ګار نه ئې «۱» او علاج ددې دادې چه اعوذ بالله من الشيطن الرجيم ومن شر نفسى ومن شر فرجي ولاحول ولاقوة الا بالله العلي العظيم روزانه كم نه كم اويا ځلې وايه فقط

## د عثماني ډلې دَ جائز تعويذونو او دمونو لره ناجائز ګرځول (الحاد) دي

**سوال:** تعويذ جائز دي كه نه؟ ځكه چه عثماني ډلې والا دې باره كښې رسالې ليكلي دي چه دا شرك او ناجائز دي نو تاسو پوره وضاحت اوكړئ.

المستفتي: محمد يوسف ملك آباد جدون صوابي يكم ذي الحجه ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** دا كومې مسئلې چه د حزب الله پارټۍ مشر پروفيسر عثماني يا ډاكټر او كيپټن عثماني شائع كوي تولې د شريعت نه خلاف دي. دا خلق د قرآن او حديث خود ساخته (د علماء امت نه خلاف) تشريح كوي. كوم تعويذونه چه خلافِ شريعت نه وي هغه جائز دي. «۲» او جائز د مونه ناجائز ګرځول الحاد او بې ديني ده. «۳» فقط

---

«۱» عن ابن عباس ان النبى صلى الله عليه وسلم جاءه رجل فقال انى احدث نفسى با لشئ لان اكون حممة احب الى من ان اتكلم به قال الحمد الله الذى ردا مره الى الوسوسة رواه ابوداؤد. (مشكواة المصابيح ص ۱۹ جلد ۱ باب فى الوسوسة)

«۲» عن عوف بن مالك قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اعرضوا على رقاكم لا بأس بالرقى ما لم تكن شركاً. (ابو داؤد ص ۱۸۶ جلد ۲ باب ما جاء فى الرقى كتاب الطب) و عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ......وكان عبدالله بن عمرو يعلمهن من عقل من بنيه و من لم يعقل كتبه فاعلقه عليه. (ابوداؤد ص ۱۸۷ جلد۲ باب كيف الرقى كتاب الطب)

«۳» عن عائشة قالت امرنى النبى صلى الله عليه وسلم او امر ان يسترقى من العين. (بخارى) و عن عائشة قالت كان النبى صلى الله عليه وسلم يعوذ بعضهم بمسحه بيمينه اذهب البأس رب الناس واشف انت الشاف لا شفاء الا شفائك شفاءً لا يغادر سقما (واحاديث اخر فى هذا الباب). (صحيح البخارى ص ۸۵۵، ۸۵۶ جلد۲ كتاب المرضىٰ). قال ابن عابدين و لا بأس بالمعاذات اذا كتب فيها القرآن او اسماء الله تعالىٰ و يقال رقاه الراقى رقيا ورقية اذا عوذه و نفث فى عوذه قالوا و انما تكره العوذه اذا كانت بغير لسان العرب و لا يدرى ما هو و لعله يدخله سحر او كفر او غير ذلك و اما ما كان من القرآن او شئ من الدعوات فلا بأس به. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۵۷ جلد ۵ قبيل فصل فى النظر كتاب الحظر والاباحة)

## په ابجد سره قرآن لیکل او د څناورو په غاړه کښې تعویذ آویزان کول

**سوال:** قرآن د لفظ او معنی دواړو نه عبارت دې نو آیا د قرآن لیکل د ابجد په حساب سره جائز دي که نه؟(۲) چه یو آیت اولیکلې شي او په کپړه کښې اوګنډلې شي اوتعویذ جوړ شي نو آیا داسې تعویذ د څناور په غاړه کښې جائز دي که نه لکه غوا وغیره؟ بینوا توجروا.

المستفتي: متعلم دارالعلوم حقانیه.....یکم\ربیع الثاني ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** (۱) داسې لیکل د قرآن په الفاظو باندې د لالت کوي او په رسمي او موروثي قرآن باندې دلالت نه کوي نو په هغې باندې د مصحف اطلاق نشي کیدلې لکه څنګه چه په (۷۸۲) باندې د بسم الله اطلاق نه کیږي. (۲) ممنوع او ناجائز خو د کلماتو مبارکه توهین دې حیواناتو او ماشومانو ته آویزان کولې نه. څکه چه عبدالله بن عمرو بن العاص خپلو ماشومانو ته داسې تعویذ آویذان کړې وو چه په مبارکو الفاظو باندې مشتمل وؤ.(رواه ابوداؤد) ﴿۱﴾ وهو الموفق

## تعویذونه لیکل او په هغې باندې اجرت اخستل

**سوال:** تعویذونه لیکل په شریعت کښې څنګه دي؟ او پیسې پرې اخستل څنګه دي؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتي: شاه محمد لانډهي کراچي نمبر ۲۲ حسین ټیکسټائل مل ۵\۱۴\۱۹۷۳

**الجواب:** د کومو تعویذونو مضمون چه شرعي وي د هغې لیکل جائزدي للتعامل ولحدیث عبدالله بن عمرو بن العاص (رواه ابوداؤد) ﴿۲﴾ او اجرت اخستل پرې هم جائزدي. لان الکتابة صنعة من الصناعات فافهم،﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ کان عبد الله بن عمر ویعلمهن من عقل من بنیه و من لم یعقل کتبه فا علقه علیه.
(ابوداؤد ص ۱۸۷ جلد ۲ باب کیف الرقی کتاب الطب)
قال ابن عابدین و علی الجواز عمل الناس الیوم و به وردت الاثار و لا بأس بان یشد الجنب و الحائض التعاوید علی العضد اذا کانت ملفوفة.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۵۷ جلد ۵ قبیل فصل فی النظر کتاب الحظر و الاباحة)

﴿۲﴾ و کان عبد الله بن عمر و یعلمهن من عقل من بنیه و من لم یعقل کتبه فا علقه علیه.
(ابوداؤد ص ۱۸۷ جلد ۲ باب کیف الرقی کتاب الطب)

﴿۳﴾ عن ابن عباس ان نفراً من اصحاب رسول الله ﷺ مروا بماء فیهم لدیغ (بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)



## د ناجائزه کلماتو او باطلو عقیدو نه خالي ختم خواجګان جائز دي

**سوال:** څمونږ په جمات کښې امام صاحب ختم خواجګان کوي، مهرباني او کړئ د قرآن او حدیث په رنړا کښې مدلل جواب راکړئ چه دا جائز دي که نا جائزدي؟

المستفتي:محمد سراج پشاوري متعلم دارالعلوم حقانیه... ۱۰\۱۴\۱۹۷۳

**الجواب:** که دا ختم په ناجائزه کلماتو باندې مشتمل نه وي لکه یا عبدالقادر جیلاني شیئاً لله او د روحونو د حاضریدلو د عقیدې نه خالي وي نو جائز دي.(۱) فقط

## د وسوسو لرې کیدلو د تدریس او مطالعې د شوق د پاره وظیفه

**سوال:** بنده د علم شوق لري لیکن وسوسه ډیره راځي تر دې چه ډیر کرته مطالعه هم هیره شي په تدریس کښې هم خبره هیره شي په تقریر کښېې هم تکلیف وي او په تدریس او تقریر کښې ویره ډیره لرې، نو کومه وظیفه چه مناسب وي هغه اولیکئ. مهرباني به وی؟

المستفتي:لعل مرجان مدرسه حمادیه ډرګ کالوني ۲
کراچي نمبر۲۵,۲۵ شوال\۱۴۰۴ھ

---

(بقیه حاشیه) او سلیم فعرض لهم رجل من اهل الماء فقال هل فیکم من راقٍ ان فی الماء رجلا لدیغا او سلیما فا نطلق رجل منهم فقرأ بفاتحة الکتاب علی شاء فبرأ فجاء بالشاء الی اصحابه فکر هواذلک و قالوا اخذت علی کتاب الله اجراً حتی قدموا المدینه فقالوا یا رسول الله اخذ علی کتاب الله اجراً فقال رسول الله ﷺ ان احق ما اخذتم علیه اجراً کتاب الله. وهکذا فی باب هل یو اجر الرجل نفسه من مشرک فی دار الحرب. باب الاجارات.
(صحیح البخاری ص ۸۵۴ جلد ۲، ص ۳۰۴ جلد ۱ باب الرقی بالقرآن و المعوذات)
قال ابن عابدین لان المتقدمین المانعین الا ستجار مطلقا جوزوا الرقیة بالاجرة و لو با لقرآن کما ذکره الطحاوی لا نها لیست عبادة محضة بل من التداوی.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۳۹ جلد ۵ مطلب الاستیجار علی الطاعات کتاب الاجارة)
وفی الدر المختار و فیها استأ جره لیکتب له تعویذًا لاجل السحر جاز ان بین قدر الکاغذ والخط و کذا المکتوب. (الدر المختار ص ۶۳ جلد ۵ مطلب فی اجرة صک القاضی و المفتی)

﴿۱﴾ قال العلامه ابن نجیم و فی البزازیه قال علماؤنا من قال ارواح المشائخ حاضرة تعلم یکفر.
(بحر الرائق ص ۱۲۴ جلد ۵ احکام المرتدین)

**الجواب:** دا کلمه اعوذبالله من الشیطن الرجیم ولاحول ولاقوة الا بالله العلی العظیم. روزانه سحر وخت کښې سل ځلې وایه اودَ ماسخوتن دَمونځ نه پس یوولس ځلې سورة کوثر لوله. امید دې چه الله کریم خپل کرم اوکړی. وهوالموفق

## د الکوحل په سیاهۍ سره تعویزونه او ساختونه لیکل

**سوال:** علمائې دین دې مسئله کښې څه فرمائي چه خط وکتابت د تعویذونو او ساختونو په داسې سیاهۍ سره کول چه سپرټ پکښې ګډ شوې وي څه حکم لري؟

المستفتي: مولوي محمدصدیق قلعه عبدالله تحصیل ګلستان ضلع پشین ۲۳شوال۱۴۰۴ھ

**الجواب:** ترڅو پورې چه دا معلومه شوې نه وي چه دا الکوحل چه د سیاهۍ، دوابیٔ او عطرو سره ګډشوې دَ انګوري دي که کهجوري نو هغه وخت پورې د استعمال د حرمت فتوی نه شي ورکولې کیدې. والوجه فیه ان الکوحل من اقسام الخمر فیکون حکمه حکم الخمر فافهم، وهوالموفق

## د عشق مجازي نه د نجات د پاره وظیفه

**سوال:** ځمایو دوست دې چه دیوبې ډیرې هلک په عشق کښې مبتلا دې د شپې وخت کښې هغه سبق وائي او تقریباً د شپې لس نیمو بجو(۱۰:۳۰) پورې یو ځائې وي. د چهتې په وجه باندې عاشق نه سخت تکلیف وي او هغه د راشتنې عشق دعوي کوي اود غلطو خیالاتو نه د براءت اظهارکوي. ډیر پوهولوسره هم منلو ته تیار نه دې نو درخواست دې که څه وظیفه اوښائي نو ډیر ښه به وی؟

المستفتي: خالد الرحمان کوهاټ....۱۲ربیع الاول ۱۴۰۱۰ھ

**الجواب:** ددې عاشق دپاره مناسب دې چهآیت زین للناس... تا... حسن المآب(۱) دَماسخوتن مونځ نه پس یوولس ځلې اووائي او پر سینه باندې دم کړې چه الله تعالی ورته ددې خراب انجام نه نجات ورکړي. وهوالموفق

﴿۱﴾ (پ:۳ سورة ال عمران رکوع: ۱۰ آیت :۱۴)



## د ویرې او قوتِ حافظې وظیفه

**سوال:** په بنده باندې بعضې وختونو کښې ویره راځي. او قوتِ حافظه ہم کمزورې ده ددې باره کښې څه وظیفه اوښایئ مهرباني به وي.

المستفتي: نامعلوم......۱۳جمادي الثاني ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** د ویرې ختمیدو دپاره "یا وهاب" څوارلس ځل وایه، اوپه یوائې والی کښې "یاجبار" ۲۱ ځلې وایه او د حافظې د قوي کیدلو دپاره د ماسخوتن دَمونځ نه مخکښې یا روستو یوولس ځلې سورة کوثر وایه. وهوالموفق

## په آئینه کښې د غل معلومولو حکم

**سوال:** بعضې عاملان په آئینه کښې غَل معلوموي نو آیا په دې یقین کول جائز دي. اګرچه هغه غل بیا د غلا اقرار هم اوکړي. ددې شرعي حکم څه دې؟

المستفتي: عبد الحنان بارګل خیل وانا ډیره اسماعیل خان۲۲رمضان۱۴۱۰ھ

**الجواب:** دا عامل او په ده باندې اعتماد کولو والا دواړه مردودالشهادة دي دا عمل د کهانت یوه شعبه ده (۱) په دیکښې بعضې وخت کښې د واقعې سره برابر او موافق مشاهده کیږي او کله مخالف بلکه ډیر کرته عامِل او غل د مشهورتیا دپاره یوه معاهده کوی. وهوالموفق

## جائزو کلماتو والا تعویذونه اویزان کول جائز دی

**سوال:** ځمونږ ځائې کښې یو مولانا صاحب دې هغه وائي چه تعویذونه آویزان کول که قرانې آیاتو نه او د الله تعالی نومونه هم وي خو شرک دې او ناجائزدې. شرعاً ددې حکم اوښایئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالرزاق دوحه قطر دوحان المانع کیپ...۱۹\۱۲\۱۴۰۱ھ

﴿۱﴾ (قوله والکهانة) وهی تعاطی الخبر عن الکائنات فی المستقبل و ادعاء معرفة الاسرار قال فی نهایة الحدیث و قد کان فی العرب کهنة کشق و سطیح فمنهم من کان یزعم ان له تابعاً یلقی الیه الاخبار عن الکائنات و منهم انه یعرف الامور بمقدمات یستدل بها علی مواقعها من کلام من یسأله او حاله او فعله و هذا یخصونه با سم العراف کالمدعی معرفة المسروق و نحوه و حدیث من اتی کاهنا یشمل العراف و المنجم والعرب تسمی کل من یتعاطی علماً دقیقاً کاهنا و منهم من یسمی المنجم و الطبیب کاهنا. (ردالمحتار ص۳۴ جلد ۱ مطلب فی الکهانة مقدمه)

**الجواب:** ناجائز تعویز حرام دي او جائز تعویذ چه په هغې کښې د قرآن الفاظ وي یا نور څه جائز الفاظ لیکلي شوي وي نو هغه جائز دي.

لما رواه ابو داؤد ص ۵۴۳ ج ۲ کتاب الطب و کان عبدالله بن عمرو یعلمهن من عقل من بنیه و من لم یعقل کتبه فاعلقه علیه ﴿۱﴾ قلت و اما التمائم فهی الخزرات کما صرحوا به و ما اشتملت علی الکلمات الشرکیه فلیراجع الی شروح الاحادیث ﴿۲﴾ و هو الموفق

## د نوک په ذریعې سره غل یا نور کارونه معلومول

**سوال:** څمونږ په علاقه کښې یوه زنانه ده هغه په نوک باندې رنګ اولګوي او وائي چه زه دَم وایم ته دې ته ګوره چاچه په تا باندې تعویذ کړې وي یائې درنه غلا کړې وي هغه به پکښې راځي ته به ئې اووینې. او ګوره هغه فلانکې قبر کښې تعویذ ورمنډې. دا فلانکې ستا دشمن دې. په دې طریقې سره د خلقو نه پیسې ګټي او خلقو کښې دشمني خوروي، ددې شرعي حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: صوفي شاکر الله پریمئر شوګر ملز مردان... ۲۴ ذي قعده ۱۴۰۸ھ

﴿۱﴾ (ابوداؤد ص ۱۸۷ جلد ۲ کتاب الطب باب کیف الرقی)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین (قوله التمیمة المکروهة) اقول الذی رأیته فی المجتبیالتمیمة المکروهة ما کان بغیر القرآن و قیل هی الخزرة التی تعلقها الجاهلیة. فلتراجع نسخة اخری. وفی المغرب و بعضهم یتوهم ان المعاذات هی التمائم و لیس کذلک انما التمیمة الخزرة و لا بأس با لمعاذات اذا کتب فیها القرآن او اسماء الله تعالی و یقال رقاه الراقی رقیا ورقیة اذا عوذه و نفث فی عوذته و انما تکره ا لعوذه اذا کانت بغیر لسان العرب و لا یدری ما هو و لعله یدخله سحراو کفر او غیر ذلک و اما ما کان من القرآن او شئ من الدعوات فلا بأس به ...... و فی الشلی عن ابن الاثیر التمائم جمع تمیمة و هی خزرات کانت العرب تعلقها علی اولادهم یتقو ن بها العین فی زعمهم فا بطلها الاسلام الخ

(ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۵۷، ۲۵۸ جلد ۵ قبیل فصل فی النظر کتاب الحظر و الاباحة).

قال العلامه آلوسی و عند ابن المسیب یجوز تعلیق العوذة و رخص الباقر فی العوذة تعلق علی الصبیان. روح المعانی و فی فردوس دیلمی ص ۶۰ لابأس بتعلیق التعویذ من القرآن رواه ابو نعیم عن عائشة رضی الله عنها. و هکذا فی سنن الدارمی ص ۲۱۱ و مصنف عبد الرزاق ص ۳۴۵. (مرتب)



**الجواب:** دا عمل ناجائز دي. ﴿۱﴾ ځکه چه دیکښې دا خطره ده چه پاک سړی باندې تهمت اولګوی او بدنام شي. فقط. وهوالموفق

## د عاملانو نه علاج او د تعویذونو حکم

**سوال:** (۱) دلته د بعضې عاملانو دا طریقه ده چه بیماران ورته راشي نو هغه کتاب اوګوري او د کتاب کتلو نه پس معلومه نه ده چه د جناتو په مدد سره یا څه نور حساب کتابِ سره بیمارته وائي چه په تا باندې د پیریانو غلبه ده یا نور څه دَ جادو آثر دي او بعضې خو تر دې پورې بنائی چه د فلانکې مُلک نه پیرې راغلې دي یا فلانکې په تا باندې جادو کړې دي ددې څه حکم دې؟ (۲) که عاملان دا کارونه د پیر یانو په مدد سره کوي او دا مریض پرې عمل او کړي او په دیکښې دبل چا نقصان هم نه وي نو بیا دا عمل شرعاً څنګه دي؟ (۳) که په تعویز کښې ګمنامه نقشې وي چه وئیلې نه شی نه نو دهغې څه حکم دې؟ (۴) په عاملانو باندې علاج کول څنګه دي؟

المستفتي: عبدالحمید ډي آئي خان...... ۱۲ شوال ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** غالباً دا الفاظ عوامو ته دهوکې ورکولو دپاره استعمالیږي سیوا د افتاء او دوائی علاج کولو او د خوب د تعبیر نه. (۲) دا هم دهوکه ورکول دي شرک نه دي پیریان په معالجاتو او الهاماتو کښې د انسانانو درجوته رسیدل نشي کولې. (۳) داسې تعویز ممنوع نه دي. ﴿۲﴾ لعدم تیقن اشتماله علي الکلمات الشرکیه لیکن دوکه ورکول دي. (۴) ځان ساتل تري نه ضروري دي. وهوالموفق

## د ایمان په باره کښې د وسوسو او وهمونو وظیفه او علاج

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه مثلاً دهغه په زړه کښې د توهین رسالت. او توهینِ صحابه کرام رضی اللہ عنہم وهمونه او وسوسې

﴿۱﴾ قال ابن عابدین و منهم انه یعرف الامور بمقدمات یستدل بها علی موافقها من کلام من یسأله او حاله او فعله و هذا یخصو نه با سم العراف کا لمدعی معرفة المسروق و نحوه الخ

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۴ جلد ۱ مطلب فی الکهانة مقدمه)

﴿۲﴾ عن عوف بن مالک قال قال رسول الله ﷺ اعرضوا علی رقاکم لا باس بالرقی ما لم تکن شرکاً. (ابوداؤد ص ۱۸۶ جلد ۲ باب ما جاء فی الرقی کتاب الطب)

ځی راځي. مثلاً چه کله دده خوا کښې د پیغمبر علیه السلام او صحابه کرام رضی الله عنهم
بنائسته او صاف بیان شي لکه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان اکحل العینین و ان
عائشة رضی الله عنها کانت بکرة نو دده په زړه کښې ددې خبرو متعلق مختلفې
وسوسې راځي او دغه دقرآن، حدیث او محراب المسجد او نور شعائرو په
باره کښې هم. او داسې وائي کافر شوم ما ددې باطلو وهمونو دتیرو نه
اوباسئ او سخته پریشاني ده، ددې دپاره څه وظیفه او حل تلاش کړئ؟
ډیره مهرباني به وي.

المستفتي: حافظ سید قاسم مدرسه انجمن تعلیم القرآن پراچګان
کوهاټ ۲۴/۵/۱۹/۰۴

**الجواب:** دا سړې مسلمان دي (۱) سحر او ماښام دې سل سل ځله اعوذ بالله من الشیطان الرجیم لاحول ولاقوة الا بالله العلي العظیم وائي. او داسې خیالات دې دزړه نه اوباسي او نورو خیالاتو کښې دې مشغول شي نو ان شاءالله دا بیماري به زر تر زره ختمه شي. وهو الموفق.

## د ظالم د هلاکت د پاره ختم قرآن کول

**سوال:** د غل یا ظالم وغیره د هلاکت دپاره ختم قرآن پخپله کول یا په بل چا باندې کول جائز دي. که نه؟ او که هغه غل یا ظالم ددې عمل په وجه باندې هلاک شي نو دهغې څه حکم دې؟

المستفتي: مولوي ګل نور شاه کلکوټ دیر بالا.... ۲ستمبر ۱۹۷۵ھ

**الجواب:** د عملیاتو په ذریعې سره څوک هلاکول حرام دي لکه څنګه چه په ظاهري اسبابو سره حرام دي. البته که داسې کس پرې هلاک کړي چه شرعاً دهغه مرګ جائز وي. نو بیا جائز دي. (۲) فقط

---

(۱) عن ابن مسعود قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان للشیطان لمة بابن ادم و للملک لمة فاما لمة الشیطان فایعاد بالشر و تکذیب بالحق و اما لمة الملک فا یعاد با لخیر و تصدیق با لحق فمن و جد ذلک فلیعلم انه من الله فلیحمد الله ومن وجد الاخری فلیتعوذ بالله من الشیطان الرجیم . ثم قرأ الشیطان یعدکم الفقر و یامرکم با لفحشاء رواه الترمذی . ( مشکواة المصابیح ص ۱۹ جلد ۱ باب فی الوسوسة )

(۲) عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وقال قال رسو ل الله صلی الله علیه وسلم لا یحل دم امرئ مسلم یشهد ان لااله الا الله وانی رسول الله الا با حدی ثلث النفس با لنفس و الثیب الزانی و المارق لدینه التارک للجماعة متفق علیه .( مشکواة المصابیح ص ۲۹۹ جلد ۲ کتا ب القصاص الفصل الاول )



## تعویذ کښې د ابلیس، فرعون، او شداد وغیره نومونه لیکل

**سوال:** بعضې خلق د فرعون، ابلیس او شداد نومونه اولیکي او په غاړه کښې ئې اچوي داسې تعویذ لیکل او غاړه کښې اچول جائز دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: شهباز خان حقاني بډه بیر پشاور... ۲۲جون ۱۹۸۷ء

**الجواب:** دا تعویذ ناجائز دي په دې نومونو کښې هیڅ تبرک نشته البته د قرآن پاک په الفاظو کښې د راتلو په وخت کښې ئې د نورو الفاظو پشان حکم دې. (۱) وهو الموفق

## په تعویذ او تمیمه کښې فرق

**سوال:** ځمونږ په سکول کښې یو ماسټر صاحب، خُفیه طور سر د ډاکټر عثماني پیرو کار دې هغه وائي چه ,,من علق التمیمة فقد اشرک،، چا چه هم تعویذ آویزان کړو هغه شرک او کړو. دقرآن او سنت په رڼړا کښې ددې خیزونو څه حکم دې؟

المستفتي: علي زمان عربي ټیچر نوشهره کلان..... ۱۷/۵/۱۹۹۱

**الجواب:** تعویذ لیکل او آویزان کول جائز دي.

**کما فی ابی داؤد ص ۵۴۳ جلد ۲ عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یعلمهم من الفزع کلمات . أعوذ بکلمات الله التامات الی اخرها . وکان عبدالله بن عمرو یعلمهن من عقل من بنیه ومن لم یعقل کتبه فاعلقه علیه .**

او تمیمه آویزان کول ناجائز دي. لحدیث عبدالله بن عمرو بن العاص ما ابالي ان انا شربت تریاقا او اتعلقت تمیمة . ابوداؤد ص ۵۴۰ ج۲، لیکن تمیمه خزرات (کنجکو)، د ځناورو نوکونو او هډوکو ته وائي مبارکو کلماتو لیکلې شوې ته تمیمه وئیل غباوت یا غوایت دې. (۲)

---

(۱) قال ابن عابدین وانما تکره العوذة اذا کانت بغیر لسان العرب ولا یدری ما هو و لعله یدخله سحر او کفر او غیر ذلک واما ما کان من القرآن او شئی من الدعوات فلا بأس به .
(رد المحتار هامش الدر المختار ص ۲۵۷ جلد ۵ قبیل فصل فی النظر کتاب الحظر والاباحة) (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

پیغمبر علیه السلام فرمائي :ان الرقي والتمائم والتوله شرک. ص٥٤٢ جلد٢ .نو خنګه چه هر دم ناجائز نه دي بلکه شرکي کلماتو والا دم ناجائز دي دغه شان هر تعویذ هم ناجائز نه دي بلکه شرکی کلماتو والا تعویذ ناجائز دي.

وهو الموفق

(بقیه حاشیه ګرشته صفحه) (٢) قال العلامه ابن عابدين التميمة المكروهة ما كان بغير القرآن و قيل هى الخزرة التى تعلقها الجاهلية ...... و بعضهم يتوهم ان المعاذات هى التمائم و ليس كذلك انما التميمة الخزرة ولا بأس بالمعاذات اذا كتب فيها القرآن او اسماء الله تعالىٰ ...... وانماتكره العوذة اذا كانت بغير لسان العرب ولا يدرى ماهو ولعله يدخله سحر او كفر اوغير ذلك ...... و فى الشلى عن ابن الاثير التمائم جمع تميمة و هى خزرات كانت العرب تعلقها على اولادهم يتقون بها العين فى زعمهم فابطلها الاسلام الخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٢٥٧ جلد ٥ قبيل فصل فى النظر)





# كتاب الرؤيا وتعبيرها

قال الله تعالیٰ

وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَأْوِيْلِ الْأَحَادِيْثِ

(الاية)

...



# كتاب الرؤيا وتعبيرها

## په خوب کښې د سجدې په ځائې باندې ګندګي ليدل

**سوال:** الاستاذ المحترم حفظه الله المنان من الهموم فی الدنيا والآخرة !

السلام عليكم ورحمة الله و بركاته! امابعد انی سائل فی امر قد وقع منه فی قلبی من الاضطراب والخوف فان بينت لی بيانا شافيا فهو كفانی انی خشيت ان اكون تحت قوله تعالیٰ ان تحبط اعمالكم و انتم لا تشعرون .لانی منذ جئت الی المدرسة ما رئيت رسول الله ﷺ فی النوم وايضا ما رئيت الرؤيا اظن انه جزء من اربعين اجزاء النبوة الا نادرا و نسيانا والحال انی اقرء كتب الاحاديث اذا كان هذا حالی الآن فكيف بعد الفراغ من العلم ولا اعلم من خطيئة فلذا اقول لعل انا لا اشعر بخطيئتی فامرنی بالشیٔ حتیٰ يحصل به ما هو المقصود الاعظم و يزيل به مرض قلبی حتی اریٰ فی القلب نورا بفضل الله تبارک و تعالیٰ و ايضا فامرنی بالدعاء يحصل به روية النبی ﷺ والله انی رئيت نومة فی ظهيرة الامس . والله لا طاقة لی ان ابين لكم مشافهة فلذا انا أرسل بالصديق و لو كان فيه قلةالحياء فعافنی.

قد رئيت فی النوم و كنت مصليا فاذاقمت من الركعة و نظرت فكنت مستقبل المشرق فتحولت الی القبلة فاذا نظرت الیٰ موضع السجود فاذا رئيت قريب السجدة قذرات كثيرات فاردت السجدة فوقع الحصير علی القذر فسجدت عليها حتی وصل اثر القذر الی جبهتی فرفعت راسی وايضا كنت متحيرا هذا القذر وقع منی ام من الغير فمن الشفقة ان ترسل و تكتب الی تأويل روياى علی قدر ما تعلم به و تعطی بيدالمرسل والحاصل ای تاويل كان فاكتب لی وارسلنی حتی تدفع منی الوساوس؟

المستفتي: نامعلوم طالب علم دار العلوم حقانيه اکوړه خټک.

**جواب:** من اراد ازالة الامور الغير الاختيارية او تحصيلها فلن ينجو من الغم والحزن و منها الرؤيا الصالحة و اما تعبير الرؤيا المسطورة ففيها اشارة الى النزول و هو التوجه الى الخلق لارشادهم و كذا الىٰ حصول الدنيا- و هو الموفق

## د پیغمبر ﷺ په خوب دَ کتنې لیدلو تعبیر

**سوال:** ماته په خوب کښې د سرکاردوعالم ﷺ زیارت نصیب شو. په داسې حالت کښې چه د حضور علیه السلام په لاس مبارک کښې یو تالۆو صحیح راته یاد نه دی چه څه رنګ ئې وؤ لیکن لږ یا د دي چه سُور رنګ ئې وؤ. په هغې کښې د چینئ پشان څه وؤ، چه پیغمبر علیه السلام به تري نه لاس ډکولو او تقسیمولو به ئې لیکن مخې ته ئې هیڅوک نه وو صرف تقسیم کولو په حالت کښې مي اولیدو، هغه وخت کښې مادرود شریف وئیل شروع کړل او ځما په زړه باندې یو خاص کیفیت جاري شوې وو او پیغمبر علیه السلام ته مي کتل؟ بینوا توجروا

السائل: اعجاز علي واه کینټ.....۱۵شوال۱۳۹۵

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم د السلام علیکم نه پس خبره داده چه تا د پیغمبر علیه السلام د صفت قابلیت د بعضې آثارو مشاهده کړې ده بې شکه د حاضرینو او غائبینو دواړو تقسیم کونکې دې﴿۱﴾ الله تعالی دې تا له د نیک اولاد نعمت درکړي. آمین

## په خوب کښې د نبي علیه السلام دَخلافِ شریعت حکم ورکولو مسئله

**سوال:** که په خوب کښې څوک نبي علیه السلام او ویني او هغه څه حکم اوکړي خو هغه حکم د شریعت نه خلاف وي نو آیا په هغې عمل کولې شي که نه؟.

السائل: اکبر حسن لنډي کوتل پشاور....۱۳۹۲هجري

**الجواب:** دخوب په خبرو کښې داشرط دې چه دژوند دخبرو سره متصادم نه وي﴿۲﴾

﴿۱﴾ عن معاوية قال قال رسول الله ﷺ من يرد الله به خيراً يفقهه فى الدين وانما انا قاسم والله يعطى متفق عليه .(مشكواة المصابيح ص ۳۲ جلد ۱ كتاب العلم الفصل الاول)

﴿۲﴾ قال القارى و لذا لم يعتبر احد من الفقهاء جواز العمل فى الفروع الفقهية بما يظهر للصوفية من الامور الكشفية او من حالات المنامية (مرقاة المفاتيح شرح مشكواة ص ۳۵۸ جلد ۹ كتاب الفتن)



دتصادم او تکراؤ په صورت کښې به دا خبرې د شیطان په خبرو باندې حمل کولې شي. کما وجهه به حدیث تلک الغرانیق العلیٰ الخ.﴿۱﴾

## په خوب یا مراقبه کښې د ذاتِ پاک لیدلو دعوی

**سوال:** د یو پیر صاحب دعوي ده چه د ذکر په وخت کښې ما ذاتِ پاک سره معانقه اوکړه آیا دعوی صحیح ده؟

المستفتي: ظفرعلي تهانوي مهاجر کیمپ کراچي نمبر ۲۰

**الجواب:** کیدیشي مراد ئې خوب یا مراقبه کښې لیدل وي چه هغه نه ممنوع دي او نه مخصوص ﴿۲﴾ فقط

## د پیغمبر علیه السلام په خوب کښې خلقو لره متبع جوړول او د چا نه د مال اخستلود حکم شرعي حیثیت

**سوال:** (۱) علمائې دین دې باره کښې څه فرمائي یو سړې وائی چه څه پیغمبر علیه السلام د خوب په ذریعې سره خپل جانشین جوړ کړې یم لهذا خلق دې ځما تابعداري کوي نو آیا د شریعت په رنړا کښې په مسلمانانو باندې ددې سړي تابعداري ضروري ده؟ ددې شرعي حیثیت څه دې؟

﴿۱﴾ په فوائدعثمانیه کښې دي چه علامه یا قوت په معجم البلان کښې لیکل دي چه د قریشو به دکعبې طواف کولو او دا الفاظ به ئې وئیل واللات والعزي ومناة الثالثة الاخري هولاء الغرانيق العلي وان شفا عتهن لترتجي. د تفسیر کتابونو په دې ځائې یوه قیصه نقل کړې چه د جمهور محدثینو په اصولو باندې د صحت درجې ته نه ده رسیدلې. او که في الواقع ئې څه اصل وي نو کیدیشي چه نبي علیه السلام د مسلمانانو او کافرانو په مخلوط مجمع کښې دا سورت وئیلې وي او دکافرانو عادت وو چه خلق قرآن وانوري او په مینځ کښې ګړبړ شروع کړي. کما قال الله تعالی وقاله الذي وقال الذين كفروا لا تسمعوا لهذا القران والغوا فيه لعلكم تغلبون. (حم السجده رکوع:٤) کله چه ئې دا ایت اولوستلو نو شیطان به دده په آواز کښې آواز ملاؤ کړې وي او دده په لب ولهجه باندې به ئې د الفاظ وئیلې وي کوم چه ددوي په ژبو باندې وؤ. تلک الغرانيق العلي.....الخ. روستوبیا تعبیر او ادا کښې تصرفات اوشول نو څه څه ئې ترنه جوړ کړل ګنې ظاهره ده چه د نبي په ژبه باندې د شیطان دومره تسلط چرته کیدلې شي او د کوم خیز چه امکان کیدلې شي دهغې په مدح باندې دهغوي څه معني.(تفسیرعثمانی سورة الحج آیت: ۵۳)

(والتفصيل في الروح المعانى سورة الحج الاية: ۵۳ جلد ۱۰ ص ۲۰۰)

﴿۲﴾ قال العلامه ملا على قارى ان صح عن احد دعوى نحوه (رؤية الله تعالىٰ فى الدنيا) فيمكن تأويله بان غلبة الاحوال تجعل الغائب كالشاهد حتى اذا كثر اشتغال السر بشئ و استحضاره له يصير كانه حضر بين يديه انتهى و يؤيده حديث الاحسان ان تعبد الله كانک تراه و كذا حديث عبد الله بن عمر حال الطواف كنا نتراءى الله .الخ

(شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص ۱۲۳ جوازرؤية البارى جل شانه فى الدنيا)

(٢) یو سړي بل غټ مالدار ته اووئیل چه ما پیغمبر ﷺ په خوب کښې اولیدلو او ماته ئې اووئیل چه فلانکې مالدار سړي ته لاړ شه کار به دې اوشي آیا دا خوب صحیح دې؟ او ددې په وجه باندې په مالدار باندې تابعداري لازمه ده؟ جواب راکړئ.

المستفتي: منصورالرحمان جامعه احسن العلوم ترسټ گلشن اقبال کراچی ١٤١٠ھ

**الجواب:** (١) که دې ئې واقعي جانشین مقرر کړې وي نو خلق به پخپله باندې دده په دائره کښې داخل شي. نه په ده باندې دعوت ورکول ضروري دي او نه په خلقو باندې ددې دعوت تابعداري ضروري ده. (٢) که دا سړې خپل خوب په دلائلو سره ثابت کړي نو صحیح ده ګني دده په صرف دعوي کولو باندې اعتماد کول بې قاعدې اعتماد دې. وهو الموفق

## د بنګلې نه مسلسل اوبه بهیدل

**سوال:** ما په ١٩٧٤ء کښې په اسلام آباد کښې یوه بنګله جوړه کړې وه ځه وطن نه بهر ووم ځما دوه رونړه پرله پسې نګراني کوله خو هغوي مړه شول ځه اوس هره میاشت خوب وینم چه کور تراوسه پورې مکمل نه دې او مسلسل ترې نه اوبه بهیږي د څو کالو نه داسې خوب وینم مهرباني اوکړئ تعبیر راکړئ.

السائل: عبدالجلیل ایم اې ارباب کالوني تهکال پشاور.....٢رجب١٤٠٢ھ

**الجواب:** (١) تعبیر یو مشکل خیز دې ته الله والا خلقو ته نقد صدقه ورکوه چه دا خطرې پټې شی. ﴿١﴾ والسلام.

## پیغمبر ﷺ د ګورو نانک په شکل لیدل د خوب لیدلو والا په انحراف باندې تنبیه ده

**سوال:** یو سړي مرزا عبدالرشید ربوه خپل خوب بیانوي داسې لیکي چه ځما سترګې ورغلې اومې کتل چه جمات ته ورغلم هر طرفته سپوږمئ دي څومره په زوره چه ذکر کووم خوند ډیریږي. او سپوږمئ ښه ښکاره کیږي په محراب کښې د حضرت ګورو نانک بابا پشان بزرګ شکل کښې پیغمبر ﷺ تشریف

﴿١﴾ عن انس قال قال رسول الله ﷺ ان الصدقة لتطفئ غضب الرب و تدفع میتة السوء رواه الترمذی (مشکواة المصابیح ص ١٦٨ جلد ١ باب فضل الصدقة الفصل الثانی)



فرمادې. د پیغمبر ﷺ ګیر چاپیره علاقه دمره تیزه رنړا ده چه سترګې ورته پرقیږي.....الخ دا خوب مرزا عبدالرشید د اشاعت دپاره روزنامه الفضل ربوه. ته الیګلو هغوي په ٦نومبر ١٩٨٢ په کالم نمبر ٣ کښې چاپ کړو او دلته خپل مُلک کښې او بهر ملکونو کښې تقسیم شو د جواب کولو خبره داده چه آیا په مذکوره عبارت سره (نعوذ بالله) د پیغمبر ﷺ د توهین طرف نه واضح کیږي؟ او آیا مرزا عبدالرشید او د الفضل ایډیټر مسعود احمد دهلوي او پرنټر سید عبدالحئ (ددې په لیږلو، چاپ کولو او نشر واشاعت په وجه) دا خلق د توهین مرتکب نه شول؟ جواب راکړئ.

المستفتي: مولانا محمد شریف جالندهري ناظم اعلی مجلس تحفظ ختم نبوت پاکستان ملتان.....٢٥جمادي الثاني ١٤٠٣

**الجواب:** پیغمبر ﷺ په شمائل کښې د متعین شوې صورت نه علاوه په بل بدقسم صورت کښې لیدل ددې خوب لیدلو والا په انحراف باندې تنبیه ده. ګورو نانک د مسلمانانو نه د هندوانو جوړولو دپاره د دروغو یو جال جوړ کړې وو. او مرزا غلام احمد قادیاني د مسلمانانو نه انګریزان یا د انګریزانو غلامان جوړولو دپاره دا جال خور کړې وؤ. او دا خوب لیدلو هم په دې مالیخولیا کښې مبتلا دې. وهو الموفق

## په خوب کښې د نیک کارونو حکم کولو والا لیدل اود هغې تعبیر

**سوال:** په ادب سره ګذارش دې چه بنده د بدهـ. جمعرات او جمعې په دریو اړو شپو کښې داسې خوب لیدلې چه په خوب کښې یو سړې وائی (١) حج اوکړه. (٢) سنت ادا کوه، ما ورته اووئیل چه ما واده کړې هغه اووئیل دویم واده اوکړه. (٣) د حدیثو دوره اوکړه ما ورته وئیل چه ما دوره کړې هغه وئیل په دویم ځل دوره اوکړه. (٤) په احسان آباد کښې د قرآن درسګاه اباده کړه ماوې احسان آباد کوم ځائې کښې دې نو څمونږ په کلي کښې یوه غیر آباد زمکه ده وائي چه دا احسان آباد دې. (٥) د ظواهرو نه پټ شه. (٦) د قرآن کریم حفظ

﴿١﴾ عن ابی قتاده قال قال رسول الله ﷺ من رانی فقد رای الحق متفق علیه. و علی ها مشه ای معناه من رانی علی صورتی التی انا علیها فقد رانی حقیقةً لان الشیطان لا یتمثل بهذه الصورة المخصوصة .الخ (مشکواة المصابیح ص ٣٩٣ جلد ٢ کتاب الرؤیا الفصل الاول)

اوکړه، ما ورته اووئیل چه ځه غریب او ناچاره یم او ستا ټولي خبرې ډیر طاقت والا کس کولې شي نو جواب ئې اوکړو چه ته غریب ئې خو حاجي الحرمین میزخان نواب زاده مردان والا ته اووایه او ځما دعا وسلام ورته وایه هغه به دا کار اوکړي. ما ترې نه تپوس اوکړو چه ته څوک ئې هغه جواب اوکړو چه ځه محمد د مدینې اوسیدونکې یم، ددې خوب تعبیر اوښایئ مشکور اوګرځوی؟

السائل: محمد نذیر فتح پورسوات.........۱۳۹۰ھ

**الجواب:** ته د قران او حدیث د اشاعت او ددین د خدمت اراده اوکړه امید دې چه ته به کامیاب شې او دَاهل خیر زړونه به الله تعالی ستاسره د امداد کولو دپاره مائل کړي. والله اعلم

## په خوب کښې فتاوي رشید یه وغیره لیدل

**سوال:** (۱) خوب وینم په ځمامخې ته پیش کولې شی چه فتاوي رشیدیه کښې اوګوره دچا عقیده چه خرابه وي دهغه ځائې اور دې او باقاعده ځما مخې ته ئې لیکلې وي.وبئس المهاد دا چه اووینم د خوب نه راویخ شم.(۲) په خوب کښې د بس په استېیر نګ باندې ناست یم ډرائیور نه یم او بس بغیر د سټارټ کولو نه چلوم په چړائ باندې ورخیژم چه چړهائي نه کوز شم نو یوښکلې ښار راته په نظر راشي.چه دهغې هغه ښکلې نقشه اوس هم ځما په سترګو کښې ګرځي نو ځه په هغې ښائسته ښار کښې بس اودردوم د هغې نه مخکښې د تللو همت مې نشته ځکه چه ویره ده چه د ډرائیو نګ د هنر نه راتللو په وجه باندې رانه چرته بس التهه نشي.نو په دې کښې راویخ شوم. (۳) په خوب کښې خپلې علاقې ته ځم هلته یوه قلعه ده چه یو انګریز جوړه کړې ده او هغې ته نزدې په مغربي طرف باندې ځه دوکانونه دي.ځه خپل کور طرفته د بس په ذریعې باندې په یو نوې سړک (چه په وادي کښې تیر شوې دې) باندې دغې قلعې او دوکانونو طرفته راروان یم. په لاره کښې ډیره یخه او مزیدار هوا چلیږي چه د قلعه نه تیر شم. او دوکانونو ته اورسیږم نو ددغې دوکانو نو یوه نوې نقشه (چه ما مخکښې نه وه لیدلې) وینم هغه دا چه



پوره بازار په دیوالونو کښې بند دې او دپاسه پرې د ښختو او سیمټونه جوړشوې عجیبه ښکلې نقش ونګار والا چت دې ځه په بس کښې هغې کښې دننه لاړ شم ځائې د ښکلې والي نه متاثره زړه مې ډیر خوشحاله شي او د خوب نه رابیدار شم. (۴) په خوب کښې یو پردې ځائې ته لاړ شم هلته راته اووئیلی شي چه تاته به دلته د اوسیدلو دپاره بنګله ملاویږي. ځه هغه وخت کښې په جمات کښې یم غالباً چه د ماسپښین وخت دې باجمات مونځ کووم په واپسي باندې راته پوره خوب یادنه وي. او بنګله مې هم نه ده لیدلې او راویخ شم. ددې خوبونو تعبیر راکړئ؟ ډیر شکر ګزاره به یم.

السائل:عبدالحمید کهوئی بهاره ایف آر۔ ډي آئي خان.....۲۹صفر ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** (۱) د بدعاتو او شرکیاتو په رد کښې مداهنت باندې تنبیه معلومیږی. (۲) اشارةً معلومیږي ستاقیادت طرفته او دهغې سرته د رسیدلو طرفته لیکن ډیر په احتیاط سره اوښه طریقې سره. (۳) انګریزي سکولو نه انګریزي قلعې دي دا دنیا بازار دې چه په ورځ په ورځ د خلقو په زړونو او سترګو کښې عظمت حاصلوي ستا په دې باندې تیریدل دي. لیکن امید دې چه دا ځان له د مقام جوړلو نه به محفوظ اوو سږې.

..................

.........

...

كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۚۖ ﴿٢٦﴾
وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ
ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ۚ ﴿٢٧﴾

(الاية)

...



# باب
# ما يتعلق
# بالروح والبرزخ
# والموت

...

# باب ما يتعلق بالروح والبرزخ والموت

## د مرګ معنی او مفهوم

**سوال:** په تسکين الصدور کښې حضرت مولانا محمد سرفراز خان د مرګ دوه مفهومه بيان کړي دي. اولنی مفهوم: علماؤ د مرګ دا معنیٰ کړيده چه د روح تعلق د جسم نه بالکل کټ شي د قرآن او حديث نه معلوميږي چه د مرګ په وخت کښې روح اوباسلې کيږي او آسمانونو طرفته وړلې کيږي. بيا په خپل ځائې باندې کيښودلې کيږي. دويم مفهوم: مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله فرمائي چه پيغمبرانو نه د حيات انقطاع نه کيږي. فرق پکښې واضح کړئ؟

المستفتي: حاجي محمد عبدالله چکړاله ضلع مياں والی. ۳ رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په دې معنو کښې اولنې معنیٰ مشهوره او بغير تکلفه ده دارنګې حديث وفي الجنة ماواه وحديث الرفيق الاعلي سره مناسب ده، نعم اعيدت الي الجسد المبارک بدليل ما رواه البيهقی وغيره او دويمه معنیٰ صحيح ده يعني روح د بدن نه منقطع شوې نه دي بلکه په قلب کښې جمع شويدې. ويصاحبه بعض الانقطاع عن بعض الاعضاء او تصير کالشمس اذا غربت فافهم، وهو الموفق

## د عذاب قبر او حيات النبي ﷺ په باره کښې د اهل سنت والجماعت مسلک

**سوال:** (۱) آيا د قبر عذاب او ثواب په دې مخصوصې کندې کښې ورکولې کيږي يا عليين او سجين دواړه مراد دی؟ دارنګې د عالِم برزخ اطلاق په دې ليدونکې کندې باندې کيږي. يا په علين او سجين باندې يا په دواړو باندې؟ (۲) حيات الانبياء کوم چه د احاديثو نه ثابت دې ددغې حيات نه د نيوي حيات مراد دې که برزخي؟ دا فتوي تبليغي جماعت حلقه بنوں د خپلو عقائدو دپاره غوختلې ده اميد دې چه جواب به ئې راکړئ؟

المستفتي: مولانا محمد بصير صاحب غوريواله ضلع وتحصيل بنوں ۱۹۸۷ء ۱۲/۹/۱

**الجواب:** حامداً ومصلياً! (۱) د عذاب قبر په باره کښې ډير احاديث راغلې دي دحضرت عبدالله بن عباس رضی اللهَ عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ددوه قبرونو په خوا کښې تير شو نو حضور ﷺ او فرمائيل چه دې دواړو ته



عذاب ورکولې کيږي يو ته د متيازو د دارو نه د نه بچ کيدلو په وجه باندې عذاب ورکولې کيږئ. او دويم ته د چغلئ په وجه باندې. بيا د کهجورې ښانګه دوه حصې کړه او دواړو قبرونو باندې ئې کيښوده او وې فرمائيل چه ترڅو پورې دا ښانګې اوچې شوې نه وي نو شايد چه عذاب ترې نه سپک کړې شي. د قبر لفظ په حقيقت کښې د ې کندې ته وئيلې کيږی په کوم کښې چه د مړي جسد عنصري پروت دې دا تير شوې حديث ددې واضح ثبوت دې. ځکه چه انحضرت ﷺ په کومو دوه قبرونو باندې ښانګې ايښودې وې هغه حسي قبرونه او کندې وې او دعليين او سجين هغه برزخي مقام ترنه مراد نَه دي کوم چه دروحونو د قرار ځائې دې. ځکه چه د ښانګې هغه دوه حصې ئې هلته نه وې ښخې کړې، بعضې وخت داسې کيږي چه د مړي جسم په اور کښې او سوزي يا ئې درياب يوسی او مهيان او کبان ئې اوخوري يعني په قبر کښې ددفن کولو نمبر ئې د سره نه راځي نو دې باره کښې حافظ ابن القيم رحمه الله په کتاب الروح. صفحه ۷۲ کښې لکلې دي! ترجمه: ئې داده. دا پيژندل مناسب دي چه عذابِ قبر هم عذاب برزخ ته وئيلې شي نو هر داسې کس چه د عذاب مستحق وي چه کله مړ کيږي نو هغه ته عذاب حصه وررسيږي. په قبر کښې دفن کړې شوې وي يا نه نو که ځناورو خوړلې وي يا سوزولې شوې وي تر دې که ايره ئې په هوا کښې الوزولې شوې وي يا په پانسئ ختلې وي يا د درياب وړې وي. په هر حالت کښې دهغه روح او بدن ته هغه عذاب ملاويږی کوم چه په قبر کښې دفن شوي ته ملاويږی. بهر حال ټول اهل السنت والجماعت په دې عقيدې باندې متفق دي چه په قبر و برزخ کښې ايمان والاؤ او تابعدار وخلقو ته لذت او خوند نصيب کيږي. او کفارو او منافقانو او ګناه ګارانو ته عذاب او تکليف ملاويږی. په دې کښې د هيڅ شک او شبهې ګنجائش نشته د قرآن او سنت او اجماع د صريحو دليلونو په وړاندې دا عقيده مضبوطه ده او کوم خلق چه دِ قبر دعذاب او راحت نه يعني د برزخي ژوند نه منکرين دي نو دا مذهب دملحدينو خوارجو او بعضې معتزله، او بعضې مرجئهؤ دي.

(۲) د اهل سنت والجماعت په نيزد باندې اتفاقاً انبياء عليهم السلام په قبرونو کښې ژوندي دي. دهغوي ژوند د شهيدانو د ژوند نه هم اعلیٰ او ارفع دي. دې باره کښې ډير دليلو نه دي حديث مبارک دې. الانبياء احياء في قبورهم يصلون. علامه سبکي رحمه الله دې روايت ته صحيح وئيلې دي او د ټولو

علمائي ديوبند هم دا عقيده ده. لکه چه په المهند علي المفند دي روايت ته صحيح وئيلي دي او د ټولو علمائي ديوبند هم دا عقيده ده. لکه چه په المهند علي المفند کښې خليل احمد سهارنپوري رحمه الله تصريح کړيده. او علمائي حرمين شريفين او د هند علماؤ ئي تصديق کړې دي.

کتبه: رشيد احمد صديقي حقاني. نائب مفتي دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک

**الجواب:** دا جوابونه صحيح دي (١) د قرآن او حديث او علم کلام او فقهي نه د عذاب قبر حق کيدل ثابت دي (١) او قبر دهغه ځائي نوم دي کوم ځائي کښې چه دا انساني اجزاء قرار اونيسي اوکوم خلق چه د عذاب قبر نه منکر وي لکه بعضي معتزله او عثماني پارټي. نوهغوي پسې اقتداء کول صحيح نه دي کما في شرح کبير (٢)

(٢) او انبياء عليهم السلام په قبرونو کښې د يو ځل وفات کيدلو نه پس په دنيوي ژوند سره ژوندي دي يعني دهغي روحونه په بدنونو کښې واپس داخل شوي دي. البته کوم مشائخ چه د حيات برزخی قائل دي هغوي په اهل سنت والجماعت کښې داخل دي. اودا مسله د نظرياتو نه ده د ضرورياتو نه نه ده. وهو الموفق.

حضرت مفتي اعظم (محمد فريد عفی عنه) شيخ الحديث بدار العلوم حقانيه اکوړه خټک

## د حيات الانبياء په هيئت کښې اختلاف دي

**سوال:** زيد وائي چه انبياء عليهم السلام بالکل د وفات په وخت دوباره ژوندي وی يعني د روح انقطاع تري نه نه کيږي. او خالد وائي چه ددفن کولو نه مخکښې د روح تعلق د جسم سره نه وي ځکه چه مرګ د ژوند ضد دي دو واقع کيدلو سره انتفاء دَ دويم راځي، نو جواب راکړئ؟

المستفتي: عطاءالله شاه مدرس جامعه رشيديه بهکر مياں والی ٣ شعبان ١٤٠٢ھ

---

(١) قال العلامة تفتازانی وعذاب القبر للكافرين ولبعض عصاة المئومنين.......ثابت بالدلائل السمعية لا نها امور ممكنة اخبر بها الصادق على ما نطقت به النصوص قال الله تعالىٰ النّار يعرضون عليها غدوًا وعشيا ويوم تقوم الساعة ادخلو آل فرعون اشدالعذاب وقال الله تعالىٰ اغرقوا فادخلو انارا قال النبی صلی الله علیه وسلم استنزهوا عن البول فان عامة عذاب القبر منه وقال عليه السلام قوله تعالىٰ يثبّت الله الذين آمنوا بالقول الثابت نزلت فی عذاب القبر الخ (شرح العقائد للسنفی ص ٧٧ عذاب القبر الحق)

(٢) قال الحلبی ومن ينكر الشفاعة اوا لروية او عذاب القبر او الكرام الكاتبين واما من يفضل عليا فحسب فهو من المبتدعة الذين يجوز الاقتداء بهم مع الكراهة (غنية المستملی ص ٤٧٦ باب الامامة)



**الجواب:** انبياء عليهم السلام په قبرونو کښې باجسادهم وبارواحهم ژوندي دي (١) دا متفق عليه خبره ده البته په دې کښې اختلاف دې چه په اجسامو کښې حيات د روحونو پشان داول نه دې او که نه دا تعلق دروح په وجې سره دې والظاهر من الاثار الثاني. وهوالموفق

## حياتِ دنيوي نه د حياتُ الانبياء امتياز

**سوال:** يو کتاب کښې ليکلي دي چه انبياؤ له الله تعالی يو مخصوص او ممتاز ژوند ورکړې چه د شهيدانو د ژوند نه ممتاز دې او د شهيدانو حيات د اولياؤ نه ممتاز دي ليکن دا حيات د دنيوي حيات نه جدا دې. نو آيا دا وئيل صحيح دي دي امتياز پکښې شته؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد عبدالله سکنه چکړاله غازي خيل

ضلع مياں والي ٨ رمضان المبارک ١٤٠٢ هجري

**الجواب:** دا خبره صحيح ده ځکه چه کوم علماء چه د حياتِ نبوي قائل دي هغوي

---

(١) الاحاديث الصحيحة دالة على حياة الانبياء عليهم الصلاة والسلام والشهداء والصديقين والصالحين كما فى الحديث فنبى الله حى يرزق وكذافى الحديث من صل على نائيا ابلغته ومن صلى على عند قبرى سمعته (مشكواة ص ٧٩ جلد ١) وكذافى عقائد علماء الديوبند (المهند على المفند) بان للانبياء عليهم السلام حياة برزخية جسدانيه ويدل عليه قوله عليه السلام مررت بقبر موسىٰ فاذاهو يصلى فى قبره والصلاة تقتضى جسداً حيا. وكذايدل عليه مارواه الترمذى فى تلاوة سورة الملك من موضع لا يعرف فيه القبر (مشكواة باب فضائل القرآن)

وايضاً روى ابو هريره رضى الله عنه عن النبى صلی الله علیه وسلم مامن احد يسلم على الا ردالله تعالىٰ على روحى حتى ارد عليه السلام رواه ابو داؤد وكذا روى الدارمى والنسائى ان لله تعالىٰ ملائكة سياحين فى الارض يبلغونى من امتى السلام (مشكواة ص ٧٨)

وايضاً قوله صلى الله عليه وسلم الانبياء احياء فى قبورهم يصلون رواه ابو يعلى والبيهقى. وللعلامة السيوطى رسالة فى حياة الانبياء عليهم الصلاة والسلام. وايضاً للقاسم نانوتوى آب حيات ،، ذكر فيهما دلائل شافيه كافية دالة علىٰ حيات الانبياء من اراد فليطا لعها. (از مرتب)

ئې هم په دې لوازمو سره متصف نه مني ﴿۱﴾ ومثلهم اهل الجنة. وهو الموفق.

## د مړي په حق کښې د نيک کيدلو د شهادت حيثيت

**سوال:** که يو سړې مړ شي او بيا جنازې والا او فاتحه ويونکو نه دا مطالبه اوشي چه د مړي په حق کښې دا موجوده کسان په خپلو ژبو سره اووايئ چه دا مړې يو نيک مسلمان سړې وو يعني دده په حق کښې د نيکئ ګواهي ورکړئ. برابر خبره ده که دا مړې نيک وي او که بد وي نو آيا واقعي په دې الفاظو سره مړی ته فائده رسيږي؟ په شريعتِ محمدي ﷺ کښې ددې ګواهي تر کوم حده پورې اجازت شته؟

المستفتي:حاجي احمد جان صاحب چنګلئ سوات.......۲۰۱۱۲۱۱۹۷۱

**الجواب:** د مسئلې حقيقت صرف دومره دې چه بعضې نيکان خلق د يو مړي متعلق (د ليدلو يا حسنِ ظن په بنياد باندې) نيک شهادت ورکړي نو الله تعالى دا شهادت سره (د دُعا وشفاعت پشان) د نجات ذريعه جوړوي. يشير اله مافي المرقاة ص ۵۳ جلد۴) اودا مراد نه دې چه قصداً عمداً يو شرارتي سړې ته په نيک وئيلو باندې لکه چه خوشامدو والائې کوی.فائده حاصليږی.

قال رسو ل الله ﷺ ايما مسلم شهد له اربعة بخير ادخله الله الجنة رواه البخارى محولة من المشكوٰة. ﴿۲﴾ والشهادة المشاهدة حقيقة كانت او حكماً والاخبار خلاف الواقع عمداً وقصداً كذب ليس بشهادة فا فهم. ﴿۳﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ الحيلة البرزخية القوية حياة الانبياء حتىٰ لا يجوز نكاح ازواجه المطهرات باحاد الامة وهذااثر الحياة القوية وكونها امهات المئومنين وجه اخرلحر مة نكاحهن ولاتنافى بين الوجهين فان الحكم الواحد يثبت بدلائل شتىٰ وورد فى حديث الاسراء مررت بموسىٰ فاذا هو يصلى فى قبره. والصلواة انما تكون بالجسد كما ذكره ايضاً خليل احمد سها رنپورى فى عقائد علماء ديوبند. والتفصيل فى كتاب الروح لابن القيم والبصائر للداجوى وغيرهما.(از مرتب)

﴿۲﴾(مشكواة المصابيح ص ۱۴۵ جلد ۱ باب المشى بالجنازة الفصل الاول)

﴿۳﴾قال العلامه ابن نجيم قوله هى اخبار عن مشاهدة وعيان لا عن تخمين وحسبان اى الشهادة وصرح الشارح بان هذا معناها اللغوى وهو خلاف الظاهر وانما هو معناها الشرعى ايضاً الخ(البحر الرائق ص ۵۵ جلد۷ كتاب الشهادات)



## د قبر عذاب روح او بدن دواړو دَ پاره ثابت دې

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يو سړې دې هغه د قبر عذاب په روح او بدن باندې نه مني او وائي چه عذاب به صرف د روح دپاره وي نو آيا دا خبره صحيح ده؟

المستفتي:قاري يوسف مهتمم جامعه مدنيه ډهيال سنګهه

شيخو پوره ۱۸ربيع الثاني ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا سړې په غلطه دې دده ضرب با لمطارق والا حديث ﴿۱﴾ په ژور نظر نه دې مطالعه کړې. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د حياتِ انبياءِ باره کښې احاديثِ مبارکه

**سوال:** محترم مفتي صاحب! هغه حديثونه اوليکئ چه په هغې کښې د پيغمبرانو د مرګ نه پس والا دَ ژوند ذکر او د نبوي حيات الفاظ په کښې وي. ډيره مهرباني به وي؟

المستفتي:حاجي محمد عبدالله چکړا له ميان والي.....۲۲ذيقعده ۹۲هجري

**الجواب:** ته دَامام بيهقي رحمة الله عليه او امام سيوطي رحمة الله عليه هغه رسائل چه د حياتِ انبياء

﴿۱﴾عن انس قال قال رسول الله ﷺ ان العبد اذا وضع فى قبره وتولى عنه اصحابه انه يسمع قرع نعالهم ......ويضرب بمطارق من حديد ضربة فيصيح صيحة يسمعهامن يليه غير الثقلين متفق عليه ولفظه للبخارى. (مشكواة المصابيح ص ۲۵ جلد ۱ باب اثبات عذاب القبر)

﴿۲﴾قال الملاعلى قارى واعلم ا ن اهل الحق اتفقوا على ان الله تعالىٰ يخلق فى الميت نوع حياة فى القبر قدر ما يتالم او يتلذذ ولكن اختلفوا فى انه هل يعاد الروح اليه والمنقول عن ابى حنيفة رحمه الله التوقف الا ان كلامه هنا يدل على اعادة الروح اذجواب الملكين فعل اختيارى فلا يتصور بدو ن الروح وقيل قد يتصور الاترى ان النائم يخرج روحه ويكون روحه متصلاً بجسده حتى يتالم فى المنام ويتنعم ؟وقد روى عنه عليه الصلاة والسلام انه سئل كيف يوجع اللحم فى القبور ولم يكن فيه الروح فقال النبى ﷺ كما يوجع سنك وليس فيه الروح. (شرح فقه الاكبر لملا على قارى ص ۱۰۱ اعادة الروح الى الميت فى قبره حق)

متعلق تالیف شوې دي هغه مطالعه کړه ﴿۱﴾ په هغې کښې هغه روایات هم لیکلې شوې دي په کومو کښې چه د ارواحِ مبارکه ؤ په بدنو نو کښې د واپس راتللو تذکره ده﴿ ۲﴾

## په جنت کښې د واده شوو او ناواده شوو زنانو دَ خاوندانو مسئله

**سوال:** (۱) د مسلمانانو چه کومې منکوحه بیبیانې دي آیا په جنت کښې به دا خپلو خپلو خاوندانو ته ملاوېږي؟ که څه بل څه صورت به وي؟ تفصیلاً ئې ذکر کړئ. (۲) که خپلو خاوندانو ته ملاوېږي نو دَ حورو او دهغوي په مینځ کښې به د مرتبې او حسن او جمال څه فرق وي که نه؟ (۳) خدائې دې نکړې که خاوند د پاکولو دپاره دوزخ ته داخل شي او منکوحه جنت ته لاړه نو دا منکوحه به په جنت کښې بې خانده اوسېږي که څه بل څه صورت به وي؟ بینوا بالتفصیل. (۴) که خاوند ددنیا نه کافر لاړشي او منکوحه مسلمانه نو دې صورت کښې خو به دهغه خلاصې نا ممکن وي نو په دې صورت کښې به دې ښځې ته د جنتي مخلوق نه خاوند ملاوېږي او که ددې دنیا د سړو نه؟ (۵) په جنت کښې به د مسلمانې بالغې جینئ چه ناواده وي څه کیږي په جنت کښې به واده کوي یانه؟ اوضحوا الشقوق کلها لایبقي خدشةً.

المستفتي:سیف الله بنوں.....۱۳۷۹هجري

﴿۱﴾روی ابن ماجه عن ابی درداء انه ﷺ قال اکثروا من الصلاة علی یوم الجمعة فانه مشهود تشهده الملائکة وان احدالن یصلی علی الا عرضت علی صلاته حتی یفرغ منها قال قلت وبعد الموت ؟قال ان الله حرم علی الارض ان تأکل اجساد الانبیاء .ووافق ابن ماجه و احمد وابو داؤد ابن حبان والحاکم فی روایة قوله ﷺ ان الله حرم علی الارض ان تأکل اجساد الانبیاء .و ایضاً عن النبی ﷺ الانبیاء احیاء فی قبورهم یصلون رواه ابویعلی والبیهقی .وکذا ورد فی الحدیث من صلی علی نائیا ابلغته ومن صلی علی عند قبری سمعته (مشکواة ص ۸۷ ) وکذا روی الدارمی عن سعید بن عبد العزیز قال لما کان ایام الحرة ولم یؤذن فی مسجد رسول الله ﷺ ثلاثا ولم یقم ولم یبرح سعید بن المسیب المسجد و کان لایعرف وقت الصلاة الابهمهمة یسمعها من قبرالنبی ﷺ رواه الدارمی (مشکواة ص۵۳۷ ) هذه نبذة من احادیث الحیاة للانبیاء والتفصیل فی (الشهاب الثاقب)لشیخ الاسلام سید حسین احمد المدنی ورسالة للسیوطی ،وللامام بیهقی وکذا تصریح بها فی عقائد علماء دیوبند .ففیها دلائل شافیة کافیة دالة علی حیاة الانبیاء من اراد فلیطالعها فان فیها شفاء العلیل ودواء الغلیل.(از مرتب )

﴿۲﴾ قال ابن عبدالبر ثبت عن النبی ﷺ انه قال ما من مسلم یمر علی قبر اخیه کان یعرفه فی الدنیا فیسلم علیه الا ردالله علیه روحه حتیٰ یرد علیه السلام .(الحاوی للفتاویٰ ص ۳۰۲جلد۲ للعلامه سیوطی)



**الجواب:** (۱) منکوحه مسلمانه زنانه به خپل خاوند ته ورکولې کیږي.رواه الطبراني عن ابن عباس رضی الله عنهما مرفوعاً کذا في هامش جلالین.﴿۱﴾

(۲) په نفسِ حسن او تطهیر کښې اشتراک ثابت دې یدل علیه ازواج مطهرة و رضوان من الله الایة﴿۲﴾ او باقي تفاوْت غیرمضر دې یعني د حورې په جنت کښې پیدا کیدل او ددوي په دنیا کښې.

(۳) ددې متعلق تصریح نشته دومره اجمالا معلوم دي چه په جنت کښې حزن او خوف منقول نه دي.

(۴)،(۵) په ظاهره باندې ددې دواړو حکم یو دې چه اختیار به ورته ورکړې شي چه په دې جنتیانو کښې د چا بی بی شي ګینې نو د جنتي مخلوق نه به ورله خاوند پیدا کړې شي. (منقول از فتاوي مولانا عبدالحئ ص ۱۲جلد۳)وهوالموفق

## د روح په اخستلو کښې عزرائیل علیه السلام مؤکل دې او نورې فرشتې ورسره معاونین دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه آیا صرف عزرائیل علیه السلام بذاتِ خود انسان ته ځي او روح ترینه اخلي یا دا کار په نورو فرشتو سره کوي.

المستفتي: سید امیرالله نیو بس اډه مردان

۲۶شعبان ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** په قران مجید کښې د روح قبض کولو نسبت الله تعالی ته د خالق او فاعِل نسبت دې او ملک الموت عزرائیل علیه السلام ته نسبت مؤکل ته نسبت دې او

﴿۱﴾عن ابن عباس مرفوعاً اذا دخل الرجل الجنة سال عن ابویه وولده و زوجته فیقال انهم لم یبلغوا درجتک وعملک فیقول یارب قد علمت لی وهم فیؤمر بالحاقهم به. (هامش جلالین سورة طور ص ۴۳۵جلد۲)

﴿۲﴾قال العلامه ابن کثیر وازواج مطهرة ای من الدنس والخبث والا ذی والحیض والنفاس وغیر ذلک مما یعتری نساء الدنیا .(تفسیر ابن کثیر ص ۳۶۱ جلد ۱ سورة ال عمران آیت :۱۵)

ملائیکو ته نسبت معاونین او عملي ته نسبت دي. (۱) وهکذا في سائر التصرفات. وهوالموفق.

## د سماع موتي او حيات الانبياء مسئلي په ضروريات دين کښې نه دي

**سوال:** د حيات الانبياء په باره کښې دوه کسانو اختلاف دي يو سړې د حيات برزخي او سماعت برزخي قائل دي او دويم وائي چه څه د حيات د نيوي او سماعت د نيوي قائل يم په دي دواړو کښې چاپسې مونځ کيږي او چاپسې ناجائز دي. وضاحت اوکړئ.؟

المستفتي: حاجي عبد الرحمان مين بازار ډوميل جهلم ۱۲ شوال ۱۴۰۳ هجري.

**الجواب:** سماع او حيات د نيوي نظری مسائل دي په ضروريات دين کښې داخل نه دي، نو دا دواړه کسان د اقتداء لائق دي البته د دلائلو په رڼا سره د حضور ﷺ په قبر او برزخ کښې د مرګ موعود نه پس په حيات دنيوی سره ژوندي کيدل او برزخ او دنيا نه سماعت کول راجح اقوال دی. (۲) وهوالموفق.

(۱) قال العلامه الوسی فی قوله تعالیٰ ولو تری اذالظالمون فی غمرات الموت والملئکة ای الذین يقبضون ارواحهم وهم اعوان ملک الموت باسطو ايديهم ای بالعذاب (تفسير روح المعانی ص ۲۲۴ جلد ۵ سورة الانعام آيت: ۹۳) وايضاً يدل عليه عن ابی هريرة قال قال رسول الله ﷺ الميت تحضره الملائكة فاذاكان الرجل صالحاً قالوا اخرجی ايتها النفس الطيبه الخ
(مشكواة المصابيح ص ۱۴۱ جلد ۱ باب ما يقال عند من حضره الموت)

(۲) قال ابن عابدين واما مانسب الامام الاشعری امام اهل السنة والجماعة من انكار ثبوتها بعد الموت فهوافتراء وبهتان والمصرح به فی كتبه وكتب اصحابه خلاف ما نسب اليه بعض اعدائه لان الانبياء عليهم الصلاة والسلام احياء فی قبورهم وقدا قام النكير علی افتراء ذالک الامام العارف ابو القاسم القشيری فی كتابه شكاية السنة وكذا غيره كما بسط ذالک الامام ابن السبكی فی طباقة الكبریٰ فی ترجمة الامام الاشعری. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۵۹ جلد ۳ مطلب فی ان رسالته ﷺ باقية بعد موته) وايضاً يدل عليه وسماع الموتیٰ احاديث كثيرة فلير اجع الیٰ كتاب الروح ص ۱۱، والیٰ اقتضاء الصراط المستقيم ص ۳۲۶ والنونية ص ۱۴۵ الشمس الدين ابن قيم وابن تيميه والیٰ روح المعانی ص ۵۵ جلد ۲۱ للألوسی وغيرها)



## په بيت المقدس کښې د پيغمبرانو روحونه يا بدنونه سره د روحونو نه حاضرئ کښې ا ختلاف

**سوال:** يو سړې وائي چه په براهين قاطعه کتاب صفحه نمبر ۲۰۰ باندې مولانا رشيد احمد ګنګوهي صاحب ليکلي دي په ددې فقهي او حديثي روايتونو نه معلوم شوه چه د ټولو پيغمبرانو عليهم السلام روحونه د خپل خپل ځائې نه راغلل او بيت المقدس ته حاضر شول او دلته ئې مونځ اوکړو نو دا خبره صحيح ده که نه ؟ تفصيلي جواب راکړئ؟

المستفتي: عبد الله چکړاله غازي خيل ضلع مياں والی ۱۸ شعبان ۱۴۰۲ هجري

**جواب: شهودهم البيت فيه احتمالات الاول ما ذكر القطب الجنجوهی . والثانی تمثل ارواحهم باجسادهم والثالث شهودا جسامهم بعينها .فليراجع الی فتح الملهم شرح صحيح المسلم . وهوالموفق**

## د ځناورو روحونه چرته ځي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دَجناتو او انسانانو نه علاوه د نورو ځناورو روحونه چرته ځي يعني تر قيامته پورې په کوم ځائې کښې وی؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد العظيم هند مردان

**الجواب:** د مناسب تلاش باجود دا مسئله ملاؤ نه شوه لهذا ددې متعلق مونږ د مستقر تعين نه شو کولې اګر چه د قياس تقاضاداده چه د مرګ سره ددوي روحونه هم فنا شي ځکه چه برزخ خو د ثواب يا عذاب د بقاء د پاره وي. او دا غير مکلف دي. والله اعلم بحال مخلوقاته.فقط.

## د قبر حيات برزخي دي که د نيوي

**سوال:** په قبر کښې د مړو ژوند برزخي دي يا جسماني! دانبياؤ ژوند کوم يو دي؟

المستفتي: حاجي محمد عبد الله چکړاله مياں والي.

**الجواب:** د ټولو انبیاؤ نه علاوه د ټولو مړو ژوند برزخي دې اجماعاً ﴿۱﴾ البته انبیاء کرام په برزخ کښې سره د بدنونو او روحون ژوندي دي.﴿۲﴾ او زمونږ نه د دوي ژوند پټ دې. وهوالموفق.

## د سماع موتیٰ په باره کښې د اکابرو اختلاف او د احنافو مذهب

**سوال:** د سماع الموتیٰ په مسئله کښې ځمونږ د یوبندي علماؤ هم اختلاف دې او مولانا مفتي عزیز الرحمان صاحب رحمة الله علیه او مفتي کفایت الله صاحب هم د عدمِ سماع په قول باندې فتوی ورکړې ده. براه کرم په تحقیق سره مونږ دخپلو خیالاتو نه خبر کړئ؟

المستفتي: جانباز ملک علوي مدیر الجامعه الحسینیه

وزیر آباد......... ۲۸جمادي الاولي ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** واضحه دې وي چه اکابر د سماع الموتی متعلق خپل مینځ کښې اختلاف ساتي لیکن راجح قول د سماع الموتی دې ځکه چه قران دموتی د اوریدو لو نه ساکت (اوچپ) دې (البته عدم سماع نافع اوپه عدم انتفاع علی المسموع باندې ناطق دي (لصحة الاستعارة والتشبیه علي التقدیر الاخیر دون الاولی او احادیث په سماع باندې ناطق دی:

**اماعند اول الوضع مثل حدیث قرع النعال واما فی سائر الاوقات مثل حدیث اجابة السلام الذی فی تفسیر ابن کثیر وشرح الصدور و فتاویٰ ابن تیمیه وغیره۔**

نو د مثبت سماع په حدیثونو کښې تاویل کول د قاعدې نه خلاف دي. او داخبره دې هم واضحه وي چه د سماع الموتی متعلق د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه نه په ظاهر الروایة او غیر ظاهر الروایة کښې د نفي او اثبات متعلق هیڅ حکم نقل نه دي.

---

﴿۱﴾ قال الملاعلی قاری واعادة الروح ای ردها او تعلقها الی العبد ای جسده بجمیع اجزائه او بعضها مجتمعة او متفرقة فی قبره حق.........وفی المسئلة خلاف المعتزلة وبعض الرافضه وقد وردت الاحادیث المتظاهرة فی المبنی المتواترة فی المعنیٰ فی تحقیق احوال البرزح والعقبیٰ قد استوفاها شیخ مشائخنا الجلال السیوطی فی کتابه المسمی بشرح الصدور فی احوال القبور و فی کتابه الاخر المسمی البدور السافرة فی احوال الاخرة فعلیک بهما ان کنت ترید اطلاع وارتفاع النزاع عن الطباع الخ (شرح فقه الاکبر لملاعلی قاری ص ۱۰۱ اعادة الروح الی المیت فی قبره حق )

﴿۲﴾ قال ابن عابدین ان الانبیاء علیهم السلام احیاء فی قبورهم.
(ردالمحتار ص ۲۵۹ جلد ۳ مطلب فی ان رسالته صلی الله علیه وسلم باقیة بعد موته )



او چا چه امام اصاحب نه د نفي نسبت کړیدې هغه د کتاب الایمان د جزئي نه استخراج دې. او چا چه اثبات ته نسبت کړې دې هغه په اذا صح الحدیث فهو مذهبي. باندې مبني دي.﴿۱﴾ وهوالموفق

## دقیامت په ورځ دکافرانوسجده نه کول اوداقامت دجواب په باره کښې وعید

**سوال:** آیا د ا صحیح ده چه د قیامت په ورځ به ټول خلق د الله تعالی په حکم سره سجده کوي لیکن کافران ترې نه مستثنی دي او دغه شان چه کوم کس د اقامت جواب په زړه کښې نه ورکوي د قیامت په ورځ به هغه هم سجده نه کوي. آیا دا صحیح ده؟

المستفتي: مولوي محمد نظیر بانډه شیخ اسماعیل

ضلع پشاور ۲۸جمادي الثاني ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** د بخاري شریف په حدیث کښې راغلي چه کافر به سجده نشي کولې ﴿۲﴾ او د اقامت د جواب متعلق چه کوم وعید دې ددې حواله نا معلومه ده. وهوالموفق.

## د پیغمبرانو او شهیدانو په حیات کښې فرق

**سوال:** (۱) د انبیائې کرام د قبر ژوند څنګه دې؟ او د شهیدانو او ددوي په ژوند کښې څه فرق دې؟ (۲) د قبر په خواکښې د پیغمبرانو د اوریدلو څه مطلب دې او د انک لا تسمع الموتی څه مطلب دې؟ (۳) عند القبر اوریدل هُم فوق الاسباب دې بیا د لرې نه ولې نه اوري؟ (۴) د شهدائې کرامو د قبر په خوا کښې اوریدل ثابت دي که نه؟

المستفتي: عنایت الله شاه کاکاخیل اسلام آباد... ۱۹۷۵ء۱۲۱۱۲۵

**الجواب:** واضحه دې وي چه روحاني او جسماني حیات د مرتبو داختلاف په لحاظ سره د هر مړي د پاره ثابت دي. که مسلمان وي او که کافران وي. بدلیل احادیث ثواب القبر وعذابه. البته د انبیاء علیهم السلام روحونه د مرګ نه پس

---

﴿۱﴾ والتفصیل فی کتاب الروح لابن القیم الجوزیه ،وفی البصائر لمنکری التوسل باهل المقابر لحمد الله الداجوی ،وفی غوث العبادبیان الرشاد للمصطفیٰ ابویوسف الحمامی الازهری.

﴿۲﴾ عن ابی سعیدن الخدری قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول یکشف ربنا عن ساقه فیسجد له کل مؤمن ومؤمنة ویبقیٰ من کان یسجد فی الدنیا ریاءً وسمعةً فیذهب یسجد فیعود ظهره طبقاً واحداً. متفق علیه .(مشکواة المصابیح ص ۴۸۳ جلد ۲ باب الحشر الفصل الاول )

اجسادو مبارکو ته واپس کړې شوي دي. ويقال لها الحيوة الدنيوية وهو قول اكثر الاكابر ويؤيده حديث البيهقي في رسالته. په خلاف د شهداؤ باندې چه د هغوي روحونه په جنت کښې دي ليکن دهغوي د بدنونو سره يو خاص قسم تعلق دې. ويقال لها الحيوة البرزخية ولاريب في كمال الاولي مع ان جسد النبي خيرمن الجنة وغيرها. نو بس ددې ژوند د مرګ سره هيڅ تصادم نشته دې. لانها طارية بعد الموت ولان موت الانبياء ليس كموت غيرهم كما ان نومهم ليس كنوم غيرهم. او د سماع دارو مدار په نفس حيات باندې دې. په حيات د ينوي باندې نه دې. والسماع امر غيرمعقول فيقصر علي ما ورد به الخبر وهوالسماع من القريب وفناء القبر. فقط

## د جنتونو شمير

**سوال:** د جنت متعلق بعضې کسان وائي چه اته دي او بعضې وائي چه څلور دي. صحيح قول کوم يو دې؟

المستفتي: حافظ عبدالمالک نرياب کوهاټ.... ٧جولائي ١٩٧٩ء

**الجواب:** د دلائلو په لحاظ سره څلور جنتونه کيدل راجح دي. ﴿١﴾ وهوالموفق

## د نابالغه جينکو واده نه مخکښې مړې کيدل اوپه جنت کښې دخاوندمسئله

**سوال:** که نابالغه جينکۍ د واده نه مخکښې مړې شي نو آيا په جنت کښې به دهغوي ودونه کيږي؟

المستفتي: مولانا فضل غني فاضل دارالعلوم ديوبند ميان خان مردان

**الجواب:** که په جنتيانو کښې ئې څوک خوښ وو د هغوي سره به نکاح اوکړې شي او که څوک ئې خوښ نه ؤو نو جنتي مخلوق به ورله پيدا کړې شي او واده به ورسره اوکړې شي.

في الغرائب. ولو ماتت قبل ان تتزوج فخير ايضاً ان رضيت بآدمي زوجت منه و ان لم ترض فالله تعالیٰ يخلق ذكر من الحور العين فيزوجها منه انتهیٰ.

﴿١﴾ قيل الجنان ثمانية وقيل اربعة وهو الراجح صرح به ابو الليث السمر قندی وابن العربی شارح الترمذی وهو الظاهر من قوله تعالیٰ ولمن خاف مقام ربه جنتان مع قوله تعالیٰ ومن دونهما جنتان و كذا هو الظاهر من قوله ﷺ ان فی الجنة جنتين من فضة انيتهما وما فيها وجنتين من ذهب آنيتهما وما فيها رواه الترمذی ص ٣٦٢ عن عبدالله بن قيس مرفوعاً.

(...اج السنن شرح جامع السنن ص١٢٥ جلد ١ باب ما يقال بعد الوضوء)



(مجموعة الفتاویٰ ص ١٦ جلد ٣). ﴿١﴾ وهوالموفق

## په جنت کښې د ږيرې مسئله

**سوال:** په جنت کښې به د سړو ږيره وي او که نه به وي؟

المستفتي: محمد عارف اسماعيليه مردان.... ١٩١٨١١٩٧٧

**الجواب:** په حديث مرفوع کښې ﴿١﴾ د جرد مرد لفظ راغلې او استثناء پکښې نشته البته بعضې علماء ترنه بعضې پيغمبران مستثنی کړي دي لکه آدم عليه السلام. وهوالموفق.

## د کافرانو د نابالغو بچو جنت ته تلل

**سوال:** د کافرانو د نابالغه بچو انجام به څه وي؟ جنت ته به ځي او که جهنم ته؟

المستفتي: محمد عارف اسماعيليه مردان.... ١٩١٨١١٩٧٧

**الجواب:** راجح دا دي چه جنت ته به ځي. ﴿٣﴾ فقط

﴿١﴾ قال العلامه ابن الحجر العسقلانی (و لكل واحد منهم زوجتان) ای من نساء الدنيا. فقد روی احمد من وجهٍ آخر عن ابی هريره مرفوعاً فی صفته ادنی اهل الجنة منزلة وان له من الحور العين لاثنتين و سبعين زوجة سوی ازواجه من الدنيا، وفی سنده شهر بن حوشب وفيه مقال، ولابی يعلی فی حديث الصور الطويل من وجه آخر عن ابی هريرة فی حديث مرفوع. فيدخل الرجل علی اثنتين و سبعين زوجة مما ينشئ الله و زوجتين من ولد آدم. واخرجه الترمذی من حديث ابی سعيد رفعه ان ادنی اهل الجنة الذی له ثمانون الف خادم و ثنتان و سبعون زوجة وقال غريب، ومن حديث المقدام بن معديكرب عنده "للشهيد ست خصال" الحديث وفيه و يتزوج ثنتين و سبعين زوجة من الحور العين. وفی حديث ابی امامه عند ابن ماجه والدارمی رفعه "ما احد يدخل الجنة الا زوجه الله ثنتين و سبعين من حور العين و سبعين و ثنتين من اهل الدنيا و سنده ضعيف جداً ......الخ

(فتح الباری شرح صحيح البخاری ص ٦٧ جلد ٨ باب فی صفة الجنة و انها مخلوقة كتاب بدء الخلق)

﴿٢﴾ عن ابی هريرة قال قال رسول الله ﷺ اهل الجنة جرد مرد كحلی لا يفنیٰ شبابهم. الخ وعلی هامش المشكوٰة الجرد جمع اجرد و هو الذی لا شعر علی جسده و ضده الا شعر قوله و مرد جمع امرد وهو غلام لا شعر علی ذقنه و قد يراد به الحسين بناء علی الغالب. (مشكوٰة المصابيح ص ٤٩٨ جلد ٢ باب صفة الجنة و اهلها)

﴿٣﴾ قال ابن عابدين و قد حكی فيهم الامام النووی ثلاثة مذاهب الاكثر انهم فی النار الثانی الوقف الثالث الذی صححه انهم فی الجنة لحديث كل مولود يولد علی الفطرة و يميل اليه ما مر عن محمد بن الحسن و فيهم اقوال اخر ضعيفة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٦٢٩ جلد ١ مطلب فی اطفال المشركين باب الجنائز)

## قال اللہ تعالیٰ

وَخَلَقَ الْجَآنَّ مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ ۚ ﴿۱۵﴾

(الآیة)

....



# باب
# ما یتعلق
# بالجنات و الشیطین

...

# باب ما يتعلق بالجنات والشيطين

## جنات عالم غيب نه دي

**سوال:** ځمونږ په کلي کښې يو هلک باندې د پيريانو اثر دې دا هلک تير شوې راتلو نکو حالات بيانوي. ورک شوې څيزونه هم ښائي هر چا ته د هر سوال جواب هم ورکوي نو دده څه حکم دې؟ چه واقعي پيريان دغيبو په خبرو باندې پوهيږي يا دا څه معامله ده؟ بينواتوجروا

المستفتي: محمد سليم زکريا (صوابي)......۲۱ نومبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** پيريان عالم الغيب نه دي. (۱) البته د تيزرفتارئ په وجه باندې زر اطلاع ورکوي او په دوي کښې دروغژن ډير وي لهذا ددوي په خبرو باندې تصديق کول او په هغې يقين کول د شريعت او عقل دواړو نه مخالف دي او حرام دي. لحديث ورد بذالک. (۲)

---

(۱) قال ابن عابدين و الذى يدعى ان له صاحباً من الجن يخبره عما سيكون والكل مذموم شرعاً محكوم عليهم و على مصدقهم با لكفر ...... و فى التتار خانيه يكفر بقوله انا اعلم المسروقات او انا اخبر عن اخبار الجن اياى . انتهى .

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۲۵ جلد ۳ مطلب فى دعوى علم الغيب)

وفى التتارخانيه فان قال هذا لقائل انا اخبر با خبار الجن اياى بذلک قال هو و من صدقه يكون كافراً با لله لقوله عليه السلام من اتى كا هنا فصدقه فيما قال فقد كفر بما انزل الله على محمد لا يعلم الغيب الا الله لا الجن و الانس يقول الله فى الاخبار عن الجن فلما خر تبينت الجن ان لو كانوا يعلمون الغيب ما لبثوافى العذاب المهين .

(فتاوی خانيه موضوع على هامش الهنديه ص ۵۷۶ جلد ۳ باب ما يكون كفرامن المسلم وما لايكون)

(۲) عن عائشة رضى الله عنها قالت سمعت رسول الله ﷺ يقول ان الملائكة تنزل فى العنان وهوالسحاب فتذ كر الامر قضے فى السماء فتسترق الشياطين السمع فتسمعه فتوحيه الى الكهان فيكذبون معها مائة كذبة من عندانفسهم رواه البخارى .

(مشكواةشريف ص ۳۹۳ جلد ۲ باب الكهانه الفصل الاول)



## تعويذونه. کوډې او د پيريانو په انسانانو باندې کيناستل حقيقت دي

**سوال:** په شريعت کښې د تعويذونو، کوډو وغيره څه حقيقت شته که نه؟ دارنګې د پيريانو په انسان باندې کيناستل يا تکليف ورله ورکول تر کومه حده پورې صحيح دي؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتي: خانه ګل دره آدم خيل کوهاټ.....۷۱۸۱۱۹۷۲

**الجواب:** (۱) دا امور حقيقت دي ددې تاثير ثابت دې (۱) او د دفع کولو د پاره معوذتين (۲) او د سورة بقره آخرني دوه ايتونه لوستل ډير مفيد دي. (۲) د قران، حديث او مشاهدې نه ثابت دي چه پيرې په انسان باندې کيناستلې شي. او تکليف ورله ورکولې شي. (۳) فقط.

## اوښ نه فرښته ده او نه شيطان دې

**سوال:** زيد وائي چه اوښ فرښته ده په دې سره انسان د ډيرو افتونو نه محفوظ وي ځکه چه اوښ د اوچې او لوندې کشتئ ده. او عمرو وائي چه اوښ فرښته نه ده بلکه شيطان دې ده سره نزدې مونځ کول نه دي پکار، په دې دواړو کښې کوم په حقه دې؟

المستفتي: مهربان شاه زکي خيل کوهاټ.....۵ ستمبر ۱۹۷۹ء

**الجواب:** او ښ نه فرښته ده او نه شيطان دې البته د شرارت د وجې نه ئې په

---

(۱) يدل عليه سورة الفلق ، و «من شر النفثت فى العقد . الاية (سورة الفلق)

(۲) و عن عقبة بن عامر قال بينا انا اسير مع رسول الله ﷺ بين الجحفة و الابواء اذا غشيتنا ريح و ظلمة شديدة فجعل رسول الله ﷺ يتعوذ با عوذبرب الفلق و اعوذ برب الناس و يقول يا عقبة تعوذ بهما فما تعوذ متعوذ بمثلها رواه ابوداؤد . وعن عبد الله بن خبيب قال خرجنا فى ليلة مطر وظلمة شديدة نطلب رسول الله ﷺ فا دركنا ه فقال قل قلت ما اقول قال قل هو الله احد و المعوذتين حين تصبح و حين تمسى ثلث مرات تكفيک من كل شئى . رواه الترمذى و ابوداؤد و النسائى .

( مشكواة المصابيح ص ۱۸۸ جلد ۱ كتاب فضائل القرآن )

(۳) عن ابن مسعود قال قال رسول الله ﷺ ما منكم من احد الا و قدو كل به قرينه من الجن و قرينه من الملائكة الخ . و عن انس قال قال رسول الله ﷺ ان الشيطان يجرى من الانسان مجرى الدم متفق عليه .

(مشكواة المصابيح ص ۱۸ جلد ۱ باب فى الوسوسة )

حدیثونو کښې د شیطان سره مشابهت ورکړې شوې دې. او د اوښ په خو کښې مونځ کول جائز دي البته د اوښانو د اوسیدلو په ځائې کښې مونځ کولو سره ډېر خطرات دي. اګر چه ګناه نه ده《۱》

## د شیطاني اولاد او ښځه بچي ثابت دي

**سوال:** آیا د شیطان اولاد او ښځه هم شته ؟

المستفتي: فضل رازق متعلم حقانیه اکوړه خټک..... ۱۲ اګست ۱۹۸۴

**الجواب:** د شیطینو او جناتو د پاره اولاد په نصو صو سره ثابت دي《۲》او بچي د ښځي نه بغیر متصور او ممکن نه دي. وهو الموفق.

## پیرې او شیطان یوه نوع ده او په دوي کښې توالد او تناسل کیږي

**سوال:** لکه په قرآن کښې دي وما خلقت الجن والانس الا لیعبدون. الآیة. لیکن انسان د خاورې نه او پیریان د هور نه او شیطان هم د هور نه پیدا شوې نو آیا شیطان او پیرې دې یو قسم هور نه پیدا شوې یا جدا جدا قسم نه. دویم دا چه آیا شیطان او پیرې یو بل لیدلې شی؟ او آیا په پیریانو کښې هم مختلف مذهبونه دی؟ او آیا شیطان د شیطان نه پیدا کیږي یا پخپله د هور نه ؟ تفصیلي جواب رکړئ..؟

المستفتي: حاجي عبدالودود یارحسین (صوابي)

《۱》قوله ولا تصلوا فی اعطان الابل. ارید منها المبارک یدل علیه حدیث ابی داؤد قال سئل رسول الله ﷺ عن الصلاة فی مبارک الابل فانها من الشیاطین و الفروق بین الغنم والابل ثلاثة الاول نظافة المرابض وو ساخة المبارک هکذا جرت عادة الناس والثانی استواء المرابض وتسطیحها دون المعاطن و الثالث کون الغنم سکینة و الابل نفاراً ......والنهی (عن الصلاة) للارشاد و الشفقة عند الجمهور لان الابل خلقت من الشیاطین وهی شرار فلایأمن المصلی عن ضررها و کذا لا یأمن عن اصابة بولها لان ذکرانها تبول الی الخلف و اناثها ترش کثیرا لارتفاعها بخلاف الغنم ......والدلیل علی مشروعیة الصلاة فی مبارکها ان النبی ﷺ اتخذ الابل سترة فی الصلوٰة فا فهم.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۳۳ جلد ۲ باب ماجاء فی الصلاة فی مرابض الغنم واعطان الابل)

《۲》قال القاضی بدرالدین قال الله تعالی افتتخذونه و ذریته اولیاء من دونی وهم لکم عدو وهذا یدل علی انهم یتناکحون لاجل الذریة قال القاضی عبد الجبار الذریة هم الولد والاهل ورقتهم لا تمنع من توالدهم اذا کان ما یلدونه رقیقا کما لا تمنع لطافة اللطیف من الولادة اذا کان مایلده لطیفا الخ

(اکام المرجان ص ۳۳ باب فی بیان ان الجن یتناکحون و یتوالدون)



**الجواب:** تحقیق دادې چه پیریان یوه نوعه ده او شیطانان صرف دهغوي سرکشه کسانو ته وائي《۱》جنات یو بل ویني خوراک څکاک کوي. او توالد پکښې هم کیږي.《۲》د قران او حدیث نه دا امور ثابت دي.

## شیطان د فرښتو استاد جوړول بې اصله خبره ده

**سوال:** د شیطان د ملعون کیدلو نه مخکښې ژوند باره کښې قسم قسم روایتونه اوریدلې شوې تردې چه بعضې خلق دا هم وائي چه شیطان د فرښتو استاد وو وغیروغیره. نو د شیطان صحیح حالت څه دې؟ چه هغه د لعنت مخکښې څه وؤ؟

المستفتي: نامعلوم........ ۱۴۰۱/۷/۱۷ هجري.

**الجواب:** ابلیس د لعنت نه مخکښې ډېر زیات عابد وؤ《۳》ده ته د طاؤس الملائکة لقب ملاؤ شوې وؤ دې معلم ګرځول بې اصله خبره ده نه د روایات حدیثیه نه ثابت دي او نه د روایات اسرائلیه نه. دا صرف په واعظانو کښې مشهور ده.《۴》وهو الموفق.

《۱》قال العلامه قاضی بدرالدین الشیاطین العصاة من الجن و هم ولد ابلیس و المردة اعتاهم و اغواهم و هم اعوان ابلیس ینفذون بین یدیه فی الاغواء کا عوان الشیاطین قال الجوهری کل عات متمرد من الجن و الانس و الدواب شیطان ...... و قال ابو البقاد الشیطان فیعال من شطن یشطن اذا بعد و یقال فیه شاطن و تشیطن و سمی بذالک کل متمرد لبعد غوره فی الشر.

(اکام المرجان فی احکام الجان ص ۷،۸ فصل فی معنی الجن والشیطان لغةً

《۲》عن وهب بن منبه یقول و سئل عن الجن ما هم وهل یأکلون و یشربون ویتناکحون فقال هم اجناس فاما خالص الجن فهم ریح لا یاکلون و لا یشربون و لا یتوالدون و منهم اجناس یاکلون و یشربون و یتوالدون و یتناکحون الخ

(اکام المرجان فی احکام الجان ص ۲۹ باب فی بیان ان الجن یأکلون و یشربون)

《۳》قال العلامه عماد الدین ابن کثیر کان من اشد هم ای اشد الملائکة اجتهادًا واکثر هم علماً کان من اشراف الملائکة من ذوالاجنحة الاربعة کان من اشرف الملائکة و اکرمهم قبیلة و کان خاز نا علی الجنان کان له سلطان السماء الدنیا و کان له سلطان الارض و کان یسوس ما بین السماء و الارض فعصی فمسخه الله شیطانا رجیما. کان ابلیس رئیس ملائکة سماء الدنیا.

(تفسیر ابن کثیر ص ۷۵ جلد ۱ سجود الملائکة لآدم)

《۴》کما قال عبدالحکیم السیالکوٹی فی حاشیة بیضاوی ان هو معلم الملائکة.

## د جناتو په بدن کښې دا خلیدل

**سوال:** د بعضې خلقو خیال دې چه جنات د سړي په بدن کښې دننه داخلیدلې شي او د بعضې خلقو خیال دې چه جنات صرف په انسان باندې سُورې کوي نو آیا دا صحیح ده؟

المستفتي: محمد کریم تخت بهائي مردان...... ۲۰ جولائي ۱۹۷۵ھ

**الجواب:** د ابن حزم په نزد باندې پیرې د انسان په بدن کښې نشي داخلیدلې لیکن د جمهور علماؤ په نزد باندې داخلیدې شي او هم دا راجح قول دې.(۱) لحدیث ان الشیطان یجری من الانسان مجری الدم ﴿۲﴾ای فی عروقه او کجریان الدم .وفی الحدیث ان الشیطان جاثم علی قلب ابن ادم فاذا ذکر العبد ربه خنس واذاغفل توسوس ﴿۳﴾کما فی کما لین . وهو الموفق

## د جناتو تبلیغ کول

**سوال:** په زید باندې جنات کیني اودا دعوې کوي چه مونږ مسلمانان یو او ددین تبلیغ کوي. نو د جناتو د تبلیغ څه حکم دې؟

المستفتي: مولوی حاجي ایوب کلاپور گلگت......۸ربیع الاول۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په چا باندې پیریان کیناستل او دهغه په ژبه باندې خبرې اترې کول

﴿۱﴾ قال المحدث قاضی بدرالدین انکر طائفة من المعتزلة کالجبائی و ابی بکر الرازی محمد بن ذکریا الطبیب وغیرهما دخول الجن فی بدن المصروع و احالوا وجود روحین فی جسد مع اقرارهم بوجود الجن اذا لم یکن ظهور هذا فی المنقول عن النبی ﷺ کظهور هذا و هذا الذی قالوه خطأ وذکر ابو الحسن الاشعری فی مقالات اهل السنت والجماعة انهم یقولون ان الجن تدخل فی بدن المصروع کما قال الله تعالی الذین یا کلون الرباء لایقومون الا کما یقوم الذی یتخبطه الشیطان من المس ......وعن ابن عباس ان امرأ ةجاء ت بابن لها الی النبی ﷺ فقالت یا رسول الله ان ابنی به جنون و انه یأخذ ه عند غدائنا وعشائنا فمسح رسول الله ﷺ صدره ودعا له فتفتفه فخرج من جو فه مثل الجرو الاسود فسعی الخ (اکام المرجان فی احکام الجان ص ۱۰۷ باب فی بیان دخول الجن فی بدن المصروع)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۱۸ جلد ۱ باب فی الوسوسة)

﴿۳﴾ (مشکواة المصابیح ص ۱۹۹ جلد ۱ باب ذکر الله عزوجل)



ممکنات بلکه واقعات دي. خو د دوي نه استفاده کول د خطراتونه خالي نه ده. په انسانانو کښې چه د اشاعتِ دین او تعلیم وتعلم څومره سلسله جاري ده په جناتو کښې ددې سلمه حصه هم متوقع نه ده. ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## په ځان د ښاپیرۍ کیناستو دعوٰی کول

**سوال:** یو سړي دا دعوی اوکړه چه په ما باندې ښاپیرئ ده او دا ماته د غیبو خبرې ښائی. نو په دې غیبو خبرو باندې یقین کول څنګه دي؟

المستفتي: الحاج نیازولي خان شمالي وزیرستان حسن خیل۲ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا کهانت دي په دې یقین کول کفر دي. ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## یاجوج ماجوج کوم مخلوق دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یاجوج ماجوج جِني مخلوق دي یا برزخي. ددې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: محمد ابراهیم راولپنډي....۱۲ ستمبر۱۹۷۹ء

**الجواب:** دا قوم نه جني دي او نه برزخي دي بلکه انسي دي د یافث اولاد دي او د فساد دَ وخت د راتلو نه مخکښې ئې تعین کول چه دا یآجوج مآجوج دي بې محله قیاس دې. وهوالموفق.

## په بدن کښې د پیریانو ننوتل او په دمونو سره ئې علاج کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه جنات په خلقو کینا ستلې شي یا نه؟ او بعضې عاملان حضرات د تعویذونو او د مونو په ذریعې سره ددې علاج هم کوي. آیا دا صحیح ده؟

المستفتي: سید عنایت الرحمان قندهارو کلي چارسده....۱۹۱۲۱ء۱۹۹۱

﴿۱﴾ (والتفصیل فی اکام المرجان فی احکام الجان فی باب بیان وعظ الجن للانس وفی باب بیان تحمل الجن العلم عند الانس وافتوا هم للانس ،ص ۸۱)

﴿۲﴾ قال ابن نجیم وباتیان الکاهن وتصدیقیه وبقوله انا اعلم المسروقات وبقوله انا اخبر عن اخبار الجن ایای .(یکفر) (البحر الرائق ص ۱۲۰ جلد۵ احکام المرتدین)

**الجواب:** د ابو داؤد شریف د حدیث (رواه عن عبدالله بن عمرو) ﴿۱﴾ او د صالحینو د تعامل په بناء باندې تعویذ لیکل جائز دي چه شرکي کلمات پکښې نه وي ﴿۲﴾ البته تمائم) د تعویذونو نه یو جدا څیز دی کما فی شرح ابی داؤد. او د جناتو داخلیدل په قرآن او حدیث سره ثابت دي. ﴿۳﴾ او د هغې د ختمولو دپاره د مونه اچؤل هم ثابت او مباح دي. فقط.

## شیطان ته د باران ورولو اختیار نشته

**سوال:** دلته څمونږ ځائې کښې یو سړې وائي چه الله تبارک وتعالی شیطان ته د باران ورولو اختیار ورکړې آیا دا صحیح ده؟ او آیا شیطان وریځې ته ختلي او باران ورولې شي.؟

المستفتي: نامعلوم...

**الجواب:** د باران ورولو اختیار صرف الله تعالی سره دې د جال ته به استد راجاً څه اختیار ورکولې شی﴿۴﴾ اودَ وعظونو په کتابونو کښې لیکلی دی چه شیطانانو د فرعون په زمانه کښې د متیازو باران کړې وؤ. فقط.

---

﴿۱﴾(ابوداؤد شریف ص ۱۸۷ جلد۲ کتاب الطب)

﴿۲﴾عن عوف بن مالک الاشجعی ......فقال اعرضوا علی رقاکم لابأس بالرقیٰ مالم یکن فیه شرک. رواه مسلم (مشکواة المصابیح ص۳۸۸ جلد ۲ کتاب الطب والرقیٰ)

﴿۳﴾قال القاضی بدرالدین الشبلی ان الجن تدخل فی بدن المصروع کما قال الله تعالیٰ الذین یاکلون الربالایقومون الا کما یقوم الذی یتخبطه الشیطان من المس .قال عبد الله احمدبن حنبل قلت لابی......عن ابن عباس ان امرأة جاء ت بابن لها الی النبی ﷺ فقالت یا رسول الله ﷺ ان ابنی به جنون وانه یأخذه عند غدائنا و عشائنا فمسح رسول الله ﷺ صدره ودعاله فتفتفه فخرج من جوفه مثل الجرو الاسود فسعیٰ الخ.

(اکام المرجان ص۱۰۷ باب دخول الجن فی بدن المصروع)

﴿۴﴾ عن النواس بن سمعان رضی الله عنه .......... فیاتی علی القوم فیدعوهم فیؤمنون به فیامر السماء فمطر والارض فتنبت الخ (مشکواة المصابیح ص ۴۷۳ جلد ۲ باب ذکر الدجال)



# کتاب السیر والمناقب

........

## باب ما یتعلق بالنبی ﷺ

...

قال الله تعالی

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ ۚ وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا ﴿٦٩﴾

......



# کتاب السیر والمناقب

## باب ما یتعلق بالنبی صلی الله علیه وسلم

### د پیغمبر علیه السلام د والدینو په کفر او ایمان کښې توقف غوره دي

**سوال:** د حضور صلی الله علیه وسلم والدین په څه عقیده باندې وو. مسلمانان وو یا کافران او د فقه اکبر د عبارت ووالدیه صلی الله علیه وسلم ما تا علي الکفر، به څه جواب کوو. وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: حمید الرحمان جامعه محمدیه جرما کوهاټ.... ۲۵ محرم ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په دیکښې روایات مختلف دي بعضو کښې دي چه په کفر باندې مړه دي او بعضو کښې دي چه د ژوندي کیدلو نه پس ئې اسلام قبول کړو او بیا وفات شول خو غوره پکښې توقف دي ځکه چه دا د دین د ضروریاتو نه دي او نه به دَدې په باره کښې په قبر کښې تپوس کیږي او نه په محشر کښې. ﴿ ۱ ﴾ وهو الموفق.

### د (الصلاة والسلام علیک یا رسول الله) وئیلو څه حکم دي

**سوال:** په پیغمبر علیه السلام باندې په دې طریقې سره درود شریف او سلام لوستل (الصلوة والسلام علیک یا رسول الله، جائز دي که نا جائز؟

المستفتي: اصغر علي متعلم دار العلوم حقانیه اکوړختک، ۱۸ اکتوبر ۱۹۸۴ء

﴿ ۱ ﴾ قال ابن عابدين واحياء الابوين بعد موتهما لا ينافي كون النكاح كان في زمن الكفر ولا ينافي ايضا ماقاله الامام في الفقه الاكبر من ان والديه صلی الله علیه وسلم ماتا على الكفر ولا مافي صحيح مسلم استأذنت ربي ان استغفر لامي فلم يأذن لي وما فيه ايضا ان رجلا قال يا رسول الله اين ابي قال في النار فلما قفا دعاه فقال ان ابي واباك في النار لا مكان ان يكون الاحياء بعد ذلك لانه كان في حجة الوداع وكون الايمان عند المعاينة غير نافع فكيف بعد الموت فذاك في غير الخصوصية التي اكرم الله بها نبيه صلی الله علیه وسلم واما الاستدلال على نجاتهما بانهما ماتا في زمن الفترة فهو مبني على اصول الاشاعرة ان من مات ولم تبلغه الدعوىٰ يموت ناجيا اما الماتريدية فان مات قبل مضى مدة يمكنه فيها التامل ولم يعتقد ايمانا ولا كفراً فلا عقاب عليه بخلاف ما اذا اعتقد كفراً اومات بعد المدة غير معتقد شيئا نعم البخاريون ...... وبالجمله كما قال بعض المحققين انه لا ينبغي ذكر هذه المسئلة الامع مزيد الادب وليست من المسائل التي يضر جهلها او يسئل عنها في القبر اوفي الموقف فحفظ اللسان عن التكلم فيها الا بخير اولىٰ واسلم. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۴۱۹ جلد ۲ باب نكاح الكافر)

**الجواب:** درود شريف وئيل بذات خود يو لوئي عبادت دي ليکن دا درود شريف د بريليانو او بدعيتيانو شعار دي لهذا د صحيح العقيده سړو د پاره ترې نه د بد ګمانئ او تهمت په وخت کښې اجتناب ضروري دي﴿١﴾ وهوالموفق.

## د محمد ﷺ د اولين او آخرين کيدلو مطلب

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې خلق وائي چه حضور ﷺ اولين او آخرين دې. او بعضې وائي چه اولين نه دې صرف آخرين دې. نو تاسو د صحيح مطلب وضاحت اوکړئ مهرباني به وی؟

المستفتي: محمد مسلم هنګو ضلع کوهاټ...

**الجواب:** د پيغمبر عليه السلام روح مبارک د ټولو روحونو نه اول پيدا شوې دې او بدن مبارک ئې د ټولو انبياؤ نه وروستو او په آخر کښې پيدا کړې شوې دې نو دا معنی د اولين او آخرين ده﴿٢﴾ دا نه چه ليس قبله شي وليس بعده شئ. چه د الله تعالی صفت دې. وهوالموفق.

## د رسول الله ﷺ د پلار نيکه په ايمان او کفر کښې توقف کول پکار دي

**سوال:** ځمونږ د خاندان څه شيعه ګان خلق وائي چه د پيغمبر عليه السلام نيکه کښې څوک هم کافر نه وو او هغوي د ابراهيم عليه السلام د پلار د کافر کيدلو نه هم انکار کوي او وائي چه آذر ئې تره وو، د مسئلې وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: محمد اکبر ډيره غازي خان... ٢٧ رمضان ١٤٠٥ھ

**الجواب:** د قرآن نه صفا معلوه د چه آذر د ابراهيم عليه السلام پلار وو او کافر

---

﴿١﴾ عن النبی ﷺ اتقوا مواضع التهم. رواه البخاری فی الادب المفرد، وايضاً وعن عمر من سلک مسالک التهم اتهم رواه الخرائطی فی مکارم الاخلاق، عن عمر موقوفا بلفظ من اقام نفسه مقام التهم فلا تلومن من اساء الظن به. (الموضوعات الکبریٰ ص ٤٩ رقم حديث ١٥١)

﴿٢﴾ عن ابی هريرة قال قالوا يا رسول الله متی وجبت لک النبوة قال وادم بين الروح والجسد رواه الترمذی، وعن العرباض بن سارية عن رسول الله ﷺ انه قال انی عند الله مکتوب خاتم النبيين وان آدم لمنجدل فی طينته الخ. (مشکواة المصابيح ص ٥١٣ جلد٢ باب فضائل سيد المرسلين)



تير شوې دي او بعضې مفسرينو ليکلي چه آذر ئې تره دې ليکن په بلا سنده تاريخي رواياتو سره د قرآن تصريح پريخو دل نه د علم تقاضا ده او نه د عقل تقاضا ده. او د پيغمبر عليه السلام د والدينو متعلق د کفر او اسلام دواړه قسمه روايتونه نقل دي. القسم الاول ظاهر مروي والاسلام بعد الاحياء مروي في الطبراني. ﴿١﴾ لهذا احتياط دادې چه دهغوي متعلق دې توقف اوکړشي کما صرح به علامه شامي﴿٢﴾ وهوالموفق.

## حضور ﷺ بذات خود بشر دي اوپه اعتبارد هدايت سره نور او راهنما دي

**سوال:** ځمونږ ځائې کښې دوه قسم خلق دي، د يو قسم خلقو دا نظريه ده چه حضور ﷺ بشر دې او د دويم قسم خلقو دا نظريه ده چه حضور ﷺ نور هم دې او بشر هم دې. دا اختلاف ختمولو دپاره وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: امداد خان سعودي عرب....٢٥ نومبر ١٩٨٤ء

**الجواب:** الله تعالی په قرآن مجيد کښې پيغمبر ته بشر هم وئيلې دې حيث قال قل انما انا بشر مثلکم (کهف) سبحان ربي هل کنت الابشراً رسولا. ﴿٣﴾ او نور ئې هم وئيلې دې حيث قال قد جاء کم من الله نور وکتاب مبين (مائده) ﴿۴﴾ حقيقت دادې چه پيغمبر عليه السلام بذات خود بشر او انسان دې او په اعتبار د هدايت او نبوت سره نور او راهنما دې. وهوالموفق

---

﴿١﴾ قال ابن عابدين الاتریٰ ان نبينا ﷺ قد اکرمه الله تعالیٰ بحياة ابويه له حتی امنابه کمافی حديث صححه القرطبی وابن ناصر الدين حافظ الشام وغيرهما فانتفعا بالايمان بعد الموت علی خلاف القاعدة اکراماً لنبيه ﷺ کما احيا قتيل بنی اسرائيل ليخبر بقاتله ......وما قيل ان قوله تعالیٰ ولا تسئل عن اصحاب الجحيم نزل فيهما لم يصح وخبر مسلم ابی وابوک فی النار کان قبل علمه. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ٣١٧ جلد٣ مطلب فی احياء ابوی النبی ﷺ باب المرتد)

﴿٢﴾ قال ابن عابدين وبالجمله کما قال بعض المحققين انه لاينبغی ذکر هذه المسئلة الامع مزيد الادب وليست من المسائل التی يضر جهلها اويسئل عنها فی القبر اوفی الموقف فحفظ اللسان عن التکلم فيها الابخير اولیٰ واسلم. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ٤١٩ جلد٢ باب نکاح الکافر)

﴿٣﴾ قال العلامه آلوسی، وقرأ ابن کثير وابن عامر قال سبحان ربی ای قال النبی ﷺ هل کنت الا بشراً رسولا. کسائر الرسل عليهم السلام وکانوا لا يأتون قومهم الابما يظهره الله تعالیٰ علی ايديهم حسبما تقتضيه الحکمة من غير تفويض اليهم فيه ولا تحکم منهم عليه سبحانه و"بشراً" خبر کان و"رسولاً" صفته وهو معتمد الکلام وکونه بشراً توطئة للملک ردالما انکروه من جواز کون الرسول بشراً ودلالة علی ان الرسل عليهم السلام من قبل کانوا کذلک ولهذا قال الزمخشری هل کنت الا رسولا کسائر الرسل بشراً مثلهم. (روح المعانی ص ٢٤٤ جلد ٩ سورة الاسراء ص ٩٤)

﴿۴﴾ قال العلامه آلوسی، قد جاء کم من الله نور، عظيم وهو نور الانوار والنبی المختار والیٰ هذا ذهب قتاده واختاره الزجاج وقال ابو علی الجبائی عنی بالنور القرآن لکشفه واظهاره طرق الهدی واليقين واقتصر علی ذلک الزمخشری ..........وقد جاء کم نور ويهديهم يرجع الیٰ قوله عز شانه وکتاب مبين کقوله هدی للمتقين انتهیٰ. (تفسير روح المعانی ص ١٤٣ جلد٤ سورة المائدة آيت :١٥)

## د پيغمبر عليه السلام بشريت د قرآن نه ثابت دي

**سوال:** رسول الله صل الله عليه وسلم نور دي يا بشر ؟ په قرآني ايتونو او حديثونو سره حوالې اوليکئ؟

المستفتي:سراج احمد پير پيائي نوشهره.....١٩١٢١١٩٧٣

**الجواب:** پيغمبر عليه السلام نور هم دې او بشر هم دې. په قرانِ کريم کښې په دې باندې تصريح شويده. ﴿١﴾ البته که يو سړې د پيغمبر عليه السلام د بشريت نه انکار کوي نو علامه آلوسي رحمه الله په روح المعاني کښې دهغه د کفر فتوي نقل کړيده. فليراجع الي تفسير قوله تعالى لقد من الله علي المؤمنين.﴿٢﴾ نوټ: چونکه دا عوامي مسئلې نه دي نو دومره تفصيل باندې اکتفاء اوکړئ. فقط

## د پيغمبر عليه السلام تاريخ ولادت او تاريخ وفات

**سوال:** د حضور ﷺ په تاريخ ولادت او تاريخ وفات کښې مختلفې رائې دي عام طورسره د دواړو تعين دولسم ربيع الاول ګڼړلې کيږي.اوحکومت پاکستان هم په دولسم د ربيع الا ول باندې يوم ولادت کوي. لهذا صحيح تاريخ ولادت او وفات باندې رڼړا واچوئ؟

المستفتي:مولوي عبدالرحيم جلبئ ضلع صوابي مردان١٤٠١١٥١٢٣هجري.

**الجواب:** د تحقيق نه پس معلوميږي چه تاريخ ولادت باسعادت په اتم ربيع الاول او وفات په ٢ربيع الاول دې.﴿٣﴾ وهو الموفق

﴿١﴾قال الله تعالیٰ قد جاء كم من الله نور و كتاب مبين ،(سورة المائده آيت:١٥ پاره:٥) قال الله تعالیٰ وما منع الناس ان يؤمنوا اذ جاء هم الهدیٰ الا ان قالوا ابعث الله بشرا رسولا.(سورة الاسراء آيت :٩٤ پاره: ١٥)
﴿٢﴾قال العلامه آلوسی فلو قال شخص اومن برسالة محمد ﷺ الي جميع الخلق لكن لاادری هل هومن البشر اومن الملائكة اومن الجن اولا ادری هل هو من العرب او العجم فلا شک فی کفره لتكليبه القرآن وجحده ماتلقه قرون الاسلام خلفا عن سلف وصار معلوما بالضرورة عند الخاص والعام ولا اعلم فی ذلک خلافا.....فان جحده بعد ذلک حكمناه بكفره انتهیٰ .(تفسير روح المعانی ص ١٧٨ جلد٣ سورة آل عمران آيت:١٦٤)
﴿٣﴾ شيخ محمد ادريس کاندهلوي رحمه الله فرمائي چه سردار دوعالم حضرت محمد مصطفي ﷺ د ربيع الاول په اتم تاريخ د ګل په ورځ مطابق اپريلَ ٥٧٠ء په مکه مکرمه کښې د صبح صادق په وخت د ابو طالب په کور کښې پيدا شو ، د جمهور محدثينو او مورخينو په نيز غوره او مختاره قول هم دادې (سيرت مصطفي ص ٥١ جلد اول) تاريخ وفات د مشهور قول په بناء باندې ١٢ ربيع الاول دې. موسیٰ بن عقبه او ليث بن سعد او خوارزمي اول د ربيع الاول د وفات تاريخ ښودلې دې او کلبي او ابو مخنف دويم د ربيع الاول ښودلې دې علامه سهيلي په روض الانف کښې او علامه ابن حجر عسقلاني په شرح بخاري کښې دا قول غوره ګرځولې دې (سيرت مصطفي محمد ادريس کاندهلوی ص ١٧٦ ج٣)



## د حضور ﷺ د څادر مقداراو رنګ. ويښته مبارک او د لستوڼو اوقميص مقدار

**سوال:** (١) د حضور ﷺ عام لباس يعني د څادر مقدار او رنګ څه ؤو؟ (٢) د ويښتو مقدار ئې څومره وو؟ (٣) د لستوڼو او قميص مقدار هم اوليکئ. ډيره مهرباني به وي؟

المستفتي:شيرعلي خان لکي مروت....١٢جون١٩٧٠

**الجواب:** (١) د څادر اوږدوالې څلور شرعي ګزونه وو او پلنوالې دوه نيم شرعي ګزونه وو. يا دوه ګزه او يو لويشت او رنګ ئې شين وؤ.﴿١﴾ (زرقاني ص ٢٩ جلد ٥) (٢) د حج نه علاوه به ئې ويښته ساتل (الي انصاف اذنيه، الي شحمتي الاذنين، الي المنكبين، الي مافوق المنكبين فی اوقات مختلفة، فليراجع الي الشمائل و غيرها،﴿ ٢ ﴾ (٣) لستوڼې ئې ډير اوږده او ډير کهلاؤ نه وو، ترمړوندونو پورې اوږده وو.﴿ ٣ ﴾او قميص ئې ګيټوتر بره پورې وو او غالب داده چه د پنډو د نيمې پورې وو. ﴿٤﴾ (زرقاني ص٥جلد ٥) وهوالموفق

## دَ جمعې مونځ او خطبه. د اذان ابتداء اود پيغمبر عليه السلام د والدينو د وفات تاريخ او ځائې

**سوال:** (١) رسول الله صله الله عليه وسلم د جمعې اولنئ خطبه په کوم تاريخ او کوم ځائې (جمات) کښې وئيلې وه؟ (٢) دټولو نه مخکښې د جمعې مونځ کله په کوم جمات کښې شوې وو؟ (٣) د مونځ نه مخکښې د اذان کولو رواج د کوم وخت نه شوې او د ټولو نه مخکښې داذان چا اوپه کوم جمات کښې کړې وو ؟(٤)

﴿١﴾عن رمثة قال رأيت النبی ﷺ وعليه بردان اخضران .(شمائل ترمذی ص٦ جلد٢ باب ماجاء فی لباس رسول الله ﷺ)
﴿٢﴾عن انس بن مالک قال كان شعر رسول الله ﷺ الی نصف اذنيه.
عن قتاده قال قلت لانس كيف كان شعر رسول الله ﷺ قال لم يكن بالجعد ولا بالسبط كان يبلغ شعره شحمة اذنيه.
عن عائشة كان له شعر فوق الجمة ودون الوفرة .(شمائل ترمذی ص٣ ٤٠ جلد٢ باب ما جاء شعر رسول الله ﷺ)
﴿٣﴾عن اسماء بنت يزيد قالت كان كم قميص رسول الله ﷺ الی الرسغ.(شمائل ترمذی ص ٥ جلد٢ باب ما جاء فی لباس رسول الله ﷺ)
﴿٤﴾عن ابنی سعيد الخدری قال سمعت رسول الله ﷺ يقول ازرة المؤمن الی انصاف ساقيه لا جناح عليه فيما بينه وبين الكعبين وما اسفل من ذلک ففی النار الخ،رواه ابوداؤد وابن ماجه . (مشكواة المصابيح ص ٣٧٤ جلد٢ كتاب اللباس)

د پیغمبر عليه السلام د مور مبارک په کوم ځائې کښې دې او وفات ئې په کوم کال شوې؟ (۵) د پیغمبر عليه السلام د پلار مزار په کوم ځائې کښې دې او وفات ئې په کوم کال شوې؟

المستفتي: مرزا زاهد بیګ سمن آباد لاهور... ۱۲ مئ ۱۹۷۰ء

**الجواب:** (۱)، (۲) پیغمبر عليه السلام د جمعې په ورځ باندې د قبا نه مدینې منورې ته تشریف راوړلو، او په دغه ورځ ئې په بنو سالم بن عمر بن عوف کښې د جمعې مونځ او خطبه اولوستله چه ددې نه مخکښې پیغمبر عليه السلام خطبه او جمعه نه وه لوستلې. (البدایه والنهایة ص ۲۱۳، ۲۱۲ جلد ۳) (۳) په بذل المجهود، او فتح الباري کښې ئې لیکلې دي چه صحیح دادې چه اذان په مدینه منوره کښې په اول کال د هجرت باندې مقرر شو کله چه جمات جوړ شو او لنې اذان حضرت بلال رضي الله عنه د جمات د حدودو نه بهر وئیلې وو. (هکذا في الروایات الحدیثیة) ﴿۱﴾ (۴) د والده صاحبې مزار د مکې او مدینې په مینځ کښې ابواء مقام کښې دې او دهغې وفات د هجرت نه ۴۷ کاله مخکښې شوې وو. (البدایة والنهایة ص ۲۷۹ جلد ۲) (۵) د شام نه په واپسئ باندې مدینه منوره کښې وفات شو او په دار النابغه، کښې دفن شولو وفات ئې د هجرت نه ۵۳ کاله مخکښې شوې وو. (البدایة والنهایة ص ۲۶۳ جلد ۲) وهو الموفق.

## د پیغمبر عليه السلام د نیکونو سره (رحمة الله علیه) وئیلو والا امام حکم

**سوال:** محترم المقام جناب مفتي: صاحب دار العلوم حقانیه اکوړه خټک! عرض دادې چه تیره جمعه باندې به ځمونږ پیش امام صاحب په وعظ کښې د حضور اکرم ﷺ د نیکه عبد المطلب د نوم سره (رحمة الله علیه) وئیل، او دائې هم وئیل چه د هاشم د پشت نه د تلبیې آواز راتللو، ما امام صاحب د عبد المطلب د نوم سره د (رحمة الله علیه) د وئیلو نه منع کړو او دویمې خبرې باره کښې مې هم متوجه کړو چه دا دواړه خبرې صحیح نه دی،

﴿۱﴾ عن ابن عمر قال کان المسلمون حین قدموا المدینة یجتمعون فیتحینون للصلوة ولیس ینادی بها احد فتکلموا یوما فی ذلک فقال بعضهم اتخذوا مثل ناقوس النصاریٰ وقال بعضهم قرنا مثل قرن الیهود فقال عمر اولا تبعثون رجلا ینادی بالصلوة فقال رسول الله ﷺ یا بلال قم فناد بالصلوة. متفق علیه (مشکواة المصابیح ص ۶۴ جلد ۱ باب الاذان الفصل الثالث)



لیکن ددوی وینا ده چه دا خبرې د تاریخ په کتابونو کښې لیکلې شوې دي او صحیح دي. نودې سلسله کښې ما حضرت مولانا محمد یوسف بنوري صاحب، مفتي محمد شفیع صاحب کورنګي او مولانا احتشام الحق صاحب تهانوي ته رجوع اوکړه، په هغوی کښې د مولانا محمد یوسف بنوري نیوټاون جواب ملاؤ شو هغوی دواړو ته غلط وئیلي دي، ما هغه فتوي امام صاحب ته اوښودله لیکن امام صاحب اونه منله نو په دې صورت کښې که واقعي دواړه خبرې غلطې وي نو دې امام پسې اقتداء کول څنګه دي؟ او ددې خبرو بۀ څه کیږي؟

المستفتي: غلام حسین ګل احمد ټیکسټائل ملز لانډهي کراچي نمبر ۲۲ _ ۵ ذي الحجه ۱۳۷۹ھ

**الجواب:** د صحیح مسلم وغیره په روایتونو کښې په صراحت سره راغلې چه پیغمبر عليه السلام ابو طالب اسلام ته راوبللو نو هغه اووئیل، هو علی ملة عبد المطلب، او پیغمبر عليه السلام دهغه تردید اونه کړه، نو ددې نه معلومه شوه چه عبد المطلب په اسلام باندې نه دې تیر شوې، لیکن په بعضې ضعیف اقوالو کښې راغلي چه د پیغمبر عليه السلام ټول پلار نیکونو په توحید باندې تیر شوې دي او دیته ابو حیان مردود وئیلي دي. (فلیراجع الي فتح الملهم ص ۳۷۳ جلد ۱) لهذا د عبد المطلب حکم به د نورو مړو پشان وي کوم چه د فترت په زمانه کښې مړه شوې دي. یعني دهغوي جهنمي کیدل یا په میدان محشر کښې ترنه امتحان اخستل، نو دهغه سره رحمه الله وئیل نه دي پکار، او که څوک ئې وائي هم نو د ضعیف قول په وجه باندې سخت انکار نه دي کول پکار، او که نور عقائدئې صحیح وي نو اقتداء ورپسې کول صحیح دی. وهو الموفق

## د پیغمبر عليه السلام نیکونو سره (رحمة الله علیه) وئیل

**سوال:** بعضې خلق د پیغمبر علیه اسلام بعضې نیکونو سره مثلاً عبد المطلب او الیاس سره رحمة الله علیه وائي. او د سیره الجلیه مدارج النبوة للشیخ عبد الحق) او هامش سیرة الجلیة حواله ورکوي چه سید احمد الزیني کړې. او وائي چه مونږ له په دې زمانه کښې په داسې حوالو باندې عمل کول پکار دي. نو آیا د حضور ﷺ د نیکونو سره (رحمة الله علیه) وئیل جائز دي؟ بینوا توجروا.

المستفتي: ګوهر حسین سپروائزر ګل احمد ټیکسټائل ملز لانډهي کراچي نمبر ۲۲ یکم ذي الحجه ۱۹۷۹

**الجواب:** بعضي مفسرينو ليکلي دي چه د پيغمبر علیه السلام ټول پلار نيکونه په اسلام تير شوي دي.

قال في فتح الملهم ص ۳۷۳ جلد ۱ قيل ان آباءه ﷺ كلهم موحدون لقوله تعالىٰ وتقلبك في الساجدين لاكن رده ابوحيان في تفسيره بانه قول الرافضة ومعنى الاية وترددك في تصفح احوال المجتهدين فافهم۔

ليکن تحقيق دادي چه د پيغمبر علیه السلام د والدينو متعلق متعارض نصوص راغلي دي لهذا دهغوي په حق کښې توقف بهتر دي او د عبد المطلب متعلق خو په حديث کښې دومره راغلي دي چه کله پيغمبر علیه السلام ابو طالب باندې اسلام پيش کړو نو هغه اووئيل، هو علي ملة عبد المطلب، او پيغمبر علیه السلام ئې ترديد او نکړو. نو ددې نه عدم اسلام معلوميږي. او د باقي نيکونو حکم هغه دي کوم چه د فترت په زمانه کښې د نور مړو دې يعني د يو قول په بناء باندې جهنميان دي او دويم قول دادې چه د محشر په ميدان کښې به ترينه امتحان واخستلې شي. (فليراجع الي فتح الملهم (۳۷۲، ۳۷۳ ج۱) نو که څوک ورسره رحمه الله اووائي نو سخت انکار پرې نه دې پکار ځکه چه د مرجوح قول په بناء باندې دا مؤحدين دي. او په امتحان کښې د کامياب کيدلو د احتمال په وجه باندې او د جهنمي کيدلو والا قول د نه صحيح کيدلو په وجه باندې هم ګنجائش شته دې. فقط.

## د عيسیٰ علیه السلام نزول د محمد ﷺ د ختم نبوت سره منافي نه دې

**سوال:** د لته څمونږ ځائې کښې ډير علمائې کرام شته ليکن په يوه اهمه مسئله کښې مې خيال ستاسو انتخاب اوکړو! ستاسو خدمت کښې مسئله پيش کووم. مسئله داده چه خبيث او شيطان ځه په تذبذب کښې اچولې يم او دماغ ئې راله خراب کړي دي اګر چه زه ئې قائله نه يم ليکن صرف پريشان نه کړې ئې يمه مسئله دا ده چه عيسیٰ علیه السلام خو ژوندې دې الله پاک آسمان ته خيژولې دې نو د قران کريم په حوالې سره اوښايئ چه واپس راشي نو بحيثيت د پيغمبر به راځي يعني وحي به ورته کيږي يا نه؟ که وحي ورته کيږي نو بيا خو پيغمبر شو نو نعوذ بالله محمد ﷺ به څنګه خاتم النبين شي. او که د امتي په حيثيت سره راځي نو آيا الله تعالى به ترينه پيغمبري



اخلي؟ نو آيا داسې چرته بل نبي سره هم شوې دي چه پيغمبرې ئې ترنه واپس اخستې وي، ددې مسائلو حل د قرآن او حديث په حوالې سره راوليږئ؟

المستفتي: عبد العزيز مروت ډسټرکټ انسپکټر مدارس بنون ۱۹٦۹/۱۱/۲۹

**الجواب:** (الف) په قرآن مجيد کښې د حضرت عيسیٰ علیه السلام نزول طرفته په ايت، وان من اهل الكتاب الا ليؤمنن به قبل موته. (۱) او يكلم الناس في المهد وكهلا (۲) الاية کښې اشاره کړې شوې ده او په احاديث متواتره کښې ده نزول په صراحت سره ذکر شوې دې د مثال په طور سره يو روايت ليکلې کيږي.

عن ابي هريرة رضي الله عنه والذي نفسي بيده ليوشكن ان ينزل فيكم ابن مريم حكماً وعدلاً. الحديث رواه الشيخان وابو داؤد وابن ماجه واحمد في مسنده وفي رواية البيهقي من السماء وفي رواية احمد ينزل الروحاء فيحج منها او يعتمر او يجمعهما وبمعناه اخرجه الحاكم وزاد يقول ابوهريره اي بني اخي ان رأيتموه فقولوا ابوهريرة يقرءك السلام. وفي رواية نعيم بن حماد يتزوج. (۳)

**نوټ:** که ټول روايتونه بالا ستيعاب معلومول غواړې نو د حضرت شاه انور شاه کشميری رحمه الله کتاب. (التصريح بما تواتر في نزول المسيح) مطالعه اوکړئ.

(ب) د صحيح حديثنو نه ثابت دي چه هغه ته به وحي کولې شي (۴) نبوت يو وهبي نعمت دې چه د الله تعالى په انتخاب سره ورکولې کيږي لهذا د نبي نه نبوت چرته هم نه اخستلې کيږي او د حضرت عيسیٰ علیه السلام نبوت د حضور اکرم علیه السلام د ختم نبوت سره منافي نه دې، ځکه چه د خاتم النبيين مطلب دادې چه د هغه نه پس به چاته د نبوت منصب نه ورکولې کيږي او حضرت عيسیٰ علیه السلام ته خو نبوت د پيغمبر علیه السلام نه مخکښې ورکړې شوې دې. په عالم اجساد کښې د ختم نبوت دا مطلب نه دې چه دده نه پس به نبي نه نازليږي. بيشکه د حديثونو نه ثابت دي چه د عيسیٰ علیه السلام به په آخره زمانه کښې نزول کيږي. لهذا د الله تعالى د آخري شريعت پابند به وي (۵) دهغې تجديد او احياء به کوي.

---

(۱) (پ: ٦ سورة النساء ركوع: ۲ آيت: ۱۵۹)
(۲) (پ: ۳ سورة ال عمران ركوع: ۱۳ آيت: ۴٦)
(۳) (مشكواة المصابيح ص ۴۷۹ جلد ۲ باب نزول عيسىٰ عليه السلام)
(۴) عن النواس بن سمعان قال ذكر رسول الله ﷺ الدجال ...... اذا اوحى الله الى عيسىٰ اني قد اخرجت عبادالي لايدان لاحد بقتالهم فحرز عبادي الى الصور الخ (مشكواة المصابيح ص ۴۷۳ جلد ۲ باب العلامات بين يدي الساعة)
(۵) عن جابر ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه ...... فقال رسول الله ﷺ والذي نفس محمد بيده لو بدالكم موسىٰ فاتبعتموه وتركتموني لضللتم عن سواء السبيل ولو كان حياً وادرك نبوتي لاتبعني رواه الدارمي. (مشكواة المصابيح ص ۳۲ جلد ۱ باب الاعتصام بالكتاب والسنة)

ددې مثال داسې دي لکه چه د يوې ضلع ډپټئ کمشنر بلې ضلعې ته په سر کاري کار باندې لاړ شي نو اګر چه دا ډپټي کمشنر د خپلې عهدې نه معزول شوې نه دې ليکن د سرکاري کار نه علاوه بۀ د دويم ډپټي کمشنر د نافذ شوي احکاماتو پابند وي. فقط.

## د رسول الله ﷺ په نبوت باندې عقلي دليلونه

**سوال:** محترم صاحب قدر حضرت مفتي صاحب! عرض دادې چه څما نه يو انګريز دامريکې نه د پيغمبر عليه السلام په نبوت باندې عقلي دليلونه طلب کړې دي نو که تاسو ماته يو څو غټ عقلي دليلونه راوليږئ نو ډېره مهرباني به وي؟

المستفتي: محمد زيب خان پائمال بتګرام هزاره......۱۹۶۹ء/۸/۱۵

**الجواب:** (۱) پيغمبر عليه السلام د نبوت دعوی کړېوه او ددعوې د اثبات دپاره ئې معجزات ظاهر کړې وو، نو ددې دليل او برهان قائمولو نه پس به د څه شبهې ګنجائش نه وي ځکه د دروغژن مدعي نبوت په لاس باندې معجزات او خوارق نه شي ظاهريدلې. (۲) د پيغمبر عليه السلام د نبوت پيشنګويانې په مخکينو کتابونو کښې کړې شوې وې. (۳) پيغمبر عليه السلام چه د بعضې تير شوو او راتلونکو کارونو باره کښې خبر ورکړې دې هغه بالکل صحيح ظاهر شوې دي. (۴) پيغمبر عليه السلام چه د عقائدو، معاملاتو او اخلاقو متعلق کوم تعليم ورکړې هغه هر وخت مفيد او کامياب ثابت شوې دې. (۵) د نبوت ددعوې نه مخکښې دده په صدق او امانت کښې د هيچا شک نه وو او نه ئې د مخکښې نه دحکومت والو سره تعلقات قائم کړې وو. او نه ئې د عوامو سره څه رابطه قائمه کړې وه بلکه ناڅاپه ئې د ټول قوم او ماحول د جذباتو نه مخالف کارونو طرفته دعوت ورکړو چه په هغې کښې نه ده مال اُميد وو او نه د عزت بلکه د مرګ او تکليفونو سخت ترينه خطره وه نو عام عادت کښې د دروغژن او اهل دنيا نه داسې کارونه کيدل ممتنع دي بلکه دا د رښتوني او اهل الله علامت دي. (۶) د امريکې اهل کتاب چه په کوم دليل سره د حضرت موسیٰ عليه السلام او حضرت عيسیٰ عليه السلام نبوت ثابتوي مونږ بعينها دهغې دليلونو نه د خاتم النبيين عليه السلام نبوت ثابتوؤ. (۷) د هغه سره د صحبت والا خلقو کمال اخلاق او اخلاص او للهيت دده د کمال دليل دې. چه دا خبره په مخلوق کښې مَنلې شوې ده. او هغه



د چا شاګرد نه وو. نو معلومه شوه چه دې د الله تعالی لوئې پيغمبر دې. اوده استاذ الله تعالی دې. (۸) دده په تعليم سره يو ځنګلي قوم مهذب، اخلاقو والا او راهنما جوړ شو. (۹) د دروغژن کس داسې کاميابه نتيجه وتل عام عادت کښې ممکن نه دي. (۱۰) دومره کامل اخلاص، للهيت او شفقت چه بغير د ذاتي اغراضو نه وي دا د پيغمبر عليه السلام خاصه نښه ده. وهوالموفق.

## د نبي عليه السلام فضلات پاک دي

**سوال:** محترم جناب حضرت مفتي محمد فريد صاحب بارک الله في عمرک! دارالعلوم کراچي نه مولوي محمد عاشق الهي صاحب مدظله خط راليږلې چه نبي عليه السلام د فضلاتو په باره کښې څمونږ په پوهه کښې تحقيق دادې چه د نبي عليه السلام بول وبراز او هر قسم فضلات د احنافو او شافعيانو په نزد پاک دي. چه کله پاک کيدل او منلې شو نو په څکلو سره ئې هيڅ باک نشته او په صحابه کرامو کښې چه چا د فرطِ محبت نه د فضلاتو نه څه هم څکلې وي په هغې کښې څه قابلِ مواخذه خبره نشته. (بحواله خصائص کبریٰ ص۲۸ء ۷۱ جلد۱ شامي ۲۱۲) ليکن څما تسلي نه کيږي، ځکه چه د يو څيز طهارت اصل دې او که نجاست اصل دې؟ او احناف او شافعيه په طهارت باندې متفق دي، بيا ليکي چه د فرط محبت نه ئې او څکل، نو ددې نه خو اصل نجاست ثابت شو چه په بول وبراز کښې اصل نجاست دې، ټولو مومنانو ته حکم دې چه بول وبراز پليت دي او ددې په وتلو سره اودس هم ماتيږي. او حضور ﷺ به د بول و براز نه پس اودس کولو، د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت چه ما د پيغمبر عليه السلام د جامونه مني وينځله (بخاري) نو معلومه شوه چه د نجاست په وتلو سره اودس ماتيږي نو که بول او براز پليت نه وي نو اودس څنګه مات شو. ځکه چه ما يکون حدثاً يکون نجساً ومايکون نجساً يکون حدثاً. اصل غرض دادې چه ما کوم عبارت د شيم الحبيب، نه د روي انه اذا تغوط، نه شروع کړې تر آخره پورې مې ليکلې دې چه د علم په رڼا کښې اصل مسئله واضحه شي. چه په هغې کښې د چا ذاتي فعل يا فرط محبت يا د بې اختيارئ خبرې نه وي. مثلاً د پيغمبر عليه السلام د سورِي (سايه) په باره کښې روايا ت موجود دي

چه د پیغمبر علیه السلام سایه نه وه. لیکن مفتي محمد شفیع صاحب یوه رساله لیکلې په هغې کښې ئې ټول روایات غلط ثابت کړي دي او فرمائیلي ئې دي چه چرته په معتبر روایت کښې دا نشته چه د پیغمبر علیه السلام سایه نه وه. نو که په صحیح او معتبر روایتو نو سره دا لیکلې شوې مضمونونه ثابت شي اګر چه د پیغمبر علیه السلام خصوصیت وي نو هم مونږ به ئې اومنو، چه د عیسایانو پشان افراط او یهودیانو پشان تفریط لازم نه شي. فقط والسلام.

المستفتی: محمد جلال الحق ابازئ

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم. د السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته؛ نه پس دې دا خبرا واضحه وي چه ستاسو ټول مسائل علمي او د تفصیل طلب دي، او دې ورځو کښې د تدریس نه فراغت ملاویدل مشکل دي. نو په مختصر طریقې سره د اولنۍ مسئلې متعلق څه لیکم. هغه دا چه فقهائې کرامو د پیغمبر علیه السالم فضلات پاک منلي دي.

بما ورد فی الحدیث الصحیح انه علیه السلام کان طیباً (خوشبو وپاک) وظاهره یعم الفضلات ولان النبی ﷺ لم ینکر علی من شرب بوله ودمه والتقریر دلیل المشروعیة ولا بعد فیه علی من تامل فی المسک والحریر والعنبر فانها من الفضلات نعم یرد علیه انه علیه السلام کیف احتاج الی غسل المنی والاستنجاء اللهم الا ان یقال انه علیه الصلاة والسلام کان یجری علیها احکام النجاسة تعلیما للامة ای یجری علی فضلاته احکام فضلات الامة تعلیما لهم لاحکامها. او یقال ان ابقاء ها بحیث یراه الراوی مما یخل بالمروة ولذا یغسل المنی عند من قال بطهارته من الامة وهذا مما استفدت من بعض المشائخ قدس سره. وهو الموفق

## د رسول الله ﷺ روضه افضل ده او که خانه کعبه؟ او د حضرت جبرائل علیه السلام متشکل کیدل

**سوال:** علمائې کرام ومفتیان عظام په دې مسئله کښې څه فرمائي چه آیا د حضور ﷺ د روضه انور ځائې د بیت الله شریف نه زیات غوره

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین الشامی صحح بعض ائمة الشافعیة طهارة بوله ﷺ و سائر فضلاته و به قال ابو حنیفة کما نقله فی المواهب اللدنیه عن شرح البخاری للعینی و صرح به البیری فی شرح الاشباه و قال الحافظ ابن حجر تظافرت الادلة علی ذلک و عد الائمة ذلک من خصائصه ﷺ و نقل بعضهم عن شرح المشکاة لملاعلی قاری انه قال اختاره کثیر من اصحابنا و اطال فی تحقیقه فی شرحه علی الشمائل فی باب ما جاء فی تعطره علیه الصلاة والسلام. (رد المحتار ص ۲۳۳ جلد ۱ مطلب فی طهارة بوله ﷺ باب الانجاس)



دي؟ او آیا حضرت جبرائیل علیه السلام پیغمبر علیه السلام ته د وحي راوړلو په وخت کښې چرته د عائشه رضی الله عنها په شکل کښې هم راغلې دي که نه؟

المستفتی: ګل شیر خان حقاني جمرود خیبر ایجنسي...۲۳/۳/۱۹۸۸

**الجواب:** (۱) ابن تیمیه وغیره علمائې کرام فرمائي چه اول الذکر غوره دي والمسجود هوالله دون الکعبه والتوجه الیها لا یقتضي الافضلیة فافهم. (۱) (۲) معاذ الله. وهو الموفق

## حضور ﷺ د قضائې حاجت په وخت کښې لیدلې کیدل

**سوال:** څمونږ ځائې کښې یو مولوي صاحب دي هغه وائي چه حضور ﷺ د قضائې حاجت په وخت کښې چا نه دي لیدلې، دا خبره تر کومه حده پورې صحیح ده؟

المستفتی: اهالیان جامع مسجد شیرینګل دیر....۱۹۷۵ء/۱۱/۹

**الجواب:** دا خبره د حضرت عبدالله بن عمر (هما) د حدیث نه مخالف ده چه هغه یوه ورځ په کوټه باندې اوختلو نو پیغمبر علیه السلام ئې اولیدلو چه قضائې حاجت ته تشریف فرما وو (۲) والحدیث مشهور. وهو الموفق

## د حضور ﷺ غسل او جنازه او په تفسیربیضاوي کښې د غایه مطلب

**سوال:** (۱) رسول کریم علیه السلام ته د وفات نه پس چا غسل ورکړې وو؟ (۲) د جنازې مونځ پرې چا کړې وو؟ (۳) د تفسیر بیضاوي په عبارت کښې ئې (غایةً) لیکلې دې څه مقدار دي؟

المستفتی: محمود الظفر مردان.....۱۴ ذي القعد ۱۳۹۷

**الجواب:** حافظ ابن کثیر په البدایه والنهایة صفحه ۲۶۰ جلد پنځم کښې د امام

﴿۱﴾ یدل علیه حدیث ابن عمر انه نظر یوما الی الکعبة فقال ما اعظمک وما اعظم حرمتک والمومن اعظم حرمة عند الله تعالیٰ منک اخرجه الترمذی وحسنه صفحه ۲۴ ج ۲ ورواه ابن ماجه مرفوعا عن ابن عمر ولفظه قال رایت رسول الله صلی الله وسلم یطوف بالکعبة ویقول ما اطیبک واطیب ریحک واعظم حرمتک والذی نفس محمد بیده لحرمة المومن اعظم عند الله حرمة منک الخ صفحه ۲۹۰ (بوادر النوادر ص ۵۴)

﴿۲﴾ عن ابن عمر قال رقیت یوما علی بیت حفصة فرأیت النبی ﷺ علی حاجته مستقبل الشام مستدبر الکعبة هذا حدیث حسن صحیح. (ترمذی ص ۳ جلد ۱ ابواب الطهارة باب ماجاء من الرخصة فی ذلک)

احمد بن حنبل رحمه الله نه روایت کړي دا چه غسل حضرت علي رضي الله عنه ورکولو اړولو به حضرت عباس رضي الله عنه او اسامه صالح رضي الله عنهما به اوبه اچولې. ﴿۱﴾ ﴿۲﴾ ابن کثیر ص ۲۲۵ جلد پنځم لیکلي دي چه د پیغمبر علیه السلام جنازه ځان ځان له کړې شوې وه. ﴿۲﴾ ﴿۳﴾ د غایةً معیار د تسلط غیبي عقیده ساتل دي. وهو الموفق

## روضهٔ د رسول علیه السلام د شریعت نه خلاف نه ده

**سوال:** یو کس وائي چه دَرسول الله ﷺ روضه مبارکه غلطه او د شریعت نه خلاف جوړه شویده ځکه چه په قبرونو باندې آبادی کول منع دي نو دداسي کس د وینا په باره کښې څه حکم دی؟

المستفتي: حاجي میر جمال نقشبندي ختکي شریف. ۷ذي قعده ۱۳۹۵هجري

**جواب:** لایخفی ان النبی ﷺ نهیٰ عن البناء علی القبور کما رواه مسلم ﴿۳﴾ وغیره وقال ابوبکر الصدیق رضی الله عنه سمعت رسول الله ﷺ قال ما قبض الله نبیا الا فی الموضع الذی یحب ان یدفن فیه ادفنوه فی موضع فراشه رواه الترمذی. ﴿۴﴾ ولا ریب فی ان النبی ﷺ توفی فی البیت والبناء فلا بد ان یکون قبره مخصوصا من سائر القبور ویکون البناء علی قبره المبارک جائزاً ﴿۵﴾ ومن تمسک بالحدیث المحرم ولم ینظر الی الحدیث العارض فهو مسلم نجدی ولا حول ولا قوة الا بالله العلی العظیم .وهو الموفق

---

﴿۱﴾ عن ابن عباس ........فاسنده علی الی صدره وعلیه قمیصه وکان العباس وفضل وقثم یقلبونه مع علی وکان اسامه بن زید وصالح مولاه هما یصبان الماء وجعل علی یغسله ولم یر من رسول الله ﷺ شیئا مما یری من المیت الخ.(البدایة والنهایة ص ۳۰۰ جلد۵ صفة غسله علیه السلام)

﴿۲﴾ قال الحافظ عماد الدین ابن کثیر ،وهذا الصنیع وهو صلاتهم علیه فرادی لم یؤمهم احد علیه امر مجمع علیه لا خلاف فیه .(البدایة والنهایة ص ۳۰۵ جلد۵ کیفیة الصلاة علیه ﷺ)

﴿۳﴾ عن جابر قال نهی رسول الله ﷺ ان یجصص القبر وان یبنیٰ علیه وان یقعد علیه رواه مسلم.(مشکواة المصابیح ص ۱۴۸ جلد۱ باب دفن المیت)

﴿۴﴾ (شمائل ترمذی ص ۲۸ جلد۲ باب ماجاء فی وفات رسول الله ﷺ)

﴿۵﴾ زمونږ د پاره د ټولو نه لوئي دلیل دا هم دي چه د دفن نه روستو په خلفائي راشدینو کښې چا هم د دې بناء په بقا باندې نکیر نه دی کړې بلکه په یو موقع باندې د استسقاء دسخت ضرورت په وجه چت کښې صرف یو روشندان کهلاو کړې شو چه ددې نه ددې بناء د بقاء مشروع کیدل هم معلوم شو ،اودا دصحابهؤ په وخت کښې شوی وو ،اوهیڅ یو صحابی انکار نه دی کړې نو ددوی په اجازت اجماع اوشوه چه دا د استثناء د پاره حجت کافیه دي.(ازمرتب)



## حضور ﷺ نور، بشر او رسول دی

**سوال:** حضور علیه السلام نور دي یا بشر دي؟ تفصیلي جواب راکړئ.

المستفتي: شوکت علي صاحب مدرسه تعلیم القران مردان ۱۵ربیع الثاني ۱۴۰هـ

**الجواب:** رسول الله علیه السلام نور هم دي او بشر هم دي.

لقوله تعالیٰ سبحان ربی هل کنت الا بشراً رسولا، الآیه ﴿۱﴾ (الاسراء) قل انما انا بشر مثلکم یوحی الی ﴿۲﴾ (کهف) .قد جاء کم من الله نور وکتاب مبین. (مائدة) ﴿۳﴾

نو په دې کښې د یو نه انکار کول د ضروریاتِ دین نه انکار کول دي او کفر دي البته ټول بشر یو شان نه دي لکه چه عام کاڼړي او جواهرات یو شان نه دي. ﴿۴﴾ او رسول الله ﷺ نه خدائې دي او نه فرشته ده بلکه د ټول عالم د پاره یوه رڼړا ده او ټول بدن ئې هم مُنور دې. بهر حال په هر مسلمان باندې ضروري ده چه پیغمبر ﷺ بشر او رسول اومني. د عربو مشرکانو بشر منلو خو رسول ئې نه منلو او د موجوده زمانې ملحدین ئې رسول مني خو بشر ئې نه مني. وهو الموفق

## د محمد ﷺ د نوم سره د [ص] یا [ع] نښې لیکلو حکم

**سوال:** د محمد (صل الله علیه وسلم) د نوم مبارک سره د (ص) یا(ع) نښنه لګول څه حکم لري او چه د چا نوم دوست محمد وي نو په هغه محمد باندې ﷺ لیکل ضروري دي که نه؟

المستفتي: فریدون صدیقي خادګزئ دیر...۱۹ ربیع الاول ۱۴۰۲ هجري

**الجواب:** د پیغمبر علیه السلام نوم سره علیه الصلوة والسلام او (صل الله علیه وسلم) لیکل پکار دي. صرف په [ص] یا [ع] اکتفاء کول یو جاهلانه رسم دي.او دارنګې دوست محمد د رسولِ خدا نوم نه دې دې سره دا جمله لیکل بې ځایه اقدام دې. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (پ: ۱۵ سورة بنی اسرائیل رکوع: ۱۰ آیت: ۹۳)

﴿۲﴾ (پ: ۱۶ سورة کهف رکوع: ۳ آیت: ۱۱۰)

﴿۳﴾ (پاره :۶ سورة مائدة رکوع: ۷ آیت: ۱۵)

﴿۴﴾ [محمد بشر لکن لیس کالبشر...... محمد یاقوتة والناس کالحجر]
وقال البوصیری: فمبلغ العلم فیه انه بشر ......وانه خیر خلق الله کلهم

## د رسول الله ﷺ ولادت دعام عادت نه خلاف نه وؤ

**سوال:** علمائي اهلسنت والجماعت څه فرمائي چه د انبياء عليهم الصلوة والسلام او د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ولادت دعامو انسانانو پشان شوي دي يا د پيغمبر عليه السلام او نور انبيائي كرامو عليهم السلام ولادت د ګسي پوختئ نه لكه د حضرت حواء بي بي شوې دې؟

المستفتي: ضياء الرحمان شيدو نوشهره.....١٩٧٢،٢١٥١

**الجواب:** واضحه دې وي چه قاعده داده چه د هر يو لفظ نه به معنى متبادره مراد كيږي ترڅو چه د هغې نه مانع موجود نه وي يحتمل النصوص على ظواهرها مالم يمنع مانع نو كوم كس چه دا دعوي كوي چه د ولادت نه غير متبادر معنى مرادده نو هغه لره پكاردي چه د قران، او حديث يا آثارو نه دليل پيش كړي صرف دعوىٰ ناكافي ده. دارنګي كفر د ضرورياتونه انكارته وئيلې كيږي او دا خبره چه پوښتئ د ضرورياتونه خو څه كوي د نظرياتو نه هم نه ده. د البدايه والنهايه او سيرت ابن هشام نه داسې واضحه كيږي چه ولادت ئي خلاف عادت نه وو. او ممكنه ده چه داسې وئيل په ادب او احتياط باندې مبنى وى. وَمآ خذه قوله تعالى خلق من ماء دافق يخرج من بين الصلب والترائب. فافهم وتدبر ولاتكن ينبع ممن العجائب والغرائب. فقط

## حضور ﷺ خاتم الانبياء دي

**سوال:** حضور صلى الله عليه وسلم به د كله نه خاتم النبيين تسليم كولې شي آيا د ولادت نه مخكښې هم خاتم الانبياء وو؟ وضاحت او كړئ مهرباني به وي.

المستفتي: مولانا عبدالستار تاؤن شپ.....يكم ١/ذي قعده١٤٠٢هـ

**الجواب:** د ختم متعلق ډير اياتونه او حديثونه راغلي دي. ﴿١﴾ او په هغې كښې دټولونه اولني تعين كول مشكل دي لهٰذا مونږ عقيده لرو چه پيغمبر عليه السلام د الله تعالى په علمِ ازل كښې خاتم الانبياء دي او ددې متعلق د اولنئ وحي تاريخ نامعلوم دي. وهو الموفق

﴿١﴾ قال الله تبارك و تعالىٰ: وما كان محمد ابآ احد من رجالكم و لكن رسول الله و خاتم النبيين (سورة الاحزاب آيت: ٤٠)
وعن ابى هريرة قال قال رسول الله ﷺ مثلى و مثل الانبياء كمثل قصر احسن بنيانه ترك منه موضع لبنة فطاف به النظار يتعجبون من حسن بنيانه الاموضع تلك اللبنة فكنت انا سددت موضع اللبنة ختم بى البنيان و ختم بى الرسل و فى رواية فانا اللبنة و انا خاتم النبيين. متفق عليه.
(مشكواة المصابيح ص ٥١١ جلد ٢ باب فضائل سيد المرسلين ﷺ)



## حضور ﷺ د اولې ورځې نه خاتم النبيين دي

**سوال:** ختم نبوت به د كوم وخت نه منلې كيږي؟ خاتم النبيين به د پيغمبر عليه السلام دولادت مبارك نه پس منلې كيږي يا د ختم نبوت والا آيت نازليدلو نه پس او يا د پيغمبر عليه السلام دوفات نه پس به منلې كيږي. مطلب دا چه دوحي د دروازې بنديدل به د څه وخت نه منلې كيږي؟

المستفتي: رانا عبدالستار تاؤن شپ لاهور.....٣رمضان ١٤٠٢ هجري.

**الجواب:** نبي عليه السلام د اولې ورځې نه خاتم النبيين دي﴿١﴾ البته د ختم النبوت ظهور هله اوشو چه دهغې متعلق جلي يا خفى وحى نازله شوه. او بهر حال ختم نبوت كيدل د عيسىٰ عليه السلام د نزول اوهغه ته د وحي كيدلو سره څه ټكراؤ نشته. وهو الموفق

## د حضور ﷺ په ختنه كښې اختلاف دي

**سوال:** دلته يو دوه كسان اختلاف كوي يو كس وائي چه پيغمبر عليه السلام ئي سنت كړې وؤ اوبل كس وائي چه قدرتي سنت شوي وو. براه كرم تسلئ والا جواب راوليږئ؟

المستفتي: نورمحمد تالاب مسجد پشاور...١٢٧ربيع الثاني١٤٠٢هجري.

**الجواب:** دې مسئله كښې اختلاف دې خو غوره قول دادې چه قدرتي سنت كړې شوې نه وؤ پيدا شوې.

كما فى رد المحتار ص٦٥٧ جلد ٥ وقد اختلف الرواة والحفاظ فى ولادة نبينا ﷺ مختونا ولم يصح فيه شئ واطال الذهبى فى رد قول الحاكم انه تواترت به الرواية وقد ثبت عندهم ضعف الحديث به وقال بعض المحققين من الحفاظ الاشبه بالصواب انه لم يولد مختونا. ﴿٢﴾ وهو الموفق

﴿١﴾ عن العرباض بن سارية عن رسول الله ﷺ انه قال انى عند الله مكتوب خاتم النبيين و ان اٰدم لمنجدل فى طينة الخ (مشكواة المصابيح ص ٥١٣ باب فضائل سيد المرسلين)
﴿٢﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ٥٣٠ جلد٥ مسائل شتى كتاب الخنثىٰ)

**په اسم ذات او اسم محمد ﷺ کښې د شونډو د بندیدلو او نه بندیدلو لطیفه**

**سوال:** څمونږ د جمات امام صاحب یو ځل په تقریر کښې اووئیل، چه د الله د نوم اخستلو وخت کښې شونډې نه بندیږي او د محمد ﷺ په نوم سره شونډې بندیږي. په دې نوم کښې څومره خوږوالې دې. داجمله وئیل څنګه دي؟

المستفتي: حکیم سید اختر حسین صدر کیملپور

**الجواب:** ددې نه مقصد د اسم محمد ﷺ تعظیم دې د الله د نوم تحقیر نه دې. لهذا په دې کښې حرج نشته دې.

**د حضور ﷺ په زمانه کښې د نفاق موجودیدل**

**سوال:** آیا د حضور ﷺ په زمانه کښې هم نفاق وو؟ د صحابه کرام رضي الله عنهم اجمعین په پاکو هستو باندې به څه اثر خو نه پریوتلو. براه کرم وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: ظاهر شاه تخت بهائي مردان.... ۲رجب۱۴۰۲هجري.

**الجواب:** نفاق به ترقیامت نږدې پورې تر د دجال د خروج پورې وي. البته د منافقانو د درغو په جال کښې د اخلاص والاؤ راګیر یدل څه لرې خبره نه ده. کما في حادثة الافک. ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د (تحذیر الناس) او (البراهین القاطعه) په بعضې عبارت باندې د اعتراض جواب**

**سوال:** په تحذیر الناس نومې کتاب کښې ئې لیکلې دي. که بالفرض د نبي کریم ﷺ په زمانه چرته بل نبي وې نو هم به دده خاتم، کیدل باقي وو، بل عبارت دادې که بالفرض د نبوې زمانې نه پس بل نبي پیدا شي نو بیا به هم په خاتمیت محمدي کښې څه فرق رانشي. کتاب (تحذیر الناس) خو د مولانا محمد قاسم رحمة الله علیه ددې الفاظو نه څه مطلب دې؟ هم دارنګې په (براهین قاطعه) کتاب کښې لیکلې شوې دي. چه د ابلیس یعنې شیطان علم د پیغمبر (عليه السلام) نه زیات دې. ددې وضاحت اوکړئ ځکه چه اکثر بریلیان په دې جملو باندې اعتراضونه کوي.

المستفتي: سرور صدیقي ۱۹مقبول آباد کراچي نمبر۵...۱۱۵جولائي ۱۹۸۹ء

﴿۱﴾ قال الحافظ ابن الکثیر (ان الذین جاء وا بالافک عصبة منکم) ای جماعة منکم یعنی ماهو واحد ولا اثنان بل جماعة فکان المقدم فی هذه اللعنة عبد الله بن ابی ابن سلول رأس المنافقین فانه کان یجمعه ویستوشیه حتی دخل ذلک فی اذهان بعض المسلمین فتکلموا به وجوزه اخرون منهم ........حتی نزل القرآن .(تفسیر ابن کثیر ص ۳۵۶ جلد ۳ سورة نور پاره:۱۸)



**الجواب:** (۱) د اهل اسلام دا عقیده ده چه حضور ﷺ ته نبوت ورکولو نه پس به چاته د نبوت منصب نه ورکولې کیږي. نو که په مخ د زمکې باندې په هغه زمانه کښې څوک پیغمبر وو لکه خضر (عليه السلام) یا د هغې زمانې نه پس څوک پیغمبر راشي لکه حضرت عیسیٰ (عليه السلام) نو دا به د ختم نبوت سره معارض نه وي، (۲) پیغمبر (عليه السلام) د ضررې او بې نفع علم نه پناه غوښتې ده ﴿۱﴾ او داسې علم شیطان ته حاصل دې. وهو الموفق.

**د چا په نوم کښې محمد راتلو سره علیه السلام لیکل**

**سوال:** که د چا نوم محمد امیر، محمد نذیر یا محمد شریف وي نو د لیکلو په وخت کښې محمد باندې [ص] یا [ع] لیکل پکار دي که نه؟ دا رنګې صرف د (ص) یا (ع) لیکلو په شریعت کښې څه حکم دې؟

المستفتي: مولوي عبد القیوم پشاور کینټ......... ۱۹۸۴ء/۲۱/۱۱

**الجواب:** د محمد سره [ص] یا [ع] لیکل په هر حال کښې مکروه دي. صرح به في مقدمة ابن الصلاح وغیرها. بلکه علیه السلام وغیره لیکل مندوب دي. او کوم ځائې کښې چه د امتي نوم محمد راشي یا په نوم کښې یو جز راشي نو هلته په شرعي حیثیت سره علیه السلام لیکل هم مذموم دي. ﴿۲﴾

**د حضور ﷺ سایه (سورې)**

**سوال:** د حضور ﷺ په سایه (سورې) نه کیدلو کښې صحیح حدیث شته که نه؟

المستفتي: محمد ظاهر میران شاه.....۱۹۷۹ء

**الجواب:** د سایه سورې متعلق څه صحیح روایت نشته. ﴿۳﴾ او که ثابت شي نو څه نکارت پکښې نشته. وهو الموفق

﴿۱﴾ عن ابی هریرة قال کان رسول الله ﷺ یقول اللهم انی اعوذ بک من الاربع من علم لا ینفع و من قلب لا یخشع الخ رواه احمد و ابو داؤد و ابن ماجه و الترمذی و النسائی . (مشکواة المصابیح ص ۲۱۷ جلد ۱ باب الاسعاذة الفصل الثانی )

﴿۲﴾ قال ابن عابدین (ولا یصلی علی غیر الانبیاء الخ) لان فی الصلاة من التعظیم مالیس فی غیرها من الدعوات الخ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۵۳۱ جلد ۵ مسائل شتی کتاب الخنثیٰ)

﴿۳﴾ په صحاح سته کښې د حضور ﷺ د سورې متعلق هیڅ حدیث نه دې ........

[بقیه حاشیه به راروانه صفحه.....]

............................................

[بقيه حاشيه دتير مخ] .... راغلي. چه دحضور ﷺ سورې به په زمکه باندې نه پريوتلو، البته علامه جلال الدين سيوطي رحمة الله عليه په خصائص کبرىٰ کښې يو مرسلاً روايت ذکر کړې دې.

**عن ذکوان ان رسول الله ﷺ لم يکن يرى له ظل فى شمس و لا قمر و لا اثر قضاء حاجة قال سيوطى قال ابن سبع من خصائصه ان ظله لا يقع على الارض و انه کان نوراً فکان اذمر فى شمس او قمر لا ينظر له ( خصائص الکبرىٰ ص ٦٨ جلد ١ )**

ليکن دا روايت په څو وجو سره ضعيف دې اول دا چه د احاديثو په ټوله ذخيره کښې دې هيڅ ثبوت نه ملاويږي، او که د معجزې په طور سره وو نو د صحابهؓ نه به چا روايت کړې دې، ليکن دې باره کښې يو مرسل حديث دې هغه هم سنداً ضعيف دې. دويمه وجه داده چه د محدثينو يو لوئې جماعت حديثِ مرسل حجت نه مني، دريمه وجه داده چه ددې حديث اولنې راوي عبدالرحمان ابن قيس زعفراني ضعيف. مجروح او ناقابل اعتبار دې. بعضې خلقو د وضع حديث، او بعضې د کذب حديث طرف ته منسوب کړې (کمافي تهذيب التهذيب ص ۲۳۱ جلد ۲ :رقم ٤۱۳۰) او ددې حديث دويم راوي عبدالملک بن عبدالله بن الوليد مجهول الحال دې په عام کتابونو کښې ددې حديث حال ذکر نه دې. البته د رسول الله ﷺ د سايه متعلق څه داسې حديثونه شته.

**عن انس بن مالک ........ ثم رأيت النار فيما بينى و بينکم حتى لقدرأيت ظلى و ظلکم الخ ( حاوى الافراح الى بلاد الارواح لابن القيم الجوزى ص ۴۲ ، ۴۳ جلد ۱ ) وعن عائشة رضى الله عنها ........ قالت فبينما انا يوما بنصف النهار اذا انا بظل رسول الله ﷺ الخ**

**( مسند احمد ص ۲۳۱ ، ۲۳۲ فى مسند عائشة ) ( از مرتب )**





# باب
# ما يتعلق
# بالانبياء عليهم السلام

قال الله تعالی

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ
اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ
فَاسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ
اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٤٣﴾

(الآية)

...



# باب ما يتعلق بالانبياء عليهم السلام

## عصمتِ انبياء او د (ذوالكفل) په باره كښې د صاحب بحر د عبارت تشريح

**سوال:** (١) علمائي دين څه فرمائي په دې مسئله كښې چه علامه ابن نجيم په بحر الرائق باب احكام المرتدين صفحه ١٢٠ جلد پنځم كښې دا عبارت راوړې دې. (وبقوله لم تعص الانبياء عليهم السلام حال النبوة و قبلها لرده النصوص) او دويم عبارت دې. (ولا بانكاره نبوة الخضر وذي الكفل عليهما السلام لعدم الاجماع علي نبوتهما) دا جملې په چا عطف دي او ددې مفهوم څه دې؟ آيا دا عقيده صحيح نه ده چه انبياء عليهم السلام په دورانِ نبوت او مخكښې د نبوت نه د معصيت نه معصوم دي؟ (٢) د علامه ابن نجيم په حنفي فقهاؤ كښې څه درجه او مقام دې؟ (٣) آيا ذوالكفل عليه السلام نبي نه وو په قران كښې چه په كوم انداز دهغې تذكره شوې ده دغې نه خو صفا معلومېږي چه نبي وو. نو ددې عبارتونو څه مطلب دې؟

المستفتي: شمس الرحمان.. K ٧٨- اټک شهر... ٧ رمضان المبارك ١٤٠٣هـ

**الجواب:** (١) وبقوله لم تعص الانبياء عليهم السلام الخ معطوف دې. ونسبة الي لفواحش چه نزدې دې او يا دا معطوف دې په معطوف عليه معنوي باندې په دې كلام كښې ويكفر ان اعتقد ان الله تعالیٰ يرضي بالكفر اي ويكفر باعتقاده ان الله يرضي بالكفر چه بعيد دې. او د صاحب بحر دا كلام واضح المراد دې ځكه چه په نصوصو كښې ددوي نه د عصيان صادرېدل په نظم القرآن كښې مذكور دي. او په عربي لغت كښې عصيان كلي مُشكك دې. خطاء في الاجتهاد او د ترک اولی ته هم وئيلې كيږي. البته ددينه به ګناه صغيره يا كبيره نه مراد كيږي. ﴿١﴾ لكه چه داهل السنت والجماعت غوره قول دې. (٢) دا امام ابوحنيفه ثاني دې.

﴿١﴾ قال العلامه محى الدين محمدبن بهاء الدين قوله والانبياء صلوات الله عليهم اجمعين كلهم منزهون عن الصغائر والكبائر والكفر والفواحش وقد كانت منهم زلات وخطيئا ءاى صغائر صدرت عنهم سهوا وغفلة فان الكبائر لا تصدرعنهم ولو سهواً عند البعض واما عدم صدورها عمدا بعد البعثة فممتنع عندنا شرعا وعندالمعتزلة عقلاً. الخ (القول الفصل شرح فقه الاكبر ص ٢٧٣ الانبياء نتزهون عن الصغائر)

(۳) د سورت ص ایت دده په نبي کیدلو کښې ظاهر دې صریح نه دې په قران کښې ده ته نه رسول وئیلې شوې او نه نبي اونه ئې په ارسلنا وغیره الفاظو سره تذکره شوې ده.

## د حضرت خضر علیه السلام د نبوت او ژوندي کیدلو تحقیق

**سوال:** آیا حضرت خضر علیه السلام ژوندې دې یا وفات شوې دې او آیا دې پیغمبر وو یا نه؟ جواب راکړئ.

المستفتي: مولوي مغل خان پرائمري سکول علي بیگ نوشهره تاروجبه ۱۱ رمضان المبارک ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** حضرت خضر علیه السلام د جمهور علماؤ په نزد ژوندې دې او د محققینو په نزد پیغمبر دې زیات تفصیل په هدایة القاري، کتاب العلم کښې اوګورئ. (۲)

## د موسیٰ علیه السلام په قبر کښې مونځ کول. د مړو ژوندو له لیدل اود قبرنه د سورة ملک آواز راتلل وغیره

**سوال:** (۱) د معراج په شپه چه کله حضور صلی الله علیه وسلم تشریف یوړلو نو موسیٰ علیه السلام ئې په قبر کښې اولیدلو مونځ ئې کولو آیا دا صحیح ده؟ (۲) چه څوک زیارت القبور اوکړي نو قبرونو والائېویني. آیا دا صحیح ده؟ (۳) د حضور صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې بعضې صحابه کرامو په ناپوهئ کښې په قبر باندې خیمه اُودروله نو دهغې قبر نه د سورة ملک آواز راتللو بیا پیغمبر علیه السلام ته حضرت عبدالله بن عباس دا واقعه بیان کړه، آیا دا صحیح ده؟ (۴) آیا په قبر کښې ایماندار سړې ژوندې وي او تلاوت کوي؟

المستفتي: لقمان صاحب مصري بانډه

---

(۱) قال العلامه الوسى وذا الكفل اى واذكرهم و ظاهر نظم ذى الكفل فى سلك الانبياء عليهم السلام انه منهم و هو الذى ذهب اليه الاكثر ......وقال ابو موسىٰ الاشعرى و مجاهد لم يكن نبياً و كان عبداً صالحاً استخلفه الخ (تفسير روح المعانى ص ۱۲۱ جلد ۱۰ پاره: ۱۷ سورة الانبياء آيت: ۸۵)

(۲) واختلف فى نبوته قال الثعلبى وابن الجوزى انه نبى وهو الراجح المتبادر من قوله تعالىٰ اٰتيناه رحمة من عندنا وعلمناه من لدنا علما من قوله تعالىٰ وما فعلته من امرى ومن اقدامه على قتل نفس ذكية وقيل انه ولى ويرد عليهم ان القتل محرم قطعى لا يجوز الاقدام عليه لامر ظنى وهو الهام الولى اللهم الا ان يقال ان نبيا من الانبياء قال له ان الهامك يكونُ حقا من الله تعالىٰ واختلف فى حياته قال بعض المحققين بوفاته لحديث ارء يتكم ليلتكم هذه فان رأس مأة سنة لا يبقىٰ من هو اليوم على الارض احد وقال الجمهور بحياته وهو الراجح لما ورد انه الرجل الذى يقتله الدجال ثم يحييه وهو المروى عن معمر وعن ابراهيم بن سفيان راوى كتاب مسلم ولاثر عمر بن عبد العزيز انه خرج من المسجد و مشى مع رجل يتكلم معه فلم يعرفه الناس فسئلوه عنه فقال انه كان خضراً عليه السلام رواه فى الاصابة باسناد جيد (هداية القارى على صحيح البخارى ص ۱۷۷ جلد ۱ كتاب العلم باب ما ذكر فى ذهاب .موسىٰ فى البحر)



**الجواب:** (۱) دا حدیث صحیح دې. رواه مسلم وغیره (۱) (۲) دا حدیث ثابت دې (۲) ذکره ابن کثیر وابن تیمیه والسیوطي في فتـاواه. (۳) دا حدیث ثابت دې (مشکوة، (۳)) (۴) هامش کوکب دري کښې ددې متعلق تفصیل اوګورئ، وهوالموفق.

## موسیٰ علیه السلام د عزرائیل علیه السلام جسم مثالی ته پړق ورکړې وُو

**سوال:** حضرت موسیٰ علیه السلام چه کله حضرت عزرائیل له پړق ورکړې وو نو دا څنګه کیدیشي څکه چه فرشته خو (جسم نورانی یتشکل باشکال مختلفة) یعني د هوا پشان لطیف جسم دې. وضاحت اوکړئ؟

المستفتي: محمد یوسف خزانه آباد.... ۵ جولائي ۱۹۷۹ء

**الجواب:** دا پړق جسم مثالي له ورکړې شوې وو جسم اصلي له نه وو، او نقصان هم د جسم مثالي په سترګه کښې راغلې وو په جسم اصلي کښې نه وو راغلې. (۴) فرشتې په دویم څل باندې دحضرت موسیٰ علیه السلام په اجازت سره روح واخستلو. (۵)

---

(۱) عن ابى هريرة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لقد رايتنى فى الحجر و قريش تسألنى عن مسراى فسالتنى ......... وقد رايتنى فى جماعة من الانبياء فاذا موسىٰ قائم يصلى الخ رواه مسلم (مشكواة المصابيح ص ۵۲۹ جلد ۲ باب فى المعراج)

(۲) قال ابن عبد البر ثبت عن النبى صلى الله عليه وسلم قال مامن مسلم يمر على قبر اخيه كان يعرفه فى الدنيا فيسلم عليه الا رد الله عليه روحه حتى يرد عليه السلام (فهذا نص فى انه يعرفه بعينه ويرد عليه السلام) ذكره السيوطى فى الحاوى للفتاوىٰ (ص ۳۰۲ جلد ۲) وذكره الزبيدى فى اتحاف السادة المتقين. (ص ۳۶۵ جلد ۱۰) وذكره ابن عساكر فى تهذيب تاريخ دمشق (ص ۲۹۲ جلد ۷) وذكره الهندى فى كنز العمال (الحديث ۴۲۶۰۲ / ۴۲۶۰۱) (كتاب الروح ص ۱۱ لابن القيم)

(۳) عن ابن عباس رضى الله عنه قال ضرب بعض اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم خباءه على قبر وهو لا يحسب انه قبر فاذا فيه انسان يقرأ سورة تبارك الذى بيده الملك حتىٰ ختمها فاتى النبى صلى الله عليه وسلم فاخبره فقال النبى صلى الله عليه وسلم هى المانعة هى المنجية تنجية من عذاب الله .رواه الترمذى وقال هذا حديث غريب. (مشكواة المصابيح ص ۱۸۷ جلد ۱ كتاب فضائل القرآن)

(۴) وفى هامش المشكواة قوله ففقأها قد انكر بعض الملاحدة هذا الحديث قالوا كيف يجوز على موسىٰ فقأ عين ملك الموت واجابوا بانه متشابه فيفوض علمه الى الله وان موسىٰ لم يعرف انه ملك الموت فظن انه رجل قصد نفسه و كان الملك يتمثل بصورة البشر فدفعه عنها فادت مدافعته الىٰ فقأ عينه. لمعات ومرقات. (هامش مشكواة المصابيح ص ۵۰۷ جلد ۲ باب بدأ الخلق و ذكر الانبياء عليهم السلام)

(۵) (والتفصيل فى فتح البارى شرح صحيح البخارى ص ۲۵۲ جلد ۸ باب وفات موسىٰ و ذكره بعد كتاب الانبياء)

## ذبیحه ابراهیمي د جنت نه راتلل منصوصی نه دي

**سوال:** حضرت ابراهیم عليه السلام چه کوم گډ ذبحه (حلال) کړې وو هغه د جنت نه راغلي گډ وو، نو آیا حضرت ابراهیم عليه السلام او حضرت اسماعیل عليه السلام د هغې غوښه د ذبحه کولو نه پس خوړلي وه او که نه؟ که خوړلي ئې وي نو د جنت نعمت په دنیا کښې ځنګه ملاؤ شو حال دا دې چه دا به د مرګ نه پس ملاویږي. او که نه ئې وي خوړلي نو د طیب او طاهر نعمت نه خوړل هم ښه کار نه دي؟

المستفتي: شفیق الرحمان حقاني ادینه صوابي....۱۹۷۵ء/۱۱/۱۵

**الجواب:** د دغې گډ د جنت نه راتلل منصوصی نه دي بلکه د اسرائیلیاتو نه ثابت دي دارنګې په ظاهره خو د هغې خوړل معلومیږي ځکه چه د مال ضائع کول هم حرام دي. او معلومیږي چه په تاباندې هم د بني اسرائیلو رنګ ختلې دي کوم کارونه چه بې فائدې وي د هغې متعلق د سوالونو نه اجتناب اوکړه. وهو الموفق

## ذبیحه ابراهیمي او مخکنو امتونو کښې د قربانۍ د مقبولیت نښاني

**سوال:** ابراهیم عليه السلام چه دخپل ځوی اسماعیل عليه السلام په ځائې باندې کوم گډ ذبح کړې وو، نو د هغې گډ غوښه چا خوړلي وه..؟

المستفتي: مجاهد شاه کوهاټ......۱۸ رمضان ۱۴۰۳ هجري.

**الجواب:** په مخکنو امتونو کښې د قربانۍ د مقبولیت نښه دا وه چه د آسمان نه به سپین اور راغې او هغه به ئې اوسوزوله. وهو الموفق

## د ذبیحه ابراهیمی غوښه، سایه رسول، په سر د ټوپۍ کیښودلو ثبوت او انبیاؤ سره د شیطان کیدل

**سوال:** (۱) د ابراهیم عليه السلام د قربانۍ غوښه چا خوړلي وه؟ (۲) د حضرت محمد ﷺ سوري وو که نه؟ (۳) آیا په سر باندې ټوپۍ کیښودل د حدیث نه ثابت دي که نه؟ (۴) ایا د پیغمبرانو (علیهم السلام) سره شیطان وي که نه وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: روح الامین معرفت محمد شریف خادم دفتر دار العلوم حقانیه ۲۳ ستمبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** (۱) په مخکنو امتونو کښې د قربانۍ د قبولیت علامت داؤ چه هغه



به اور خوړله نو دغه به هم اور خوړلې وي (۱) (۲) د پیغمبر عليه السلام بشریت او انسانیت یو اجتماعي امر دې او د سوري نه کیدل اختلافي دي. وعدم الظل لا یستلزم عدم الجسمیه کما في الشمس والقمر (۲) (۳) د ترمذی د روایت نه ثابت دي. (۳) (۴) وی ورسره لیکن هغوي ترینه په امن کښې وی. (۴) وهو الموفق.

## په قرآن اوحدیث کښې د یوسف عليه السلام زلیخا سره د واده هیڅ ذکر نشته

**سوال:** ځومره پورې چه په قرآن مجید کښې دي نو د یوسف عليه السلام او زلیخا د واده هیڅ ذکر نشته دې بلکه قرآن د زلیخا سیرت د یوې مشرکې او مشکوکې کردار والا ښځې بیان کړې دي. دارنګې د قران مجید ته د زلیخا د مسلمانیدل هم ثابت نه دي. یو خطیب فرمائي چه ددوي په مینځ کښې واده شوې وو او دوه بچې ئې هم پیدا شوې وو، او په ثبوت کښې د حجة الاسلام او احوالِ انبیاء حواله ورکوي. نو دې باره کښې تاسو حضرات څه فرمایئ؟

المستفتي: علي اصغر محمد هارون ptc، دوراها ضلع مانسهره ۱۹۸۶ء/۱۰/۲۷

---

(۱) د ذبیحه ابراهیمی دغوښې خوړلوباره کښې مختلف اسرائیلی روایات ذکردی بعضې روایاتوکښې دی چه هغه مارغانواوځناورو اوخوړله، کما صرح به علامه صاوی فی حاشیة الصاوی علی الجلالین ص۳۲ جلد۴ وسلیمان بن عمرو العجیلی فی الجمل (ص۵۴۹ جلد۳) لیکن بعضې روایات دعدم اکل هم ذکردی. کماصرح به صاحب تفسیر بحرالمحیط ص۳۷۱ جلد۷، لانه لم یکن عن نسل بل عن التکوین. اویو روایت دعدم ذبح هم دې. چه تریوکال پورې ژوندې پاتې وو. کماصرح به صاحب المدارك ص ۳۰ جلد۴. وروی انه هرب عن ابراهیم عليه السلام عندالجمرة فرماه بسبع حصاة حتی اخذه فبقیت سنةً. پس دا ټول روایات یوبل سره متضاددی. چونکه قرآن اوحدیث ددې نه خاموش دې اوپه دې کښې هیڅ یوروایت منصوصی نه دې، البته داخبره زیاته وزنی معلومیږی چه په تیرو امتونوکښې دقربانۍ دمقبولیت نخښه داوه چه دآسمان نه به سپین اور راغې اودغه غوښه به ئې اوسوزوله. چونکه د ذبیحه ابراهیمی متعلق بالخصوص دا روایت منصوصی نه دې لیکن قرین قیاس او وزنی ضروردي. (ازمرتب)

(۲) قال العلامه الآلوسی وقرأ ابن کثیرو ابن عامرقال سبحان ربی ای قال النبی ﷺ هل کنت الا بشرا رسولا. کسائر الرسل علیهم السلام و کانوا لا یأتون قومهم الا بما یظهره الله تعالیٰ علی ایدیهم حسبما تقتضیه الحکمة من غیر تفویض الیهم و لا تحکم منهم علیه سبحانه الخ.
(روح المعانی ص ۲۲۴ جلد ۹ سورة الإسراء ص ۹۴)

(۳) عن ابی رکانة ان رکانة صارع النبی ﷺ فصرعه النبی ﷺ قال رکانة سمعت رسول الله ﷺ یقول ان فرق ما بیننا و بین المشرکین العمائم علی القلانس. (سنن الترمذی ص ۲۱۰ جلد۱ قبیل ابواب الاطعمة)

(۴) عن ابن مسعود قال قال رسول الله ﷺ مامنکم من احد الا وقد وکل به قرینه من الجن و قرینه من الملائکة قالوا و ایاک یا رسول الله قال و ایای و لکن الله اعاننی علیه فاسلم فلا یأمرنی الا بخیر رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص ۱۸ جلد ۱ باب فی الوسوسة)

الجواب: په قران کښې نه د زلیخا څه ذکر شته او نه د حضرت یوسف علیه السلام د واده. البته د اسرائیلیانو په کتابونو کښې دا قصې شته دي.﴿۱﴾ چه حجت نه دي. وهو الموفق.

## د حضرت مریم علیها السلام نکاح د چا سره نه وه شوې

سوال: زید وائي چه د مریم علیها السلام عقدِ نکاح د یوسف نجار سره شوي وه لیکن هغه ورسره یو ځائي شوې نه وو. او حضرت عیسی علیه السلام صرف د رب په حکم باندې پیدا شوې دې. او په حواله کښې دا کتاب پیش کوي ,,نو رافرا متوسطه قرآن شریف در حالات حضرت عیسی علیه السلام صفحه ۱۵،،کله چه ددې عمر دولس کاله شو نو حضرت ذکریا علیه السلام ددې کوژدن یوسف نجار سره او کړه او هغه دخپل جوړیدونکی خاوند سره ناصره ته لاړله، د کوژدن په وخت دا شرط لګولي شوې وو، چه ترڅو پورې په عقد کښې دعبادت ګاه د عبادت کونکو نه اجازت ملاؤ نه شي ترهغې به یو ځائي کیږئ نه، او بیا ئي د جبرائیل امین علیه السلام د پوکي وخلو واقعه بیان کړیده. او ددې بر عکس عمرو وائي؛ دا یوه تاریخي واقعه ده په دې باندې اعتماد کول نه دي پکار بلکه ددې عبارتونو نه ئي هم انکار او کړو او ووئیل چه دداسې بیهوده او فضول خبرو نه ځان ساتل پکار دي، نو اوس سوال دا دی چه د عمرو خبره صحیح ده او که د زید؟ او د ذکرشوی کتاب څه مؤید او کتاب شته یا نه؟ د صحیح صورتحال نه مونږ خبر کړئ.

المستفتي: محمد ناصر علي خان چترال بازار ملاکنډ

الجواب: په قرآن مجید کښې څو ځایونو کښې موجود دي چه حضرت مریم علیها السلام سره چا هم جائز یا ناجائزه جماع نه ده کړې الله تعالی د حکایت په طور سره فرمائي. لم یمسسني بشر ولم اک بغیا قال کذالک،الآیة﴿۲﴾ او د یوسف نجار سره د نکاح ثبوت نه په قرآن کښې شته نه په احادیثو او آثارو کښې، او په اسرائیلیاتو سره څمونږه اجماعي عقیده نشي مجروح کولي.(او د یوسف نجار سره د نکاح ثبوت هم دغه حکم لري) او

﴿۱﴾ قال العلامه الوسی و فی روایة انها تعرضت له فی الطریق فقالت ما قالت فعرفها فتزوجها فوجدها بکراً و کان زوجها عنینا .و شاع عند القصاص انها عادت شابة بکراً اکراما له علیه السلام بعد ما کانت ثیبا غیر شابة وهذا مما لا اصل له و خبر تزوجها ایضا لا یعول علیه عند المحدثین .
(تفسیر روح المعانی ص ۷ جلد ۸ سورة یوسف آیت ۵۳)

﴿۲﴾ (پاره : ۱۶ سورة مریم رکوع: ۵ آیت: ۲۰)



حضرت عیسی علیه السلام نه د یوسف نجار ځوئي وئیل لکه چه د قادیانانو عقیده ده.صرح به محمدعلی لاهوری فی تفسیره بیان القرآن ص۳۱۳،نو دا بالکل صریح کفر دي. ځکه چه د قرآن دقطعی الثبوت اوقطعی الدلالة آیاتونو نه انکار دي.او دا د نصاراؤ عقیده هم ده.

کما هو مسطور فی اول بعض الاناجیل المرسومة المدونة بعد رفع عیسیٰ علیه السلام .فقط

## د داؤد علیه السلام د محبت قیصه اسرائیلي واقعه ده

سوال: علمائې دین او مفسرین قران دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه سپاره ۲۳ سورت ص کښې د حضرت داؤد علیه السلام متعلق په جلالین کښې (بمحبته تلک المراة) الفاظ ذکر دی او ابن کثیر چپ کیدل غوره ګرځولی دی، دا رنګې اسرائیلی روایتونو طرف ته ئې ترجیح ورکړې او د (روح البیان) د حوالې مطابق حضرت علی رضی الله عنه ددې واقعې ذکر کونکی دپاره حد مقرر کړې وو، په دې واقعه کښې تر کومې پورې صداقت موجود دې او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه دې باره کښې څه روایت نقل شته که نه؟ جواب راکړئ مهربانی به وی

المستفتي: محمد یوسف جان متهه مغل خیل پشاور.... ۱۹۶۹ء/۲/۱۳

الجواب: په جلالین شریف کښې موجود قیصه چه د داؤد علیه السلام د محبت متعلق روایت شوې ده د هغې متعلق حافظ ابن کثیر لیکی قد ذکر المفسرون ههنا قصة اکثرها ماخوذة من الاسرائیلیات ولم یثبت فیها عن المعصوم حدیث یجب اتباعه،،﴿۱﴾ لهذا دا واقعه د اعتماد قابله نه ده او حافظ ابو محمد بن حزم هم ددې واقعې تردید کړې دی تردید د هغه په کتاب الفصل کښې مذکور دې لیکن ددې سره سره ددې ناقل د تعزیر او حد لائق نه دې او حضرت علی رضی الله عنه ته چه کوم منسوب دی چه څه به ددې نقل کونکی ته ۱۶۰ درې ورکړم یعني اوبه وهم، نو دا روایت د حضرت علی رضی الله عنه نه ثابت نه دې، او که ثابت شی نو دابه د هغه په اجتهاد باندې محمول وی، چه د هغې اتباع ضروری نه ده،﴿۱﴾

(فی مثل هذا المقام) قال العلامه الآلوسی فی تفسیره ص ۱۸۵ جلد ۲۳ قال علی رضی الله عنه علی مافی بعض الکتب من حدث بحدیث داؤد علیه السلام علی مایرویه القصاص جلدته مأة و ستین و ذلک حد الفریة علی الانبیاء علیهم السلام وهذا اجتهاد منه کرم الله وجهه الاان الزین العراقی ذکر ان الخبر نفسه لم یصح عن الامیر

﴿۱﴾ (پ: ۲۳ تفسیر ابن کثیر جلد ۴ سورة ص ص: ۴۱ آیت: ۲۱، ۲۲)

کرم الله تعالیٰ وجهه﴿۱﴾ نو ددې ایت صحیح تفسیر هغه دې کوم چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د اثر نه معلوم دې اخرج هذا الاثر الحاکم فی المستدرک وقال صحیح الاسناد واقربه الذهبی فی التلخیص. چه د هغې خلاصه داده چه په بعضې امورو مثلاً حسن انتظام او هروخت په عبادت کښې د مشغولیدلو په وجه باندې یو قسم له د اعجاب نه د عتاب په طور باندې دا واقعه راغله. (او ګورئ فوائد عثمانیه علی تفسیر عثمانی) (روح المعانی ص ۱۸۵ جلد ۲۳) ﴿۲﴾ فقط

## پیغمبران د نبوت نه مخکښې او وروستو معصوم دی

**سوال** که د یو کس عقیده داوی چه انبیاء علیهم السلام د نبوت نه مخکښې قصداً د غټو ګناهونو ارتکاب کړې، حضرت ادم علیه السلام د نبوت نه مخکښې په قصد باندې جنت کښې د ګناه ارتکاب کړې وو. او په استدلال کښې ربنا ظلمنا الخ پیش کوی نو یا خو به الله تعالی ته ظالم وئیلې کیږی او یا ادم علیه السلام ته نو ځه ادم علیه السلام ته ظالم وایم، ماورته اووئیل چه دلته ظلم د کمی په معنی سره دې یعنې مونږ خپله مرتبه کمه کړه، کمافی الکهف ولم تظلم منه شیئا، لیکن هغه نه منی نو ایا دا سړې مسلمان پاتې کیدې شی او ایا ده پسې اقتداکول صحیح دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: زمزم کلاتهـ هاوس مین بازار منګوره سوات ۲۶ شعبان ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** په علم الکلام او د حدیثو په شروحاتو کښې دی د اهل سنت والجماعت مسلک دادې چه د انبیائې کرامو نه ګناه نه کیږی نه واړه ګناهونه نه غټ نه د نبوت نه مخکښې اونه د نبوت نه پس ﴿۳﴾ او د دلائلو په رڼړا کښې هم دا مسلک مضبوط دې،

وهذا الحکم عقلی کا التحقق للباری تعالیٰ ووجود المحدث . واما الاستدلال من لفظ الظلم ففیه صحیح . لان الظلم وضع الشئ فی غیر محله و هو عام للکفر

﴿۱﴾ (تفسیر روح المعانی ص ۲۷۲ جلد ۱۳ سورة ص آیت : ۲۷ ، ۲۸ )
﴿۲﴾ (التفصیل فی روح المعانی ص ۲۶۳ جلد ۱۳ تا ۲۷۲ جلد ۱۳ سورة ص آیت : ۲۱ تا ۲۸ )
﴿۳﴾ قال الملاعلی قاری . والانبیاء علیهم الصلاة والسلام ...... منزهون ...... عن الصغائر والکبائر ای من جمیع المعاصی والکفر ...... والقبائح و فی نسخة و الفواحش ...... وقد کانت منهم ای من بعض الانبیاء قبل ظهور مراتب النبوة او بعد مناقب الرسالة زلات ای تقصیرات و خطیئات ...... کما وقع لآدم علیه السلام فی اکله من الشجرة علی وجه النسیان او ترک العزیمة و اختیار الرخصة ظنا منه ان المراد با لشجرة المنهیة المشار الیها بقوله تعالیٰ ولا تقربا هذه الشجرة هی الشخصیة لا الجنسیه فاکل من الجنس لا من الشخص بناء علی الحکمة الا لهیة لیظهر ضعف قدرة البشریة و قوة القضاء مغفرة الربوبیة .
(شرح فقه الاکبر للقاری ص ۵۶، ۵۷ الانبیاء منزهون عن الصغائر و الکبائر)



والکبیرة و الصغیرة و ترک الاولیٰ والزلة فیحمل علی الاخرین لئلا یقادم العقل

لهذا داسې سړې به ظالم وی کافر به نه وی لوجود الاختلاف البته د اقتداء لائق نه دې وهو الموفق ـ

## د اصحاب کهف او حضرت خضر علیه السلام متعلق مختلف سوالونه

**سوال:** (۱) اصحاب کهف ژوندی دی یا نه؟ (۲) خضر علیه السلام ژوندې دې یانه؟ پیغمبر دې که نه؟ (۳) خضر علیه السلام چه کوم هلک مړ کړې وو الله تعالی د هلک یا جینئ په صورت کښې د هغه نعم البدل ورکړې وو که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی : حکیم محمد کمال شیوه صوابی..... ۱۹۷۵ء ۲۶/۸/۱

**الجواب:** (۱) د حدیث نه د اصحاب کهف وفات معلومیږی ﴿۱﴾ (۲) حضرت خضر علیه السلام د جمهور علماء په نزد ژوندې دې او تحقیق دادې چه هغه پیغمبر وو. ﴿۲﴾ فلیراجع الی القرطبی و یو ثره حدیث الدجال لان الرجل الذی یقتله الدجال ثم یحییه هو الخضر کما روی عن السلف فلیراجع الی هامش الکوکب الدری .

(۳) مفسرینو لیکلی دی چه الله تعالی هغه ته نعم البدل ورکړې وو لیکن دا څه منصوصی حکم نه دې ﴿۳﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال الحافظ عماد الدین ابن کثیر : وعادوا الی مضاجعهم و توفاهم الله عزوجل . فالله اعلم . قال قتاده غزا ابن عباس مع حبیب بن مسلمه فمروا بکهف فی بلاد الروم فرأ و افیه عظاماً فقال قائل : هذه عظام اهل الکهف فقال ابن عباس لقد بلیت عظامهم من اکثر من ثلثمائة سنة ورواه ابن جریر.
(تفسیر ابن کثیر ص ۱۰۶ جلد ۳ سورة الکهف آیت : ۲۱ )
﴿۲﴾ قال المفتی الاعظم مفتی محمدفرید واختلف فی نبوته قال الثعلبی وابن الجوزی انه نبی وهو الراجح المتبادر من قوله تعالیٰ آتیناه رحمة من عندنا و علمناه من لدنا علما ومن قوله تعالیٰ وما فعلته من امری ومن اقدامه علی قتل نفس زکیة . وقیل انه ولی ویرد علیهم ان القتل محرم قطعی لا یجوز الاقدام علیه لامر ظنی وهو الهام الولی اللهم الا ان یقال ان نبیاً من الانبیاء قال له ان الهامک یکون حقا من الله تعالیٰ واختلف فی حیاته قال بعض المحققین بوفاته لحدیث ارءیتکم لیلتکم هذه فان رأس مائة سنة لایبقیٰ من هو الیوم علی الارض احد وقال الجمهور بحیاته وهو الراجح لما ورد ان الرجل الذی یقتله الدجال ثم یحییه وهو المروی عن معمرو عن ابراهیم بن سفیان راوی کتاب مسلم ولاثر عمر بن عبد العزیز الخ.
(هدایة القاری شرح صحیح البخاری ص ۱۷۷ جلد ۱ باب ما ذکر فی ذهاب موسیٰ فی البحر)
﴿۳﴾ قال العلامه آلوسی ای بان یرزقها بدله ولداً خیراً منه.
(روح المعانی ص ۱۶ جلد ۱۶ سورة الکهف آیت: ۸۱)

## حضرت خضر علیه السلام نبی دې یا ولی

**سوال** علمائې دین څه فرمائی دې مسئلې باره کښې چه حضرت خضر علیه السلام پیغمبر دې یا ولی دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرحمن متعلم دار العلوم حقانیه اکوړه ختک... ۱۹۸۳ء/۱۱/۱۸

**الجواب:** دا مختلف فیه او غیر منصوصی مسئله ده غوره داده چه پیغمبر دې (۱) لقوله تعالیٰ وعلمناه من لدنا علماً. ﴿۱﴾ ولقوله تعالیٰ وما فعلت عن امری. ﴿۲﴾ ولان الاقدام بالقتل المحرم لایسوغ با لالهام الظنی. والله اعلم

## حضرت ادم علیه السلام او حوا علیها السلام نکاح اود رسول الله ﷺ ویښته مبارک

**سوال:** (۱) د حضرت ادم علیه السلام نکاح چا تړلې وه، او د حضرت حوا علیها السلام مهر څومره وو؟ (۲) نبی علیه السلام ویښته خرئیلی دی که ساتلی ئې دی او د ویښتو ساتلو څومره طریقې دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: قاری بشیراحمد علوی... ۱۹۷۵ء/۱۹/۹

**الجواب:** (۱) مفسرینو ددې خبرو متعلق څۀ لیکل کړی دی چه د هغې بنیاد په اسرائیلیاتو او عجائباتو باندې دې او په معتمد فتاوٰو کښې ددې متعلق څه تذکره نشته. (۲) پیغمبر علیه السلام درې قسمه ویښته پریخی دی، وفره، جمه، لمه_ او د شمائل وغیره په روایت کښې الی نصف الاذنین) ثابت دی، ممکن داده چه د هغې نه (وفـره) مراد وی، یعنې د ګمنځ کولو نه مخکښې په نظرسره د غوږونو د نیمو پورې ښکاری او د ګمنځې د استعمال نه پس (وفره) یعنې د غوږونو د نرمو پورې وی ﴿۳﴾

---

﴿۱﴾ (پاره: ۱۵ سورة الکهف رکوع: ۲۱ آیت: ۶۵)

﴿۲﴾ (پاره: ۱۶ سورة الکهف رکوع: ۱ آیت: ۸۲)

﴿۳﴾ عن انس بن مالک قال کان شعر رسول الله ﷺ الی نصف اذنیه، وعن عائشة رضی الله عنها کان له شعر فوق الجمه و دون الوفره، وعن البراء بن عاذب و کانت جمته تضرب شحمة اذنیه، وعن انس ان شعر رسول الله ﷺ کان الی انصاف اذنیه، وعن ام هانئ بنت ابی طالب قالت قدم رسول الله ﷺ عینا مکه قدمة وله اربع غدائر و ایضاً عنهاذ اضفائر اربع.

(شمائل ترمذی ص ۳،۴ جلد ۲ باب ما جاء فی شعر رسول الله ﷺ)



اوپیغمبر علیه السلام د حج په موقع باندې سر خرئیلې دې. ﴿۱﴾ لهذا احرام نه د وتلو په وخت کښې خرئیل بهتر دی او په باقی وختونو کښې ئې ساتل بهتر دی. وهو ما اختار القاری الحافظ. وهو الموفق

## موسی علیه السلام دعا رد کیدل او ولی الله دعا قبلیدل د اسرائیلیاتو قصه ده

**سوال** یوه قصه مشهوره ده چه موسی علیه السلام د یوې ښځې په حق کښې د اولاد کیدلو دعا کړې وه لیکن هغه ردشوه، بیا یو عام ولی الله دعا اوکړه هغه قبوله شوه ددې قیصې حقیقت څه دې ایا دا صحیح ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: تاج محمد نشاط ملز چارسده پشاور

**الجواب:** داسې قیصو ته اسرائیلیات وائی که څوک ئې منی اوکه نه منی هیڅ حرج په کښې نشته البته هغه اسرائیلیات چه د وحی او عقل سره متضاد وی هغه به نه منلې کیږی او په دې قیصه کښې دا خبره چه د پیغمبر دعا قبوله نه شوه او د یو عام ولی الله امتی دعا قبوله شوه څه د حیرانتیا خبره نه ده البته الله تعالی او پیغمبر ته بغیر دلیل نه دیو کلام نسبت کول ډیر خطرناک کار دې. وهو الموفق

## په احادیثو کښې دامام مهدی ثبوت اود عیسی علیه السلام اسمان ته خیژول

**سوال:** (۱) د امام مهدی وجود صحیح خبره ده که نه؟ دلیل ئې څه دې؟ (۲) عیسی علیه السلام اسمان ته خیژولې شوې دې که نه؟ ژوندې دې یا مړ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ولی ترکستانی افغانستان... ۱۹۸۵ء/۱/۱۳

**الجواب:** دا مسئلې د تفصیل دی آو اوس مې نه تفصیل ته همت شته اونه راسره وخت شته صرف دومره وئیلې کیږی چه داحادیثو د ذخیرې نه د امام مهدی ثبوت کیږی. ﴿۲﴾ او حضرت عیسیٰ علیه السلام په اسمان کښې ژوندې دې ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ عن انس بن مالک قال لما رمیٰ رسول الله ﷺ الجمرة نحر نسکه ثم ناول الحالق شقه الایمن فحلقه فاعطاه ابا طلحة ثم ناوله شقه الایسر فحلقه فقال اقسمه بین الناس.

(ترمذی ص ۱۱۱ جلد ۱ باب ماجاء بای جانب الراس یبدأ فی الحلق)

﴿۲﴾ عن ام سلمة قالت سمعت رسول الله ﷺ یقول المهدی من عترتی من اولاد فاطمة رواه ابو داؤد، وعن ابی سعید الخدری قال قال رسول الله ﷺ المهدی منی اجلے الجبهة اقنے الانف یملأ الارض قسطاً وعدلاً...... رواه ابو داؤد. (مشکواة المصابیح ص ۴۷۰ جلد ۲ باب اشراط الساعة)

﴿۳﴾ والتفصیل فی رسالة التصریح بما تواتر فی نزول المسیح للعلامه انور شاه الکشمیری)

## د حضرت عیسیٰ علیه السلام بغیر پلار نه پیدا کیدل

**سوال:** د لاندینی سوالونو جوابونه په مستند حوالو سره راکړئ، د طبری، ابن کثیر، غزالی او وارث شاه وغیره قول به نه اخستلې کیږی ځکه چه الاسناد من الدین: (۱) ایا چرته مریم صدیقه بیان کړې دې چه ولدت عیسی ولم اتزوج. (۲) ایا چرته عیسی علیه السلام فرمائیلی دی چه ولدتنی امی مریم الصدیقه ولم تتزوج. (۳) ایاقران مجید فرمائیلی دی چه ولدت عیسی ولم تتزوج.

(۴) ایا رسول الله ﷺ چرته فرمائیلی دی چه دمریم صدیقه نه حضرت عیسی علیه السلام بغیر د نکاح نه پیدا شوې وو. (۵) یا داسې ئې وئیلې دی چه د عیسی علیه السلام په پیدائش کښې د پلار دخل نشته دهغه پیدائش بغیر د پلار نه شوې دې. (۶) ایا صحابه کرام رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ په مخامخ داسې لفظ د عیسی علیه السلام په باره کښې استعمال کړې او هغه خوښ کړې دې یا خاموشی ئې فرمائیلې ده. (۷) که ددې صورتونو جواب منفی وی او یقیناً چه منفی دې نو بیا دا اووایئ چه دا لفظ په مسلمانانو کښې د کله نه رائج شوې دې. (۸) که چرته د یو سلفی تفسیر نه ثبوت پیش کړې نو ښه به وی.

(۹) دبې نکاح ښځې حمل په اسلامی نظر سره اسلامی حمل وی که غیر اسلامی. (۱۰) که بغیر پلار والی والا خیال بنیادی او اعتقادی وی او په ایمانیاتو کښې داخل وی نو بیا ددې ثبوت د اهل فن په نزد په متواترات صریحه سره لازم دې مګر په احادو سره به هم قبولې شی، خو په دې شرط چه د سندونو په لحاظ سره صحیح وی، او د مطلب په اعتبار سره صریح او منصوصی وی ځکه چه الهی نظام په دې معامله کښې بل شان دې او مشاهده هم ده او په قران پاک کښې هم اصل دې الله تعالی فرمائی:

**یا ایها الناس انا خلقنا کم من ذکر و انثیٰ. (حجرات) و بث منهما رجا لاً کثیرا ؤنساء (نساء) لا تضار واللة بولدها ولا مولود له بولده (البقرة)**

د ښځې او خاوند دواړونه بچې کیږی د یو کس نه نه کیږی او په ابن کثیر کښې چه موجود دی وکانت النفحة التی نفختها فی جیب درعها فنزلت حتی ولجت فرجها بمنزلة نکاح الاب الام. ابن کثیر، لیکن څه دا قول نه منم ځکه چه دا د خاوند کلام دې د فرښتې نه دې، فرشته چه یو بل جنس دې بغیر نکاح نه پلار جوړول خو ډیره ښکلې خبره ده پس په صحیح سند سره څه دلیل ذکر کړې چه ځما اشکالات ختم شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ مومن صدر جنګ سرګورها... ۱۹۷۳ء/۱/۱۴

**الجواب:** د حضرت عیسی علیه السلام د پلار نفی (۱) کیدلو د پاره دا ایت کافی دې: (ولم یمسسنی بشر ولم اك بغیا.. الایه)، په دې کښې د حلال او حرام دواړو قسمو جماع نفی شوې ده، دا رنګې ددې ایت د سیاق او سباق نه هم د عادت نه خلاف او نا اشنا طریقې سره پیدا کیدل ظاهر دی. فافهم وتدبر، وهو الموفق

## د حضرت خضر علیه السلام حیات او نبوت راجح دې

## او ملاقات ئې ممکن او واقع دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلو باره کښې څه فرمائی (۱) چه حضرت خضر علیه السلام پیغمبر دې یا ولی؟ (۲) ژوندې دې که مړشوې دې؟ (۳) د هغه سره ملاقات کیدلې شی او که نه؟ (۴) او که کیدلې شی نو مونږ سره به څنګه ملاؤشی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا فضل معبود فاضل حقانیه مهمند ایجنسی... ۱۷ رجب ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** (۱) دا حکم مختلف فیه دې غوره په کښې نبوت معلومیږی. (۲) دې کښې هم اختلاف دې غوره په کښې ژوند معلومیږی، (۳) د ژوندی سړی سره ملاقات کیدلې شی. (۴) ما المسئول عنه باعلم من السائل... وهو الموفق

## د خضر علیه السلام نبوت او ژوند کښې اختلاف دې

**سوال** حضرت خضر علیه السلام نبی وو او که نه ؤو؟ او عام طور سره خلق هغه ژوندې ګڼړی لیکن بعضې خلق ئې د وفات قائل دی، جواب راکړئ۔

المستفتی: حاجی محمد شاه بندر ضلع تهته سنده... ۱۹۸۸ء/۱۱/۱۰

---

(۱) قال الله تعالیٰ ان مثل عیسیٰ عندا الله کمثل آدم ط خلقه من تراب ثم قال له کن فیکون. الایة (پاره: ۳ سورة ال عمران رکوع: ۱۴ آیت: ۵۹)

**الجواب**: د حضرت خضر عليه السلام په نبوت کښې اختلاف دې امام ثعلبی او ابن الجوزی د هغه د نبوت قائل دی او د قران مجید (وعلمناه من لدنا علما، وما فعلته عن امری) نه هم داسې معلومیږی،او دده په حیات کښې هم اختلاف دې لیکن د دجال د مقتول متعلق حضرت معمر فرمائی چه هغه به خضر عليه السلام وی.وهوالموفق

## مکه معظمه د زمکې په مینځ کښې کیدل او د ادم عليه السلام د بدن خاوره د ټولې زمکې نه اخستلې شوې ده

**سوال** (۱) دا د کوم ځائ نه ثابت دی چه مکه معظمه د زمکې په مینځ کښې ده؟ (۲) او ایا د ادم عليه السلام د پیدائش خاوره د ټولې زمکې نه اخستلې شوې وه تفصیلی جواب راکړئ؟

المستفتی : سعد الرشید زیارت کاکا صاحب نوشهره

**الجواب**: (۱) واضحه دې وی چه مکه معظمه د زمکې په مینځ کښې کیدل څه منصوصی امر نه دې بلکه دا یو جغرافیائی حقیقت دې دا رنګې چه زمکه (مع الماء) یو کروی جسم دې نو په هغې کښې په هره نقطه باندې د وسط،، کیدل صادق راځی خصوصاً هغه ځائ چه د ټولې زمکې دپاره د تخم په منزله باندې دې، او په څلور واړو طرفونو کښې زمکه ددینه خوره شوې وه،فهی کعجب الذنب اوکالسرة، (۲) د حضرت ادم عليه السلام بدن د ټولې زمکې نه حاصلې شوې خاورې نه جوړ کړې شوې دی، یعنې د خاورې او اوبو د مختلفو قسمونونه دده بدن مبارک تیار کړې شوې دې.

**(الحدیث اخرجه احمد و ابو داؤد والترمذی و صححه . وابن جریر وابن المنذر وابن مردویه والحاکم و صححه. والبیهقی عن ابی موسیٰ الاشعری . قلت والحکمة تقضی ذلک لان ولده لیسکنون فی کل البلاد و یسیحون فی کل موضع فلا بد من الموافقة بکل البلاد . وهو الموفق**



## حضرت عیسی عليه السلام د امتی په حیثیت راتلل او هغه ته وحی کیدل

**سوال**:حضرت عیسی عليه السلام چه کله د اسمان نه راکوزشی نود شریعت محمدی ﷺ پیروی اوتابعداری به کوی،تپوس دادې چه دحضرت عیسیٰ عليه السلام خپله ژبه خوسریانی یا عبرانی وه او قران مجید عربی ده نو دا به لوستلې شی اوکه نه؟ که لوستلې ئې شی نو د فرشتې په ذریعې سره یا بغیر د فرشتې نه؟ اوکه د فرشتې په ذریعې سره وی نو دا خو به د وحې شکل نه وی کوم چه د محمد ﷺ نه پس بند ده.

المستفتی : شفیق الرحمن حقانی ادینه صوابی... ۱۹۷۵ء۱۱۱۱۰

**الجواب**: نبوت د چانه واپس نه اخستلې کیږی، نو حضرت عیسی عليه السلام به یقیناً نبی وی البته د محمد ﷺ د شریعت تابع به وی، کما صرحوابه ویشیرالیه حدیث لوکان موسی حیا وادرک نبوتی لاتبعنی.﴿۱﴾ لعدم ارادة تخصیص موسیٰ عليه السلام او په عربی ژبه نه پوهیدلو باندې څه دلیل نشته او دارنګې بند خو هغه وحی ده چه د شریعت سره متعلق وی.

**بدلیل حدیث الترمذی فیما هو کذلک اذا اوحی الله الی عیسیٰ علیه السلام انی قد اخرجت عباد الی لا یدان لا حد بقتا لهم فحرز عبادی الی الطور و یبعث الله یأجوج و مأجوج. ﴿۲﴾ وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ص ۳۲ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة الفصل الثالث )

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۴۷۳ جلد ۲ باب العلامات بین یدی الساعة و ذکر الدجال الفصل الاول)

.........

........

# قال اللہ تعالیٰ

مُحَمَّدٌ

رَسُوْلُ اللّٰهِ ط

وَالَّذِیْنَ مَعَهٗۤ

اَشِدَّآءُ عَلَی الْكُفَّارِ

رُحَمَآءُ بَیْنَهُمْ

(الآية)

*****



# باب

# ما يتعلق

# بالصحابة

# رضى الله عنهم

***

# باب ما یتعلق بالصحابة رضی الله عنهم

## د یزید په باره کښې څه رائې ساتل پکار دی؟

**سوال:** د یزید په باره کښې څه عقیده ساتل پکار دی؟ ایا هغه فاسق وو یا حق خلیفه؟ بعضې حضرات دهغه متعلق صفایانې پیش کوی ددې شرعی حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی :عباس احمدراولپنډی..... ۱۹۸۲ء ۱۳/۱۴/۱

**الجواب:** د یزید متعلق د نور بدنامو خلقو پشان نه وحی شته او نه ځمونږ مشاهده شته البته د عام شهرت او تاریخی روایتونو په رڼړا سره هغه بدنام دې ﴿۱﴾ په البدایة والنهایة وغیره کښې دهغه څه احوال شته دې وهوالموفق

## د شیعه ګانو سره نکاح او د هغوی د ذبیحې تحقیق او امهات المؤمنین په اهل بیت کښې داخل دی

**سوال** علمائې دین لاندینو مسئلو باره کښې څه فرمائی. د شیعه ګانو ذبیحه حرامه ده که حلاله؟ (۲) د شیعه ګانو سره نکاح جائز ده که نه؟ (۳) د پیغمبر علیه السلام بیبیانې په اهل بیت کښې داخلې دی او که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی :قاری عبد الحمید... مورخه ۱۹۷۷ء ۲/۱۹/۱

**الجواب:** کوم شیعه ګان چه د حضرت علی رضی الله عنه د خدائې توب او رسول کیدو عقیده ساتی او حضرت ابوبکر او عمر رضي الله عنهما ته کنځل کوی او حضرت عائشه (رضی الله عنها) باندې بدنامې لګوی نو هغه کافران دی نه ورسره نکاح جائز ده او نه د هغوی ذبیحه حلاله ده او کوم شیعه ګان چه صرف حضرت علی رضی الله عنه ته فضیلت ورکوی نو دهغوی ذبیحه حلاله ده او په نکاح کښې به د کفاءت حکم جاری کولې شی.

﴿۱﴾ قال العلامة ملا علی قاری و بعضهم اطلق اللعن علیه ای علی یزید لماانه کفر حین امر بقتل الحسین رضی الله عنه انتهی ولا یخفیٰ ما فی نقله حیث ابهم فی قائله ثم تعلیله یحتاج الیٰ اثبات امره بقتل الحسین رضی الله عنه اولاً ثم ترتب کفره علیه ثانیا و کلاهما ممنو ع .فقد قال حجة الاسلام فی الاحیاء فان قیل هل یجوز لعن یزید لکونه قاتل الحسین او امر به ؟قلنا هٰذا مما لم یثبت اصلا فلا یجوز ان یقال انه قتله او امر به فضلا عن لعنه.(شرح فقه الاکبر للقاری ص ۷۲ الکبیر ة لا تخرج المؤمن عن الایمان )



فی الخلاصة ص ۵۵۶ جلد ۲ الرافضی ان کان یسب الشیخین و یلعنهما فهو کافر وان کان یفضل علیا علی ابی بکر و عمر رضی الله عنهما لا یکون کافراً . و فی ردالمحتار (ص ۳۳۹ جلد ۳) بخلاف من ادعی ان علیا اله وان جبریل غلط لان ذلک لیس عن شبهة قال و کذا یکفر قاذف عائشة الخ ـ او ازواج مطهرات په اهل بیت کی یقینی طورسره داخل دی ـ لانه مقتضی اللغة و العرف و کذا نزل قوله تعالیٰ لیذهب عنکم الرجس اهل البیت الآیة فی حقهن .﴿۱﴾ وهو الموفق

## په مشاجرات صحابه (عنهم) کښې د اهل سنت والجماعت د توقف تفصیل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې : زید وائی، چه د جمهور متقدمینو نقطه نظر صحیح دې چه په مشاجرات صحابه رضی الله عنهم کښې توقف کول پکار دی چه دواړوه په حقه دی. بکر وائی: چه نه د جمهور متاخرینو نظریه صحیح ده چه حضرت علی رضی الله عنه په حقه باندې وو. او د حضرت معاویه رضی الله عنه نه اجتهادی غلطی شوې وه او عمرو وائی: چه د جمهور متاخرینو نظریه صرف صحیح نه بلکه چه څوک دا نظریه نه منی او حضرت معاویه او دهغوی ملګری په اجتهادی غلطی باندې نه تسلیموی هغه د اهل سنت والجماعت د حلقې نه وتلې دې زیدوائی : چه د عمرو داسې خبره کول زیاتې دې ځکه چه د جمهور متقدمینو د نقطه نظر چه څوک تائید کونکې وی هغه څنګه د اهل سنت والجماعت نه بهر کیدې شی، بلکه ډیر احتیاط والا مسلک هم هغه دې، کوم چه مولانا ظفراحمد الانصاری رحمه الله لیکلې دې. هو والله الورع والاحتیاط،، بیا یو څوکربښې پس لیکی،

''فان کان لارجائه امر الصحابة الذین تقاتلوا فیما بینهم الی الله و توقفه عن تصویب احدی الطائفتین فهو من اهل السنة ومن حزب الورعین حتماً.(مقدمه اعلاء السنن ص ۱۴۲ )

او علامه ابن حزم رحمة الله علیه لیکی:

وذهب سعد بن ابی وقاص و عبدالله بن عمر و جمهور الصحابة الی الوقوف فی علی واهل الجمل و اهل الصفین و به یقول جمهور اهل سنة. (الملل و النحل ص ۱۵۳ جلد ۴)

﴿۱﴾ قال العلامه الوسی وأل فی البیت للعهد وقیل عوض عن المضاف الیه ای بیت النبی صلی الله علیه وسلم والظاهران المراد به بیت الطین والخشب لا بیت القرابة والنسب ......... وحینئذٍ فالمراد باهله نساءه صلی الله علیه وسلم المطهرات للقرائن الدالة علی ذلک من الآیات السابقة واللاحقة مع انه علیه الصلاة والسلام لیس له بیت یسکنه سویٰ سکناهن وروی ذلک غیر واحد ،اخرج ابن ابی حاتم وابن عساکر من طریق عکرمة عن ابن عباس رضی الله عنهما نزلت انما یرید الله الخ فی نساء النبی صلی الله علیه وسلم خاصة ..........وقال عکرمة من شاء باهلته انها نزلت فی ازواج النبی صلی الله علیه وسلم الخ. (تفسیر روح المعانی ص ۱۹ جلد ۲۲ سورة الاحزاب رکوع: ۱ آیت: ۳۳)

... نو اوس په زید، عمرو او بکر کښې د چا قول صحیح دې؟ جواب راکړئ

المستفتی :وقار احمد صدیقی جامعه مدینة العلوم ناظم اباد کراچی نمبر ۱۸. ۱۹۸۵ء ۲۱۱۳۱

**الجواب:** حضرت امیر معاویه رضی الله عنه مجتهد وو، او هر مجتهد کله حق ته رسیږی او کله غلط کیږی البته د مجتهدینو غلطی نیول د هر سړی کار نه دې دا په وحی سره معلومیږی او یا به په قیامت کښې معلومیږی، د زید او بکر د خبرو انجام یو دې ﴿۱﴾ او عمرو په غلطئ باندې دې وهوالموفق

**نوټ** :لو کانت الفئة الباغية فئة معاوية لا الفئة الثالثة لكان لكلام عمرووجه.فافهم

## حضرت علی رضی الله عنه ته شیر خدا، وئیل

حضرت علی رضی الله عنه ته شیر خدا وئیل څنګه دی؟ مونږ د حضرت حمزه رضی الله عنه متعلق اوریدلی دی چه هغه د غزوه بدر په موقعې باندې ډیره بهادرې ښکاره کړه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته د (اسد الله) او (اسدالرسول) القابات ورکړل ددې متعلق شرعی حکم واضح کړئ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی : میاں صدیق مغل دهلی کالونی کراچی نمبر ۲... ۱۹۸۲ء ۱۲۱۴۱

**الجواب:** د القاباتو مشروعیت په شرعی ثبوت باندې موقوف نه دی دهغې د مشروعیت دپاره د شریعت سره عدم تصادم هم کافی دې، وهوالموفق

## حضرت معاویه رضی الله عنه ته غلط نسبت او په یزید باندې د لعنت حکم

**سوال** السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! مونږ ته ددې سوال جواب راکړئ مهربانی به وی.(۱) حضرت معاویه رضی الله عنه څوک وو، او هغه ته د غلط نسبت کولو څه حکم دې؟ (۲) په یزید باندې لعنت کول جائز دی که نه؟ که ناجائز وی نو بیا څه حکم دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی : فروش الدین لنډیکوتل... ۱۹۷۰ء ۲۲۱۴۱

﴿۱﴾قال ابن البزاز الكردری ولايجوز اللعن علی معاويه لا نه خال المومنين وكاتب الوحی وذوالسابقة والفتوح الكثيرة وعامل الفاروق وذی النورين لكنه اخطأ فی اجتهاده فيتجاوز الله عنه ببركة صحبة سيدنا عليه الصلوة والسلام ويكف اللسان عنه تعظيما لمتبوعة وصاحبه عليه السلام.

(فتاوىٰ بزازيه علی هامش الهنديه ص ۳۴۴ ج ۶ الباب الثانی فيما يكون كفرامن المسلم ومالايكون)



**الجواب:** وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته! حضرت معاویه رضی الله عنه جلیل القدر صحابی دې او د پیغمبر علیه السلام د بی بی رور دې هغه ته بدوئیل او کنځل کول فسق او فجور دې ﴿۱﴾.(۲) د اکثرو محتاط علماء دافیصله ده چه په یزید به لعنت نه وئیلې کیږی ﴿۲﴾

## په یزید باندې لعن طعن کول په ضروری کارونو کښې نه دې

**سوال** څمونږ ځائ کښې یو مولوی صاحب په تقریر کښې اووئیل چه تاسو په یزید باندې لعن طعن کښې وخت مه ضائع کوئ کیدې شی چه الله تعالی هغه اوبخښی تاسو د حضرت حسین رضی الله عنه لاره خپله جوړه کړئ نو ایا مولوی صاحب داخبرې صحیح کړی دی که غلطې؟ خپله رائې راته واضحه کړئ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی :محمود الحسن غله منډئ ګجرخان... ۱۹۷۰ء

**الجواب:** په یزدي باندې لعن طعن کول په دین کښې څه ضروری کار نه دې ﴿۳﴾ نو په دې وجه باندې دې کښې مشغولیدلو کښې څه خاص فائده نشته او د نااهله خلقو سره مقابله پریخودلو کښې ډیرې فائدې دی لهذا د مولوی صاحب بیان غلط نه دې قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من حسن اسلام المرء ترکه مالایعنیه ﴿۴﴾ (رواه مالک والترمذی)

﴿۱﴾قال ابن البزاز الكردری ولا يجوز اللعن علی معاوية لا نه خال المومنين وكاتب الوحی وذو السابقة والفتوح الكثيرة وعامل الفاروق وذی النورين لكنه اخطأ فی اجتهاده فيتجاوز الله عنه ببركة صحبة سيدنا عليه الصلاة والسلام ويكف اللسان عنه تعظيما لمتبوعه وصاحبه عليه السلام.

(فتاوىٰ بزازيه علی هامش الهنديه ص ۳۴۴ ج ۶ فصل الحادی عشر فيما يكون خطأ)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری وانما اختلفوافی يزيد بن معاوية حتىٰ ذكرفی الخلاصة وغيره انه لا ينبغی اللعن عليه ای ولاعلی الحجاج .لا ن النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن لعن المصلين ومن كان من اهل القبلة الخ

(شرح فقه الاكبر لملاعلی قاری ص ۷۲ الكبيرة لا تخرج المومن عن الايمان)

﴿۳﴾قال الملا علی قاری وانما اختلفو فی يزيد بن معاويه حتىٰ ذكر فی الخلاصة وغيره انه لا ينبغی اللعن عليه ای ولا علی الحجاج لا ن النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن لعن المصلين ومن كا ن من اهل القبلة......قال حجة الا سلام فی الاحياء فان قيل هل يجوز لعن يزيد لكونه قاتل الحسين او امر به ؟

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## یزید د جمهور علماؤ په نزد کافر نه دي

**سوال:** ځمونږ ځائ کښې یوه نوې فتنه راوچته شوې ده یوسړی کتاب لیکلی دې چه یزید رحمة الله علیه،، او د ټولو علمائ د یوبند غلط دستخطې ئې کړی دی، او حضرت حسین رضی الله عنه ئې باغی ګرځولی دې، اوس دا اهل بدعت په هر ستیج باندې علمائې دیوبند بدناموی چه اوګورئ د دیوبندیانو دستخطې هم موجود دی، اوس بنده د علمائې دیوبند د نظرئې پیش کولو کلکه اراده کړې ده، چه کتاب اولیکم او د علمائې دیوبند رائې زاجمع کړم او بیا ئې په ټول ملک کښې مفت تقسیم کړم، مهربانی اوکړئ تاسو هم د خپلې رائې نه مونږ خبر کړئ او عندالله ثواب دارین حاصل کړئ؟ ځما مقصود څه فتنه نه ده بلکه اصلاح مې مقصود ده، شکریه.

المستفتی: محمد حسین خطیب جامع مسجد کبیروالاملتان.... ۱۹۷۰ء

**الجواب:** یزید د جمهور علماؤ په نزد باندې کافر نه دې لیکن د هغه نااهلی اوظلم بې شکه د انکار قابل نه دې او د فقهې او کلام په ټولو کتابونو کښې دا حکم موجود دې.《۱》وهو الموفق

## په ګس لاس باندې نکریزې سره. محمد فاروق.، نوم لیکلو سره په استنجاء کښې بې حرمتی ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو طالب علم دخپل

(بقیه حاشیه د تیرمخ) قلنا هذا مما لم یثبت اصلا .فلا یجوز ان یقال انه قتله او امربه فضلا عن لعنه ولانه لا یجوز نسبة مسلم الی کبیرة من غیر تحقیق الخ(شرح فقه الاکبر لملاعلی قاری ص ۷۲الکبیرة لا تخرج المومن عن الایمان)

《۲》ترمذی ص ۵۵ ج ۲ باب ماجاء من تکلم بالکلمة لیضحک الناس ابواب الزهد)

《۱》قال الملاعلی قاری وبعضهم اطلق اللعن علیه ای علی یزید لما انه کفر حین امر بقتل الحسین رضی الله عنه انتهی .ولا یخفیٰ ما فی نقله حیث ابهم فی قائله ثم تعلیله یحتاج الیٰ اثبات...... امره بقتل الحسین رضی الله عنه اولا ثم ترتب کفره علیه ثانیا وکلا هما ممنوع .فقد قال حجة الاسلام فی الاحیاء فان قیل هل یجوز لعن یزید لکونه قاتل الحسین رضی الله عنه او امربه قلنا هذا مما لم یثبت اصلاً فلا یجوز ان یقال انه قتله او امر به فضلا عن لعنه ولانه لا یجوز نسبة مسلم الیٰ کبیرة من غیر تحقیق ......ولان الامر بقتل الحسین رضی الله عنه لا یوجب الکفر فان قتل غیر الانبیاء علیهم السلام کبیرة عند اهل السنة والجماعة الاان یکون مستحلا وهو غیر مختص بالحسین ونحوه.....واماما تفوه به بعض الجهلة من ان الحسین کان باغیا فباطل عند اهل السنة والجماعة ولعل هذا من هذیانات الخوارج عن الجادة.(شرح فقه الاکبر ص ۷۲الکبیرة لا تخرج المؤمن عن الایمان)



لاس په ورغوی باندې خپل نوم،، محمدفاروق،، لیکلی دې، استاذ ورله لړه شان سزا ورکړه او نصیحت ئې ورته اوکړو چه په دې سره د نوم بې عزتی کیږی ځکه چه په ګس لاس باندې په لوټه یا اوبو سره استنجاء کیږی نو په دې باندې د هلک پلار غصه شو چه دا څه شرعی جرم نه دې دا سزا ناجائز ده او استاذ ظلم کړې دې، نو واضح اوفرمایئ چه په دې صورت کښې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د نومونو توهین کول جرم دې که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: منظور الحق قریشی کوهاله مری...۱۹۷۹ء۱۱۱۱۱۹

**الجواب:** په ګس لاس باندې،، محمد فاروق،، لیکل اګر چه جائز دی لحدیث ابی داؤد کان النبی صلی الله علیه وسلم یتختم فی یساره 《۱》 انتهی وثبت فی حدیث متفق علیه نقش فیه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم《۲》لیکن دا هم ثابت دی چه پیغمبر علیه السلام به د قضائې حاجت په وخت کښې دا لرې کوله، رواه ابوداؤد عن انس رضی الله عنه مرفوعاً《۳》لهذا ترخو پورې چه دا مبارک نوم،، محمد،، په لاس باندې وی نو په هغې سره په اوبو وغیره باندې استنجاء کول جائز نه دی او ده باندې ضروری دی چه دا نوم په څه طریقې سره لرې کړی او وران ئې کړی پس استاذ په حقه باندې دې په دې شرط چه معامله صرف دومره وی، فقط

## د حضرت حسین رضی الله عنه متعلق بعضې سوالونه او د یزید حالات

**سوال:**(۱) ایا د سیدنا امام حسین رضی الله عنه فضائل په قران او حدیث کښې شته ک
نه؟ (۲) ایا امام حسین رضی الله عنه د یزید په بیعت نه کولو باندې بغاوت کړې و
او نورو مسلمانانو بیعت کړې وو نو د هغوی درجه څه ده؟ (۳) امام حسی
رضی الله عنه په میدان کربلا کښې شهید شوې دې او که د بغاوت په جرم کښې وژل
شوې دې؟ (۴) د یزید متعلق څه خاص پیشنګوئی یا تعریف په قران ا
حدیث کښې شته که نه؟ (۵) په شریعت اسلامیه کښې د یزید څه حیثی
دې؟ هغه خلیفه راشد دې یا صرف دنیاوی حکمران دې؟ (۶) د شهادت
پس چه د ساداتو خاندان ته د یزید د دربارنه کومه کال په کال وظی
ملاویدله دا صحیح ده؟ (۷) د کربلا د واقعې اصلی حقیقت څه دې؟

《۱》عن ابن عمر عن النبی صلی الله علیه وسلم .(ابو داؤدص ۲۲۹ جلد ۲ باب ما جاء فی التختم فی الیمین او الیسار)
《۲》( مشکواة المصابیح ص ۳۷۷ جلد ۲ باب الخاتم الفصل الاول )
《۳》(ابو داؤد ص ۴ جلد ۱ باب الخاتم یکون فیه ذکر الله تعالی یدخل به الخلاء )

## یزید د جمهور علماؤ په نزد کافر نه دي

**سوال:** ځمونږ ځائ کښې یوه نوې فتنه راوچته شوې ده یو سړی کتاب لیکلې دې چه یزید رحمة الله علیه، ، او د ټولو علمائ د یوبند غلط دستخطې کړې دی، او حضرت حسین رضی الله عنه ئې باغی ګرځولې دې، اوس دا اهل بدعت په هر سټیج باندې علمائې دیوبند بدناموی چه اوګورئ د دیوبندیانو دستخطې هم موجود دی، اوس بنده د علمائې دیوبند د نظرئې پیش کولو کلکه اراده کړې ده، چه کتاب اولیکم او د علمائې دیوبند رائې زاجمع کړم او بیائې په ټول ملک کښې مفت تقسیم کړم، مهربانی اوکړئ تاسو هم د خپلې رائې نه مونږ خبر کړئ او عندالله ثواب دارین حاصل کړئ؟ ځما مقصود څه فتنه نه ده بلکه اصلاح مې مقصود ده. شکریه.

المستفتی: محمد حسین خطیب جامع مسجد کبیروالاملتان...۱۹۷۰ء

**الجواب:** یزید د جمهور علماؤ په نزد باندې کافر نه دې لیکن د هغه نااهلی اوظلم بې شکه د انکار قابل نه دې او د فقهې او کلام په ټولو کتابونو کښې دا حکم موجود دې.﴿۱﴾وهوالموفق

## په ګس لاس باندې نکریزې سره. محمد فاروق.، نوم لیکلو سره په استنجاء کښې بې حرمتی ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو طالب علم د خپل

(بقیه حاشیه د تیر مخ) قلنا هذا مما لم یثبت اصلا .فلا یجوز ان یقال انه قتله او امربه فضلا عن لعنه ولانه لا یجوز نسبة مسلم الی کبیرة من غیر تحقیق الخ(شرح فقه الاکبر لملاعلی قاری ص ۷۲الکبیرة لا تخرج المومن عن الایمان)

﴿۲﴾ترمذی ص ۵۵ ج ۲ باب ماجاء من تکلم با لکلمة لیضحک الناس ابواب الزهد)

﴿۱﴾قال الملاعلی قاری وبعضهم اطلق اللعن علیه ای علی یزید لما انه کفر حین امر بقتل الحسین رضی الله عنه انتهی .ولا یخفیٰ ما فی نقله حیث ابهم فی قائله ثم تعلیله یحتاج الیٰ اثبات...... امره بقتل الحسین رضی الله عنه اولا ثم ترتب کفره علیه ثانیا وکلا هما ممنوع .فقد قال حجة الاسلام فی الاحیاء فان قیل هل یجوز لعن یزید لکونه قاتل الحسین رضی الله عنه او امربه قلنا هذا مما لم یثبت اصلاً فلا یجوز ان یقال انه قتله او امر به فضلا عن لعنه ولانه لا یجوز نسبة مسلم الیٰ کبیرة من غیر تحقیق ......ولان الامر بقتل الحسین رضی الله عنه لا یوجب الکفر فان قتل غیر الانبیاء علیهم السلام کبیرة عند اهل السنة والجماعة الاان یکون مستحلا وهو غیر مختص با لحسین ونحوه......واماماتفوه به بعض الجهلة من ان الحسین کان باغیا فباطل عند اهل السنة والجماعة ولعل هذا من هذیانات الخوارج عن الجادة.(شرح فقه الاکبر ص ۷۲الکبیرة لا تخرج المؤمن عن الایمان)



لاس په ورغوی باندې خپل نوم، ، محمدفاروق، ، لیکلې دې، استاذ ورله لړه شان سزا ورکړه او نصیحت ئې ورته اوکړو چه په دې سره د نوم بې عزتی کیږی ځکه چه په ګس لاس باندې په لوټه یا اوبو سره استنجاء کیږی نو په دې باندې د هلک پلار غصه شو چه دا څه شرعی جرم نه دې دا سزا ناجائز ده او استاذ ظلم کړې دې، نو واضح اوفرمایئ چه په دې صورت کښې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د نومونو توهین کول جرم دې که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: منظور الحق قریشی کوهاله مری...۱۹۶۹ء۱۹/۱/۱۱

**الجواب:** په ګس لاس باندې، ، محمد فاروق، ، لیکل اګر چه جائز دی لحدیث ابی داؤد کان النبی صلی الله علیه وسلم یتختم فی یساره ﴿۱﴾ انتهی وثبت فی حدیث متفق علیه نقش فیه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم﴿۲﴾لیکن دا هم ثابت دی چه پیغمبر علیه السلام به د قضائې حاجت په وخت کښې دا لرې کوله، رواه ابوداؤد عن انس رضی الله عنه مرفوعاً﴿۳﴾لهذا ترڅو پورې چه دا مبارک نوم، ، محمد، ، په لاس باندې وی نو په هغې سره په اوبو وغیره باندې استنجاء کول جائز نه دی او ده باندې ضروری دی چه دا نوم په څه طریقې سره لرې کړی او وران ئې کړی، پس استاذ په حقه باندې دې په دې شرط چه معامله صرف دومره وی، فقط

## د حضرت حسین رضی الله عنه متعلق بعضې سوالونه او د یزید حالات

**سوال:**(۱) ایا د سیدنا امام حسین رضی الله عنه فضائل په قران او حدیث کښې شته که نه؟ (۲) ایا امام حسین رضی الله عنه د یزید په بیعت نه کولو باندې بغاوت کړې وو او نورو مسلمانانو بیعت کړې وو نو د هغوی درجه څه ده؟ (۳) امام حسین رضی الله عنه په میدان کربلا کښې شهید شوې دې او که د بغاوت په جرم کښې وژلې شوې دې؟ (۴) د یزید متعلق څه خاص پیشنګوئی یا تعریف په قران او حدیث کښې شته که نه؟ (۵) په شریعت اسلامیه کښې د یزید څه حیثیت دې؟ هغه خلیفه راشد دې یا صرف دنیاوی حکمران دې؟ (۶) د شهادت نه پس چه د ساداتو خاندان ته د یزید د دربارنه کومه کال په کال وظیفه ملاویدله دا صحیح ده؟ (۷) د کربلا د واقعې اصلی حقیقت څه دې؟

﴿۱﴾ عن ابن عمر عن النبی صلی الله علیه وسلم .(ابو داؤدص ۲۲۹ جلد ۲ باب ما جاء فی التختم فی الیمین او الیسار)
﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۳۷۷ جلد ۲ باب الخاتم الفصل الاول)
﴿۳﴾ (ابو داؤد ص ۴ جلد ۱ باب الخاتم یکون فیه ذکر الله تعالی یدخل به الخلاء)

(۸) ایا مروان او شمر هم صحابه ؤو؟ (۹) نن صبا چه کوم جماعت د امام حسین ؓ خلاف لګیادي ددي څه حقیقت دي؟ ایا د دوی په اقتداء کښې مونځ جائز دي؟ (۱۰) ایا د امام حسین ؓ په حق کښې وینا کول جائز دی د قران او حدیث په رڼا سره خو هغه خارجیان نه دی؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: محمد عثمان الوری توحید نګر کراچی. ۱۹۷۵ء/۱/۹/۳

**الجواب:** (۱) په قران او حدیث کښې د امام حسین ؓ بعضې صفتونه ذکر شوی دی قال الله تعالی لیذهب عنکم الرجس اهل البیت الایة ﴿۱﴾ وقال رسول الله ﷺ هما ریحانی من الدنیا. الحدیث ﴿۲﴾ (۲) امام حسین ؓ نه د یزید سره بیعت کړې وو نه ئې بغاوت کړې وو. (۳) شهید شوې وو (۴) نشته (۵) نالائقه بادشاه وو البته د اوسنو بادشاهانو نه ښه وو (۶) صحیح ده (۷) تفصیل په کښې پکاردې (۸) نه دی (۹) د صحابه کرامو ؓ توهین حرام دې دهغه اقتداء مکروه تحریمی ده (۱۰) د عام صحابه کرام ؓ خلاف د وینا کولو چه کوم روایتونه راغلی دی هغه د حضرت حسین ؓ متعلق هم دی وهو الموفق.

## صحابه کرام ؓ عادلان دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې پاره کښې څه فرمائی یو سړې وائی چه صحابه کرام ؓ نه څه خطاګانې شوی دی، او الله تعالی هغوی معاف کړی دی اود هغوی د خطاګانو تذکره صحیح نه ده اودویم کس وائی چه د صحابه کرام ؓ نه ګناهونه شوی دی او په هغې به ورته سزا هم وی نو په دې دواړو کښې کوم یو صحیح وائی؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: مولوی محمد صادق کوټ کشمیر لکی مروت

﴿۱﴾ (پاره: ۲۲ سورة الاحزاب آیت: ۳۳)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۵۶۹ جلد ۲ باب مناقب اهل البیت)

﴿۳﴾ قال ابن عابدین و سب احد من الصحابة و بغضه لا یکون کفرا لکن یضلل ...... و ترد شهادة من یظهر سب السلف لانه یکون ظاهر الفسق ...... و قال الزیلعی او یظهر سب السلف یعنی الصالحین منهم وهم الصحابة والتابعون الخ. (ردالمحتار ص ۳۲۱ جلد ۳ مطلب مهم فی حکم سب الشیخین)



**الجواب:** صحابه کرام ؓ خپل موضوع جوړولو کښې د بې ادبئ خطره ده لهذا د دوی د موضوع جوړولو نه پرهیز کول پکار دی پاتې شوه د هغوی متعلق عقیده ساتل نو د ټولو مسلمانانو دا عقیده پکار ده چه صحابه کرام ؓ اګر چه معصوم نه دی لیکن عادلان دی مطلب داچه اول خو به ترینه ګناه کیدله نه او که ګناه به ترینه اوشوه نو سمدستی به ئې توبه ویستله او داعقیده هم پکار ده چه په اجتهاد کښې خطائی کیدل د عدالت سره منافی نه دی والتفصیل فی کتب الکلام ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د صحابه کرام ؓ نه علاوه بل چاسره ؓ وئیل

**سوال:** د صحابه کرامو نه علاوه چرته بل ولی او امام سره رضی الله عنه وئیل څنګه دی؟ ایا په دې کښې څه ګناه شته یا نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: عبدالماجد طیب دواخان ټیکسلا .... ۱۹۷۲ء/۳/۱۷

**الجواب:** درضي الله عنه جمله د صحابه کرامو سره مخصوص نه ده، کما فی الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۵۹ جلد ۵ وکذا یجوز عکسه وهو الترحم للصحابة والترضی للتابعین ومن بعدهم. وهو الموفق.

## د یزید د خلافت تحقیق

**سوال:** د یزید خلافت چه کومو صحابه کرامو ؓ منلې دې که د هغوی نو مونه اولیکئ نو ډیره مهربانی به وی، دا رنګې د یزید حیثیت څه دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتي: رضی بخاری جناح سټریټ سرګودها

﴿۱﴾ قال العلامه ملا علی قاری و لا نذکر احدا من اصحاب رسول الله ﷺ الا بخیر یعنی و ان صدر من بعضهم بعض ما هو فی الصورة شر فانه اما کان عن اجتهاد ولم یکن علی وجه فساد من اصرار و عناد بل کان رجوعهم عنه الی خیر میعاد بناء علی حسن الظن بهم و لقوله علیه الصلاة والسلام خیر القرون قرنی، ولقوله علیه الصلاة والسلام اذا ذکر اصحابی فامسکوا. و لذلک ذهب جمهور العلماء الی ان الصحابة رضی الله عنهم کلهم عدول قبل فتنة عثمان و علی و کذا بعدها و لقوله علیه الصلاة والسلام اصحابی کالنجوم بایهم اقتدیتم اهتدیتم. رواه الدارمی وابن عدی و غیرهما الخ

(شرح فقه الاکبر ص ۷۱ قبیل الکبیرة لاتخرج المؤمن عن الایمان)

**الجواب:** دلته په کتب خانه صرف البدایه والنهایه موجود ده په هغې کښې صرف د ابن عمر د طرف نه منل په نظر راځي او (خلیفة الرسول) چا هم نه دي منلي او یزید بن معاویه یو زوراور امیر وو، د هغه خلافت علی منهاج النبوت نه وو. وهو الموفق

## د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خپل ځوئ باندې د حد جاري کولو حقیقت

**سوال:** السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! د سلام نه پس عرض دادې چه ماته یو سړي اووئیل چه حضرت عمر رضی الله عنه په خپل دور حکومت کښې خپل ځوئ ته د زنا په جرم کښې کوړې ولې اووهلې چه هغه د سزا طاقت نه لرلو نو ولې ئې هلاک کړو ایا دا د هغه خپل قانون وو یا په اسلام کښې داسې شته؟ نو ما ورته جواب ورکړو چه د زنا په بدله کښې ئې کوړې اوخوړلې تردې چه شهید شو لیکن هغه دا نه مني، نو ددې واقعې تفصیل او حقیقت څه دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: قاضی ارشد صاحب لندن... ۲۶/۱۲/۱۹۷۳ء

**الجواب:** محترم المقام وعلیکم السلام! دا قیصه چه حضرت عمر رضی الله عنه د مرګ نه پس هم په خپل ځوئ باندې حد جاري کړو موضوع او باطله ده، بې شکه د یو روایت نه ثابت دی چه حضرت عمر رضی الله عنه په خپل ځوئ باندې د شرابو څکلو حد جاری کړې وو او دهغې نه پس اتفاقاً هغه بیمارشو او د بیمارئ دوجې نه وفات شو.

فی الفوائد المجموعة ص ۲۰۳ حدیث ان عمر اقام الحد علی ولد له یکنیٰ ابا شحمة بعد موته فی قصة طویلة موضوع وقدروی ان عبد الرحمن الاوسط من اولاد عمرو یکنی ابا شحمة کان تمار بالمقر فشرب نبیذاً فجاء الیٰ عمرو بن العاص وقال اقم علی الحد فامتنع فقال الی اخبر ابی اذا قرمت علیه فضیر به الحد فی داره فکتب الیه عمر بلومه فقال اذا فعلت به ما تفعل بالمسلمین فلما جزم علی عرض به فاتفق انه مرض فمات. وهوا لموفق

## د (حق چار یار) مطلب او خلفائې راشدین

**سوال:** ایا حضرت حسن رضی الله عنه په خلافت راشده کښې داخل دې که نه؟ که داخل وی نو بیا د حق چار یار، نعرې لګولو څه مطلب دې؟ څکه چه دا خو پنځه شول؟ بینوا تووجروا

المستفتی: شیرمحمد تله ګنګ ۱۰/۱۰/۱۹۷۸ء



**الجواب:** د حق چار یار دا مطلب نه دې چه د نورو حقدارو نه دې دهغوی حق واخستلې شی نو په دې سره د اهل بیت د خلافت راشده نه ویستل مراد نه دی.

قال علامه القاری فی شرح الفقه الاکبر ص ۵۴ و خلافة الحسن ابنه (علی رضی الله عنه) ستة اشهر واول ملوک المسلیمین معاویة رضی الله عنه وهو افضلهم. ﴿۱﴾

## د حضرت عمر رضی الله عنه په ځوئ باندې د مرګ نه پس هم د حد شرب والا قیصې زیات تحقیق

**سوال:** بعضې خلق د حضرت ابوشحمه رضی الله عنه واقعه داسې بیانوی چه هغه شراب څکلی وو، او په دغې حالت کښې ترینه زنا هم اوشوه د ښځې په دعوی سره ده د جرم اقرار اوکړو بیا حضرت عمر رضی الله عنه راوغوختلو او ۷۲ کوړې ئې ورته اولګولې لیکن د حد د پوره کیدلو نه مخکښې وفات شو او حضرت عمر رضی الله عنه د وفات نه پس هم کوړې اولګولې، نو ایا دا واقعه صحیح ده او حقیقت دې؟ حضرت شبلی نعمانی رحمه الله دا واقعه غلطه ګرځولې ده؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: شفیق الرحمن مدرس وامام مسجد ماړی خیل بهیرکنډ ۸ رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په دې اثر کښې د متن د اضطراب د وجې نه ضعف پیدا شوی دې، او په کوړو باندې د مړکیدلو واقعه صاحب د (استیعاب) غلطه ګرځولې ده، او د مرګ نه پس د کوړو لګولو واقعه علامه ابن الجوزی رحمه الله په (فوائد مجموعه) کښې موضوع ګرځولې ده. وهو الموفق

## د صحابه کرامو رضی الله عنهم: امیر معاویه او حضرت علی رضي الله عنهما په باره کښې د اهل سنت والجماعت عقیده

**سوال:** د اهل سنت والجماعت بعضې خلق د یوې باطلې فرقې سره پاتې شول نو د امیرمعاویه په باره کښې وائی چه هغه لالچې سړې وو، هغه د حضرت علی رضی الله عنه او ال رسول صلی الله علیه وسلم نه په جنګ باندې خلافت واخستلو، صحابه ئې شهیدان کړل، او دویمه ډله وائی چه مونږ هغه په خطاء باندې ګڼړو، هغه ته

﴿۱﴾ (شرح فقه الاکبر لملاعلی قاری ص ۶۸ افضل الناس بعده علیه السلام الخلفاء الاربعه)

امیر وئیل نه دی پکار، دریمه ډله وائی چه هغه په جلیل القدر صحابه کرامو کښې وی دهغه توهین کول ګمراهی ده، یو بله څلورمه ډله وائی چه ټول صحابه کرام او خصوصاً ابوبکر صدیق او حضرت عمراوحضرت عثمان (هما) لالچیان وو ځکه چه د خلافت په لالچ د حضور ﷺ جنازه هم روستو کړې شوې وه، ددې څلوار واړو ډلو متعلق څه حکم دې مدلل او عام پوهې والا جواب اولیکئ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: غریب الله صاحب صوابی مردان ۱۹۸۵ء۲۱/۱۱/۱۰

**الجواب:** الله تعالی په سورة حدید کښې د صحابه کرام رضی الله عنهم دوه قسمونه بیان کړی دی یو هغه چه د فتح مکې نه مخکښې مسلمانان شوی وو او د الله په لار کښې ئې مالونه خرچ کړل او جهاد ئې اوکړو، دویم قسم هغه دی چه روستو مسلمانان شول بیا فرمائی، وکلا وعدالله الحسنی ﴿۱﴾ یعنې د دواړو ډلو سره الله تعالی د نیکئ وعده اوکړه، اوفرمائی اولئک عنها مبعدون ﴿۲﴾ هغوی د جهنم نه لرې کړې شول لا یسمعون حسیسها ﴿۳﴾ دهغې یو کمزوری غوندې اواز به هم نه اوری وهم فی ما اشتهت انفسهم خالدون، لا یحزنهم الفزع الاکبر. ﴿۴﴾ دقیامت دهغه سخته ویره به ئې غمژن نکړی، وتتلقهم الملائکة ﴿۵﴾ فرشتې به ئې استقبال کوی. هذا یومکم الذی کنتم توعدون ﴿۶﴾ چه هم دا ستاسو هغه ورځ ده چه تاسو سره ئې وعده شوې وه، د رسول الله ﷺ دهر صحابی داسې شان الله تعالی ښودلې دې نو څوک چه په یو صحابی پسې بدې ردې وائی هغه د الله تعالی چه قهارذات دې تکذیب کوی او د هغوی په بعضې معاملات چه اکثر د هغې قیصې دروغ دی د الله تعالی د وینا په مقابله کښې پیش کوی د اسلام کارنه دې الله تعالی په دې ایت کښې د هغې خله هم بنده کړیده والله بما تعملون خبیر. او الله تعالی ته ښه معلوم دی چه تاسو څه کوئ اوپه (باهم) کښې ئې ټولو صحابه کرامو سره دخیر وعده کړیده که ددې نه پس هم څوک څه وائی نو خپل سر دې خوری او جهنم ته به ځی.
علامه شهاب الدین خفاجی نسیم الریاض شرح شفا للقاضی عیاض کښې فرمائی ومن یکون یطعن فی معاویة فذالک کلب من کلاب الهاویة. څوک چه په

﴿۱﴾ (پاره: ۲۷ سورة الحدید آیت: ۱۰)
﴿۲﴾ (پاره: ۱۷ سورة الانبیاء آیت: ۱۰۱)
﴿۳﴾ (پاره: ۱۷ سورة الانبیاء آیت: ۱۰۲)
﴿۴﴾ (پاره: ۱۷ سورة الانبیاء آیت: ۱۰۳)
﴿۵﴾ ایضا
﴿۶﴾ ایضا



امیر معاویه رضی الله عنه باندې لعن طعن کوی هغه د جهنم د سپو نه یو سپې دې، په دې ډلو کښې د دریمې ډلې قول صحیح دې، اولنئ او دویمه ډله دروغژن دی، او څلورمه ډله د ټولونه خبیثه او د رافضیانو شیعه ګانو ډله ده، د امام مقررول د هرکار نه اهم دی، ﴿۱﴾ د دنیا او دین ټول انتظامات ددې سره متعلق دی او که د حضور ﷺ جنازه مبارکه ترقیامته پورې پرته وې نو هم څه خلل پکښې نه راتللو د پیغمبرانو بدنونه نه خرابیږی، حضرت سلیمان علیه السلام د مرګ نه پس یو کال پورې ولاړ وو، یو کال پس دفن شو او جنازه مبارکه د ام المومنین حضرت عائشه رضی الله عنها په حجره کښې وه کوم ځائ کښې چه ئې اوس مزار دې ددینه بهرته وړل پکښې نه وو، ورکوټې کمره وه، او ټولو صحابه کرامو دا جنازه کول یویو جماعت به راتللو جنازه به ئې کوله او بهربه تلل دویم جماعت به راتللو تراخره داسې اوشو، درې ورځو پورې دا سلسله جاری وه د ابلیس په نزد که دا د لالچ سبب وې نو د ټولو نه سخت ترین الزام به په امیرالمومنین حضرت علی رضی الله عنه باندې وو او هغه لالچی نه وو، دا اعتراض ملعون دې او جنازه مبارکه نه دفن کول هم مصلحت وو، وهو الموفق

### د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ورځو مناوهلو مطالبې وغیره

**سوال:** (۱) د صحابه کرامو رضی الله عنهم ورځې دې په سرکاری طریقې سره مناؤ کړې شی او حکومت دې د هغوی سیرت ښور کړی چه خلق د صحابه کرامو رضی الله عنهم د عظمت نه خبر شی؟ (۲) د صحابه کرامو رضی الله عنهم د دشمنانو په مقابله کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم ورځې مناوول پکار دی چه مسلمانان د باطلو عقیدو نه بچ شی؟ (۳) د شیعه ګانو د تعزیر بردار (جلوس) په مقابله کښې د صحابؤ په یاد کښې جلوس ویستل پکار دی چه د شیعه ګانو زور کم شی، د شریعت په رنړا سره دا اقدامات کول څنګه دی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمد عبدالقادر ډیروی درسګاه نیازیه بلاک سی ډیره غازی خان ۱۳ رمضان ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** (۱) دا موقف نه مطلوب شرعی دې او نه ممنوع شرعی دې، البته د مصلحت نه خالی نه دې. (۲) (۳) لنا العزی ولاعزی لکم په جواب کښې لنا مولی ولامولی لکم ﴿۲﴾ او سودالله وجهه په مقابله کښې کرم الله وجهه نعره لګول د بیدار مناظرینو ډیر ښه اقدام دې. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامه عبدالعزیز الفرهاری ثم الاجماع علی ان نصب الامام واجب ارادا جماع اهل السنة و الشیعة و المعتزلة لا اهل السنة فقط ...... و انما الخلاف فی انه یجب علی الله تعالی ...... او علی الخلق ...... انه یجب لقوله علیه الصلاة والسلام من مات و لم یعرف امام زمانه فقد مات میتة جاهلیة. (النبراس شرح شرح العقائد ص ۳۱۰ نصب الامام واجب)
﴿۲﴾ رواه صحیح البخاری ص ۵۷۹ جلد ۲ باب غزوة احد)

## قال الله تعالیٰ

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

اَطِيْعُوا اللّٰهَ

وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ

وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ ۚ

(الآية)





# باب

# ما يتعلق

# بالائمة

# والعلماء

# باب ما یتعلق بالائمة والعلماء

## د شاه اسماعیل شهید ولی الله، عالم دین او مجاهد فی سبیل الله کیدل د انکار قابل نه دی

**سوال:** علمائې دین دې سوال باره کښې څه فرمائی چه مولوی محمد اسماعیل شهید چه د بالاکوټ په مقام کښې د شیعه ګانو سره په مقابله کښې شهید شوې وو ایا دې واقعی عالم دین او د الله تعالی ولی وو؟ او دده (تقویة الایمان) لیکلې شوې څنګه کتاب دې، براه کرم جواب راکړئ او صحیح حالاتونه مو خبردار کړئ.

المستفتی: رضوان الله بنک سکوائر روډ باړه بازار راولپنډی ۴ محرم ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د حضرت شاه محمد اسماعیل شهید رحمة الله علیه عالم باعمل او کامل ولی کیدل او مجاهد فی سبیل الله کیدل ناقابل انکار دی او ددې کارونو دپاره حنفیت او شافعیت شرط نه دې او ما ډیره موده مخکښې (تقویة الایمان) مطالعه کړې وو، لهذا څه ددې کتاب د اجمالی صحت او صواب کیدلونه علاوه د نور تفصیلاتو دبیان نه قاصر یم (۱) وهو الموفق

## د ابن تیمیه په باره کښې د ابن بطوطه تاریخی واقعه

**سوال:** په یو کتاب (سفرنامه ابن بطوطه حنبلی) کښې ابن بطوطه په سفرنامه کښې لیکی چه یو عالم تقی الدین ابن تیمیه په دمشق کښې وو لیکن د هغه په دماغو کښې څه فرق وو هغه یوه ورځ تقریر اوکړو نورو فقهاء رد کړو، او هغوی د سلطان خواله لاړل ابن تیمیه ئې یو څو کالو پورې قید کړو، د قید په زمانه کښې هغه په شپیتو (۲۰) جلدونو کښې د قران پاک تفسیر اولیکلو، بیا خلاص شو نو داسې بیان ئې بیا ورکړو او ابن بطوطه په دمشق کښې د ابن تیمیه بیان واوریدلو، الله تعالی د اسمان نه ځمونږ دنیا ته داسې راکوزیږی

(۱) علامه رشید احمد ګنګوهی رحمة الله علیه فرمائیلی دی د اسماعیل شهید تالیف تقویة الایمان ډیرښه کتاب دې او د ایمان مضبوطیا او اصلاح کوی، او د قرآن او حدیث پوره مطلب پکښې دې، ددې مؤلف شاه اسماعیل شهید یو مقبول بنده وو، هغه ته چه څوک کافر وائی هغه پخپله شیطان او د حق تعالیٰ ملعون دې. (فتاوی رشیدیه کتاب الایمان والکفر)



لکه څه چه جسمانی طور سره لاندې راکوزیږم، دائې اووئیل او د منبر نه یوه پوړئ لاندې راکوزشو، یو مالکی عالم په دې باندې اعتراض اوکړو خلقو هغه مالکی عالم اووهلو، خلقو اونیولو او حنبلی قاضی خواله ئې بوتلو هغه ئې قید کړو نورو خلقو مسلمان قاضی ته رپورټ اوکړو نو سلطان ترمرګه پورې ابن تیمیه نظر بند کړو.. نو ایا ابن تیمیه غوندې عالم په تقریر کښې داسې خبرې کولې شی کومې چه ده ته منسوب شوې دی؟ ایا داسې خبرې چرته بل ځائ کښې منقول دی؟ د ابن تیمیه ددې تقریر په صداقت او بهتان باندې به څنګه سړې پوهه شی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمد اختر 973G اسلام اباد... ۱۴ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په تاریخ کښې لیکلې شوی واقعات دغور قابلې وی، کله کله ورسره سندونه نه وی ذکر شوی او کله داوی چه سندونه ئې معلول او ضعیف وی، او کله دا د حکومت په چاپلوسی او سیاسی اغراضو باندې مشتمل وی نو بس د تاریخ (کتابونو په وجه باندې د چا په باره کښې نیک ګمانه او بدګمانه کیدل د یقین په مرتبه کښې قابل اعتراض دی. بهرحال ابن تیمیه نورو علماؤ هم د (مجسمه) ډلې نه شمار کړی دی، فلیراجع الی شروح شرح العقائد النسفیه. او ددې واقعې په وجه باندې د مجسمه نه شمار کول صحیح نه دی.

**اما اولا فلعدم ثبوتها بسند صالح و اما ثانیا فلانه قائل بعدم تشبیه ای الله تعالیٰ جسم لا کسائر الاجسام فلعله اراد انه ینزل لا کنزول الاجسام و بالجملة انه اراد النزول معلول و معهود و عرض علی من قال ان المراد منه نزول الملک و الرحمة.**

**نوټ:** د ابن تیمیه نه ډیر داسې اصول او فروع نقل دی چه هغه مردود دی.

## د ادم علیه السلام د پیدائش موده

**سوال:** حضرت ادم علیه السلام د نن نه څومره موده مخکښې تیر شوې دې د اثار قدیمه ماهرین د ډانچو او هډوکو نه ثابتوی چه د انسان تخلیق څو لاکهه کاله مخکښې شوې دې ایا دا صحیح دی؟ که د ادم علیه السلام د پیدا کیدلو لس زره کاله شوی وی نو دا هډوکی د کومې زمانې پورې صحیح کیدې شی؟ ایا د مرزا غلام احمد قادیانی د قول مطابق د ادم علیه السلام نه علاوه بل ادم تیر شوې دې او که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: قاری احمد سعید جامع مسجد ستی بنک مری ۱۴ رمضان ۱۴۰۵ هجری

**الجواب:** حضرت ادم علیه السلام چه اولني انسان او اولني پیغمبر دي دهغه متعلق هم څه نص نشته چه څومره موده مخکښي تیر شوي دي او نه د موجوده زماني د محققینو اندازه منل څۀ اصولی خبره ده اود اسلام د دشمنانو د پروپیګنډي نه متاثر کیدل هم د مسلمانانو شان نه دي نو مونږ ته د قادیانی او پرویزی د متعدد ادم کیدلو د رائي ضرورت نشته اونه ددغي محققینو په قول او خیال باندي چپ کیدل څه نقصان کوی. وهو الموفق

## د امام ابوحنیفه د قصیدي ماخذ او امام ابوحنیفه ته نسبت

**سوال:** مفتیان عظام دي باره کښي څه فرمائی چه د مولانا عبد الحکیم ولد مولانا عبد الحئ لکهنوی دنور الایمان کتاب په اخر کښي امام ابوحنیفه رحمه الله د نبی علیه السلام په شان کښي یوه مفصله قصیده لیکلي ده چه د هغي د اشعار شمار ۵۳ دي.

اولني شعر: یا سید السادات جئتک قاصدا...... ارجورضاک واحتمی بحماک

آخری شعر: وهی صحابتک الکرام جمیعهم.......و التابعین و کل من والاک

او د(السیف المبیر علی اتباع ملابنج بیر لحمدالله الداجوی په اخیره کښي هم دا قصیده لیکلي شوي ده لیکن هغوی دا حواله نه ده ورکړي چه ددي قصیدي ماخذ څه دي؟ مهرباني اوکړئ دا اوښایئ چه یقیناً دا د امام ابو حنیفه رحمه الله قصیده ده اود کوم کتاب نه نقل شوي ده؟ بینوا وتوجروا

المستفتی :سید غلام قیس نعمانی مرهنی رسالپور نوشهره..۱۹۷۹ء۱۰۱۵۱

**الجواب:** ددي قصیدي ماخذ ماته معلوم نه دي او ماخذ معلومول ضروری هم نه دي ځکه چه دا قصیده په چا باندي حجت نه دي او په دي قصیده کښي د حقیقت نه څه مخالف څیز نشته نه د نجدیت مخالف څیزونه په کښي شته. لهذا امام الائمه طرف ته ئي نسبت کول څه لري خبره نه ده.

## علماء دیوبند او د ابن تیمیه تفردات

**سوال:** ایا ابن تیمیه واقعی د الله تعالی د جسمیت او د عرش د قدیم والی قائل دي؟ که نه وی نو فیض الباری جلد څلورم کښي الله تعالی ته د جهت نسبت کول او د عرش د قدیم والی به د ابن تیمیه په باره کښي څه مفهوم وی، حالانکه اکثر علمائي دیوبند او ملا علی قاری رحمه الله په جمع الوسائل



کښي د هغه تعریف کوی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی :عبد الباری حقانی بلوچستان شریک دوره حدیث دار العلوم حقانیه اکوړه ختک..۱۹۸۵ء۱۲۱۱۱۱

**الجواب:** ملا علی قاری او د دیوبند ټول اکابرین د ابن تیمیه په تفرداتو باندي رد کوی او د هغه په عالم او حافظ کیدلو کښي دڅا شک نشته، ابن تیمیه په الله تعالی باندي د جسم اطلاق جائز ګرځولي دي البته د لاکسائر الاجسام په تعبیر سره ئي څه سهاره اخستلي ده، او د عرش متعلق ئي دا وئیلي دی کان الله ولم یکن شئ وکان عرشه علی الماء،، اوپه لم یکن شئ کښي عرش داخل نه دي ګڼي نو هغه به هم مخلوق وی، والتفصیل فی فتاواه فلیراجع الیها، وهو الموفق

## د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت شوی احادیث او مسند امام اعظم

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی، چه زید وائی چه امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله ته د دولس دیارلس حدیثونو نه زیات علم نه وو، ایا واقعتاً هم داسي خبره ده؟ د امام صاحب داسي توهین کول د کومو خلقو عادت دي؟ د داسي سړي پسي دحنفی مسلمان مونځ صحیح دي که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی :فضل الرحمن جي بلاک رسالپور نوشهره... ۱۹۷۲ء۲۳۱۲۱

**الجواب:** د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله نه صرف په ظاهر الروایة کښي په سلګونو مسئلي روایت شوی دی، چه په هغي کښي د حدیث نه استدلال کړئ شوي دي او د مخالف د حدیث جواب ئي ورکړي دي دا رنګي د امام ابوحنیفه رحمه الله مسند هم موجود دي(۱)

---

(۱) و اما تالیفاته فکثیرة کما یشیر الیه ما رواه الحافظ الذهبی عن عبدالعزیز الدراوردی . کان مالک ینظر فی کتب ابی حنیفة و ینتفع بها منها کتاب الاثار . قال السیوطی فی تبیض الصحیفة انه اول کتاب دون علی الابواب الفقهیة و هکذا ذکر الموفق المکی فی مناقب ابی حنیفة و ذکر ایضا انتخب ابو حنیفة الاثار من اربعین الف حدیث انتهی و له نسخ نسخة الامام ابی یوسف و نسخة الامام محمد و نسخة الامام زفر و فی مقدمة عمدة الرعایة و اما تصانیف ابی حنیفة فذکروا منها الفقه الاکبر و کتاب الوصیة و کتاب العالم و المتعلم و غیر ذلک انتهی و اما مسند ابی حنیفة فلیس من تالیفاته بل هو مروياته التی جمعها المحدثون مثل ابی نعیم الاصفهانی و الحافظ ابن عساکر و الحافظ ابن منده و غیرهم .بلغ عدده الی عشرین مسندا ثم جمع العلامة الخوارزمی کلها فی تالیف واحد سماه جامع مسانید الامام الاعظم ...... وما نقله ابن خلدون عن بعض الناس ان ابا حنیفة لم یحفظ الا سبعة عشر حدیثا . قلنا هذا افتراء بلا امتراء کیف و انه مجتهد و فاقا و تلمذ علی اربعة الاف شیوخ و الف کتاب الاثار و انتخبه من اربعین الف حدیث و جمعت مروياته فی المسانید و تمسک بالاحادیث و اجاب عن احادیث الخصم فافهم و حقیقة الامر انه کان الغالب علیه الاستنباط و فقه القرآن و الحدیث ولا یسرد الاحادیث کسرد اهل الحدیث فلم یرو عنه من کان طالب الالفاظ دون الفقه . (البشری لارباب الفتوی ص ۲۸ ، ۳۱)

نو ددې باجود د زید خبره څنګه صحیح کیدې شي، داسړې غالباً اهل حدیث معلومیږي کـه ډیـر د حدنـه تجاوز کونکې نـه وي نـو مـونږ ورپسې کیږو، وهو الموفق

**د سیدعلی ترمذی پیر بابا رحمه الله د قبر حرکت کول د نظر دهوکه ده**

**سوال:** اوریدلي موډی چه د پیر باباسید علی ترمذی رحمه الله قبرحرکت کوی بالکل داسې لکه د سړی خیټه چه د ساه اخستلو په وخت کښې بره لاندې کیږي، څوک وائی چه دلته دا د زنا په وجه باندې کیږی څوک وائی دې کښې بارود دی څوک وائی دا دقیامت علامه ده، تاسو دشرعی حکم نه مونږ خبر کړئ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: سیف الرحمن هائی سکول ډګرسوات...۱۹۷۲ء/۸/۲۳

**الجواب:** زه وائم چه دا قبر هیڅ حرکت نه کوی کیدې شي چا د نظر د دهوکې د وجې نه داسې محسوس کړې وی، فقط.

**د سطیح واقعه په هدایه والنهایه کښې شته**

**سوال:** د سطیح څه مطلب دې یو عالم وئیلی دی چه سطیح یو ساحراو نجومی سړې وو او د ټولو نجومیانو استاذ وو یا هغه صرف یوه ټکره وه؟ بالکل هډوکې پکښې نه وو څکه چه هغه د ښځو د میل میلاپ نه پیدا شوې وو نو ایا د دوه ښځو د ملاویدلو نه بچې پیدا کیږی؟ ددې قیصې حقیقت څه دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: بشیراحمد کمال پارهوتی مردان...۱۹۷۵ء/۸/۲۴

**الجواب:** محترم المقام.. د سطیح واقعه علامه ابن کثیر رحمه الله په البدایة والنهایة کښې لیکلې ده، لیکن د کتاب د عدم موجودګئ په وجه باندې څه د وضاحت نه قاصر یم، والله اعلم

**د امام ابوحنیفه رحمه الله په رمضان کښې ۶۲ ځلې ختم قران کول**

**سوال:** ایا واقعی به امام ابو حنیفه رحمه الله په رمضان کښې ۶۱ ځلې ختم قران کولو؟ که صحیح وی نو دلیل اوښایئ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حافظ عبدالمؤمن جانک قاضی اباد صوابی مردان ۲ذی قعده ۱۴۰۲هجری



**الجواب:** ابن حجر مکی په (الخیرات الحسان) کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله د عبادت په باب کښې ۶۲ ځلې د قران د ختم کولو ذکر کړې دې (۱) فلیراجع

**امام ابوحنیفه رحمه الله او د حدیثو روایت کول**

**سوال:** (۱) په صحاح سته کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه احادیث ولې نه دی نقل شوی؟ حال دادې چه د نورو امامانو نه حدیثونه نقل شوی دی؟ (۲) د امام ابوحنیفه رحمه الله څرنګه صحابی سره ملاقات شوې دې که نه؟ وضاحت اوکړئ.

المستفتی: حافظ نوراحمد الدین توپی مردان...۱۹۸۲ء/۱۱/۲۸

**الجواب:** (۱) امام ابوحنیفه رحمه الله به د حدیثو الفاظ رسول کم کول اکثر به ئې استنباط او استخراج کولو (۲) ددې وجې نه د الفاظ حدیث روایت کونکی کم دی، د سرد الحدیث، مثال داسې دې چه یو سیر سرۀ زر پرله پسې په هدیه کښې ورکړې، او د استنباط مثال دادې چه سړې د سیر سروزرو نه ګړئ (ګهرئ) جوړې کړی او هدیه کښې ئې ورکړی،

(۲) امام ابوحنیفه رحمه الله حضرت انس رضی الله عنه ډیرځله لیدلې دې (۳) وهو الموفق

**د ابن تیمیه او ابن قیم متعلق د اعتدال رویه**

**سوال:** بعضې کتابونو لکه صاوی وغیره په ابن تیمیه او ابن قیم باندې سخت رد کړې دې او بعضې کتابونو لکه فیض الباری وغیره د هغوی تعریف کړې دې نو د دوی متعلق څه رویه اختیارول پکار دی، تفصیل بیان کړئ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمدعلی نتهیاسنګهه سټریټ مسجد روډ کوئټه...۱۹۸۴ء/۵/۲۱

**الجواب:** د ابن تیمیه متعلق اعدل الاقوال هغه دی کوم چه امام ذهبی په (تذکره) کښې ذکرکړې دی. ملخصه انه حافظ عالم بارع ماهر فی علم القران والحدیث بلغ رتبة الاجتهاد لاکن لااصولا ولافروعا تفردها وخالفناه فیها، وهو الموفق.

(۱) علامه ذهبی رحمه الله اوفرمائیل چه دشپې تهجدو دپاره اودریدل او عبادت کول ددوی نه تواترسره ثابت دی...په یو یورکعت کښې به ئې یوقرآن شریف ختمولو. کوم ځائې چه دوی وفات شول هلته ئې اویا زره ځل قرآن شریف ختم کړې وو... امام ابو یوسف رحمه الله اوفرمائیل چه هره شپه ورځ به ئې یوقرآن ختمولو. اود رمضان نه ترد اخترورځې پورې به ئې دوه شپیته ختمونه کول (جواهرالبیان ترجمه الخیرات الحسان لابن حجرمکی ص ۸۱، ۸۲، الفصل الرابع عشر ........

(باقی حاشیه په راروانه صفحه)

**مولانا نصیر الدین غورغشتوی یوصالح عالم دین وو**

**سوال:** د یو جماعت امام صاحب دي چه کله ئي د شیخ الحدیث حضرت مولانا نصیر الدین غورغشتوی د وفات خبر واوریدلو نو وئیل ئي ډیر ښه اوشو چه یو بدعتي مړشو، ایا واقعي مولانا صاحب بدعتي وو، که نه وی نو یو داسي مولوی چه د دیوبندیت دعوی کوی او یو داسي لوئي عالم دین ته بدعتي وائي نو مونږ ورپسي صحیح دي که نه؟

المستفتي: حکیم عبد الرزاق هری پورهزاره...۲۹، ۳، ۱۹۱ء

**الجواب:** دا امام نیکانو ته د کنځلو په وجه باندي فاسق دي ﴿۱﴾ ده پسي اقتدا کول مکروه تحریمی ده.

**مولاناغلام الله خان صاحب دیوبندی وو او د مبتدعینو د پاره سیف صارم وو**

**سوال:** څمونږ کلی ته یو مولانا د تقریر کولو د پاره راغي هغه وئیل ما اوریدلی دی چه ددي کلی څه خلق د پنډي مولانا غلام الله خان د تقریر د پاره راغواړی حال دا چه د مولانا غلام الله خان عقیده باطله ده هغه یو طاغوتی سړی دي هغه واجب القتل دي که هغه دلته د تقریر د پاره راشی نو په ګولئ ویشتل پکار دی هغه ته خو صحیح قران لوستل هم نه ورځی هغه د خر د اواز په شان قران لولی؟ ددي واعظ د بیان متعلق وضاحت مطلوب دي؟ بینوا وتوجروا

المستفتي :مولانا غلام یحیٰ پنډی ګهیپ...۱۲۲ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** د مولانا غلام الله خان صاحب عقائد د علمائي دیوبند (اهل سنت

(بقیه حاشیه) ﴿۲﴾ قال ابن عابدين و الظاهر ان سبب عدم سماعه ممن ادركه من الصحابة انه اول امره اشتغل با لاكتساب حتى ارشده الشعبى لما رأى من با هر نجا بته الى الاشتغال با لعلم و لا يسع من له ادنى المام يعلم الحديث خلاف ما ذكرته. ( ردالمحتار ص ۴۷ جلد ۱ مقدمه مطلب فى ما اختلف فيه من رواية الامام عن بعض الصحابه )

﴿۳﴾ قال الحافظ ابن كثير انه ادرك عصر الصحابة ورای انس بن مالک قیل وغیره و ذكر بعضهم انه روى عن سبعة من الصحابة .( البداية و النهاية ص ۱۳۷ جلد ۱۰ الامام ابو حنيفه )

[حاشیه صفحه هذا]﴿۱﴾ مولانا نصیر الدین غورغشتوی مضبوط حنفی او دیوبندی عالم وو په صوبه سرحد کښي د علم حدیث رومبي استاذ وو، په دي وجه ورته د صوبه سرحد او پښتون قوم شاه ولي الله وئیلي شی. ډیر متقی، صالح، د خدائي مقرب بزرګ او د سنتو یوه نمونه وه، د ظاهری او باطنی علوموسمندر وو، د مولانا قمر الدین او مولانا حسین علی میاں والی په قابلو شاګردانو کښي وو. (ازمرتب)



والجماعت) موافق دی، او بهرحال هغه د مبتدعینو د پاره سیف صارم دي هغه ته، خر، وئیل یا واجب القتل، ګرځول پخپله واجب التعزیر دي، پس دا مقرر او واعظ چرته بدعتي دي دده تقریر اوریدل حرام دی.فقط

**مولانا حمدالله ډاګئ اهل السنت والجماعت کښي دي**

**سوال:** بعضي خلق مولانا حمد الله جان صاحب ته د شرک او بدعت نسبت کوی تاسو وضاحت اوکړئ چه ایا واقعي هغه مشرک دي؟ بینوا وتوجروا

المستفتي:عبد الرحمن جامع مسجد مکیه فقیراباد پشاور۱۱۹ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** مولانا حمد الله جان ډاګئ صاحب د سلفیانو او مخالفینو ډلي په نزد باندي مشرک دي او دیوبندیانو په نزد مسلمان او اهل السنت والجماعت کښي دي.

**د مولانا حسین علی او مولانا غلام الله خان صاحب نه دوره تفسیر کول**

**سوال:** مولانا حسین علی صاحب او مولانا غلام الله خان صاحب دیوبندیان دی که نه؟ او د هغوی نه دوره تفسیر کول پکار دی که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتي :قائم دین ډهوک زمان میاں والی...۱۹۷۸، ۷، ۲۳

**الجواب:** مولانا حسین علی رحمه الله او مولانا غلام الله خان صاحب حنفی دیوبندی مسلک والا علمائي کرام دی، که په پنجاب کښي دا حضرات نه وي نو عوامو به شرک او بدعات اسلام او حنفیت ګرځولي وو. وهو الموفق

**مولانا رشید احمد گنګوهی. مولانا محمد الیاس. مولانا تهانوی رحمهم الله پاخه مسلمانان دی او اهل سنت والجماعت دی**

**سوال:** یو کتاب وو تبلیغی جماعت زلزله او مناظره بریلی، چه راشد القادری لیکلي دي هغي کښي دی چه د تبلیغی جماعت مشران مولانا الیاس، مولانا رشید احمد ګنګوهی او مولانا تهانوی رحمهم الله د حضور ﷺ په شان نازیبا الفاظ استعمال کړی دی نو دا بدعقیده دی، او په دوی باندي د کفر فتوی ده، ددي متعلق ستاسو حضراتو څه خیال دي؟ بینوا وتوجروا

المستفتي :اهالیان اسپنړدیر...۱۹۷۵، ۱۰، ۱۱

**الجواب:** مولانا رشید احمد گنگوهی، مولانا محمد الیاس او مولانا تهانوی رحمهم الله پاخه مسلمانان دی او ددین درد لرلو والا اهل السنت والجماعت دی د اسلام په داسې عظیم داعیانو باندې د کفر فتوی لګولو والا جاهل یا متجاهل دې.

## مفتی محمود او غلام غوث هزاروی وغیره علمائې کرامو ته کنځل کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو کلی کښې بعضې خلق د مولانامفتی محمود صاحب او مولانا غلام غوث هزاروی او د جمیعت علمائې اسلام نورو اکابرینو پسې کنځلې او بدې وینا ګانې کوی او ډیرې ګنده خبرې ورپسې کوی نو د داسې خلقو شرعی حکم څه دې؟ بینواوتوجروا

المستفتی: رحمان الدین مهمندی ١٢\١ صفر ١٣٩٢ هجری

**الجواب:** د مسلمان ګستاخی کول فسق دې، لحدیث رواه مسلم: سباب المسلم فسوق ﴿١﴾ او د علماؤ په ګستاخئ کښې د کفر خطره ده چه بنیادئې ذاتیات نه وی فی الهندیه ویخاف علیه الکفر اذا شتم عالما اوفقیها من غیر سبب.(٢) وهوالموفق

## د مولانا محمد طاهر پنج پیری سیاسی مسلک

**سوال:** د مولانا محمد طاهر پینج پیری ضلع مردان صوبه سرحد څه عقیده ده، او هغه د کوم مذهب سره تعلق لری او دده مسلک د علمائې دیوبند سره موافق دې که مخالف او د جمیعت علمائې اسلام سره ئې اتحاد شته که نه؟ که نه وی نو د کوم جمیعت سره تعلق لری؟ بینواوتوجروا

المستفتی: محمد عبدالغفور نرول دروازه ډی ائی خان. ١٩٧٢ء\١١\١

**الجواب:** مولوی محمد طاهر د حنفیت په لباس کښې د نجدیت اشاعت کوی د جمیعت سره ئې د مودودیانو په شان افتراق دې. وهوالموفق

﴿١﴾ (صحیح البخاری ص ١٢ جلد ٢ کتاب الایمان باب خوف المؤمن من ان یحبط عمله و هو لایشعر)

﴿٢﴾ (فتاوی عالمگیری ص ٢٧٠ جلد ٢ و منها ما یتعلق با لعلم والعلماء مطلب فی موجبات الکفر)



# باب ما یتعلق بالافلاک

...

## قال الله تعالی

اَللّٰهُ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۚ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِىَ فِى الْبَحْرِ بِاَمْرِهٖ ۚ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْاَنْهٰرَ ﴿۳۲﴾ وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ ۚ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۚ ﴿۳۳﴾ (الآیة)

....



# باب ما یتعلق بالافلاک

## سپوږمۍ ته ختل د قرانی نصوصو مخالف نه دی

**سوال**: علمائې کرام په لاندینۍ مسئله کښې څه فرمائی!

حامداً ومصلیاً ومسلماً: د قران کریم د ډیرو ایتونونه په صراحت سره معلومه ده چه سپوږمۍ په دې اولنی اسمان کښې ده لکه الله تعالی په سورة فرقان کښې فرمائی: تبارک الذی جعل فی السماء بروجا وجعل فیها سراجا وقمرا منیرا. وسورة یس: وکل فی فلک یسبحون. وسورة نوح: وجعل القمر فیهن نورا. وسورة یونس: والقمر نورا. دا قسمه ډیر قرانی ایتونه صریح دلالت کوی چه سپوږمۍ په اسمان کښې ده په تفسیرصاوی کښې دی. اعلم ان القمر فی سماء الدنیا اتفاقا والشمس فی الرابعة ووجهها مما یلی السماء وقفا مهما مما یلی الارض. (تفسیرصاوی برجلالین) مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله په خپل تفسیر کښې لیکی چه د ټولو قرانی نصوصونه معلومه ده چه سپوږمۍ په دې دنیا والا اسمان کښې ده ځکه چه د (فی) حرف په لغت عربی او اصولو او معانی کښې د (ظرفیت) دپاره مقرره دی نو ترڅوپورې د قران او صحیح حدیث نه قطعی دلیل پیدا نشی چه سپوږمۍ په زمکه کښې ده تر هغې پورې ځمونږ ایمان او عمل دې چه سپوږمۍ په اسمان کښې ده په زمکه کښې نشته، په تفسیر مدارک کښې د حضرت عبدالله بن عباس او عبدالله بن عمر رضی الله عنهم نه روایات دی چه سپوږمۍ په اسمانی دنیا کښې ده او عام مفسرین هم د فلک، ترجمه په اسمان سره کوی، دا یو څو دلیلونه مود نمونې دپاره اولیکل کیدې شی د شکوکو لرې کیدو دپاره کافی شی. بله مسئله دا ده چه انسی او جنی شیطانان د اسمان ختلو نه بند دی، او په دې خبره باندې قران ګواه دې، نو که د قران پاک د دلیلونو او د مفسرینو او صحابه کرامو د اقوالو د وضاحت نه پس هم یو سړې اووایی چه دامریکې عیسایان سپوږمۍ ته ختلې دې یا ختلې شی، نو دغه سړې خو به خالص جاهل او ګمراه وی بلکه ظاهراً د قران پاک د نصوصونه منکر معلومیږی او دقران پاک د ایتونونه انکار بدبختی ده او د همیشه عذاب باعث دې. والسلام

المستفتی: ماسټر عبدالکریم شبقدر فورټ چارسده پشاور... ۱۹۲۹ء ۱۹۱۸۱

**الجواب**: واضحه دي وی چه په قران او حدیث کښې لفظ د (فی) استعمال شوې چه د ظرفیت دپاره دي برابره خبره ده چه دا ظرفیت واقعی او یقینی وی یا صرف ظاهری په نظر سره وی لکه چه په. وجدها تغرب فی عین حمئة ﴿۱﴾ کښې راغلي دی، او دا خبره چه سپوږمۍ په اسمان اول کښې دننه ده دقران او حدیث نه ثابته نه ده او نه په دې خبره باندې څه دلیل شته دې صرح به العلامة الالوسی فی تفسیره (ص۱۴۵ جلد۲۸) بلکه د یونان د فلسفیانو نظریه ده چه د تفسیر په کتابونو کښې پرې اعتماد کړې شوې دې او په دې باندې د علماؤ اتفاق هم نشته ځکه چه د اکثرو مفسرینو په نزد ستوری او سپوږمۍ د اسمان نه لاندې دی. صرح به العلامة الالوسی فی تفسیرسورة انبیاء وسورة یس) او دا حقیقت د قران او حدیث نه ښکاره دې چه کافران په اسمان کښې داخلیدې نشی قال الله تعالی لاتفتح لهم ابواب السماء ﴿۲﴾ لهذا که سپوږمۍ په اسمان کښې دننه وی نو کافران ورته نشی ختلې او که د اسمان نه لاندې وی نو ختلې شی ورته، او که په معتمد ذریعو سره معلومه شوه چه امریکی کافران سپوږمۍ ته ختلی دی نو ددې خبرې منلو کښې ایمانی حکمت ته هیڅ نقصان نشته بلکه یونانی حکمت (د اسمان په وجود کښې دننه والی نظریه) به غلط ثابت شی، فقط.

## د نمر حرکت او د عرش د لاندې سجده کول

**سوال**: عن ابی ذر قال قال رسول الله ﷺ حین غربت الشمس اتدری این تذهب هذه قلت الله و رسو له اعلم قال فانها تذهب حتی تسجد تحت العرش فتستأذن فیؤذن لها و یو شک ان تسجد ولا تقبل منها و تستأذن ولا یؤذن لهاویقال لها ارجعی من حیث فتطلع من مغربهاوذلک قوله تعالیٰ والشمس تجری لمستقرلها قال مستقرها تحت العرش. متفق علیه (باب علامات الساعة مشکواة شریف)

د جدید نظریاتو مطابق نمر د زمکې په مقابله کښې ولاړ دې او دا نمر پریوتل او راختل د زمکې د ګردش په وجه باندې دی د نمر د ګردش په وجه نه دی، نمر د زمکې په نیم مخ هروخت پرقیږی او باقی باندې شپه وی یعنې نمر د ټولې زمکې نه په یو وخت کښې چرته هم نه غائبیږی، یعنې خامخا هم داسې

﴿۱﴾ (پاره :۱۶ سوره کهف رکوع :۲ آیت :۸۶)

﴿۲﴾ (پاره: ۸ سورةالاعراف رکوع :۱۲ آیت:۴۰)



همیشه د زمکې په څه حصو باندې راختلې ښکاری نو نمر خپل د عرش لاندې ځائ (مستقرتحت العرش) ته کله ځی او د قیامت نه مخکښې به د مغرب د طرفنه د راختلو څه صورت وی؟ جواب راکړئ د دواړو جهانونو ثوابونه حاصل کړئ.

المستفتی: نامعلوم

**الجواب**: د صحیح سائنس سره قران او حدیث چرته هم نشی متضاد کیدلې.

(الف) او ددې حدیث شریف د جدید نظریاتو سره هیڅ ټکراؤ نشته دحدیث شریف نه دنمر ګردش او چکر کیدې شی، چه حقیقی چکرمراد وی او کیدې شی چه صرف په نظر سره چکرمراد وی چه د عوامو په پوهه کښې په اسانئ سره راځی، نو نمر په راختلو او پریوتلو کښې دواړو احتمالات موجود دی یو د نمر د ګردش په وجه چه دا د زمکې د ساکن کیدو والا خلقو مسلک دې، او دویم د زمکې د محوری ګردش په وجه سره چه د زمکې د ګردش کولو والا خلقو مذهب دې ځکه چه دواړو طرفونو نه علامات او دلیلونه موجود دی﴿۱﴾ او جزم او یقین نشته.

(ب) او د سجدې نه مراد انقیاد او تابعداری ده او بعضې محققینو علماؤ لیکلی دی چه په نمر کښې روح موجود دې نو روح د سجدې دپاره بره ځی او دا ککوړې باقاعده په خپل کار کښې مشغول وی نو د کوم وطن چه نیم غروب متحقق وی دهغوی متعلق به دا وئیلې شی چه د نمر روح سجده کوی اګر چه هغه هروخت وی.﴿۲﴾

﴿۱﴾ سائنسدانانو مخکښې دا نظریه پیش کړې وه چه ستوری سپوږمۍ سیارې ګردش کوی او زمکه ولاړه (ساکن) ده، بیا ئې دا نظریه پیش کړه چه نمر ساکن دې او زمکه ګردش کوی، او اوس د جدید سائنسدانانو نظریه داده چه زمکه په خپل محور کښې ګردش کوی او نمر په خپل محور کښې، نو قران او حدیث چه څه وئیلې دی هغه د علام الغیوب د طرف نه دی او انسانی عقلونه روزانه خپل نظریات بدلوی نو په هغې باندې جزم او یقین نشی کیدلې او کومې خبرې چه د قران او حدیث نه مخالف او متصادم وی هغه به غلطې وی. (مرتب)

﴿۲﴾ قال العلامه بدرالدین العینی الارضون السبع فی ضرب المثال کقطب الرحی والعرش لعظم ذاتی کالرحی فاینما سجدت الشمس سجدت تحت العرش و ذلک مستقرها ...... السموات و الارضون و غیرهما من جمیع العالم تحت العرش فاذاسجدت الشمس فی ای مو ضع یصح ان یقال سجدت تحت العرش ...... لا ینکر ان یکون لها استقرار تحت العرش من حیث لا ندرکه و لا نشاهده و انما اخبر عن غیب فلا نکذبه و لا نکفره ان علمنا لا یحیط به . (عمدة القاری شرح صحیح البخاری ص ۱۱۹ جلد ۱۵ باب صفة الشمس و القمر بحسبان کتاب بدء الخلق)

(ج) اوددې دا صورت هم دې چه زمکه د څه وخت دپاره ساکنه شي (لکه د قدیم حکماؤ په نزد) اودا صورت هم دې چه الله تعالی د زمکې په وخت کښې انقلاب پیدا کړي، او د مشرقی حرکت په بدله کښې د څه وخت غربي حرکت شي، اوکوم الله تعالی چه زمکې ته مشرقی حرکت ورکولې شي هغه د څه وخت دپاره غربي حرکت هم ورکولې شي، فقط

## په (سپوږمئ پورې د انسان رسیدل او اسلام) باندې د څو اشکالاتو جوابونه

**سوال:** محترم جناب عالی! د رساله الحق، په شماره د جمادی الاولی کښې مې ستاسو مضمون (چاند تک انسان کی رسائی اور اسلام) اولوستلو نو په زړه کښې مې څه شبهات پیدا شو امید دې چه تاسو تسلی بخش جواب راکړئ، ابن عباس رضي الله عنه د یو ایت لاندې دا فرمائیلي دي چه (النجوم قنادیل بین السماء والارض الخ) اوکوم صاحب تفسیرپه ابن عباس رضي الله عنه باندې دا حواله ورکړې ده؟ ټول ستوري د اسمان نه لاندې دی او د جناب دا فرمائیل چه په ستورو سره د شیطانانو ویشتل هله کیدې شي چه دا ستوري د دنیادآسمان نه بهر وي او لاندې وي او په دې ستورو سره د دنیا زینت هم هله کیږي چه دا د اسمان نه لاندې وي او ددې نه مخکښې د لامحدوده پرواز لاندې دوي د سورة جن ایت فرمائیلي دي،انا لمسنا السماء فوجدناها ملئت حرساً شدیداً وشهباً..الخ، ګویا چه اسمان پورې ختل مخکښې او د پهره دارانو او ستورو معلومول روستو شوي دي یعني د اسمان سره لاسونه لږولو سره هغوی ته معلومه شوه چه دا اسمان د پهره دارانو او ستورونه ډک دې لکه چه دایت کریمه د ترکیب او د (وجدناها او ملئت) د ضمیر نه هم دا واضحه کیږي، اوکه ستوري د اسمان نه لاندې زوړند وي نو بیا به داسې وي چه د ستورو او پهره دارانو نه تیر شول او اسمان باندې ئي لاسونه اولګول او روستو بیا د ستورو او پهره دارانو پته اولګیدله، اوحال داچه دا معنی په یوه طریقه هم دایت سره جوړ او مطابقت نه لري، بلکه دایت ترکیب بدلیږي،

**كل فى فلك يسبحون . يعنى اليل والنهار والشمس والقمر كلهم و يسبحون- اى يدرون فى فلك السماء قاله ابن عباس وعكرمه والضحاك والحسن و قتاده و عطاء الخراسانی و قال عبد الرحمن بن زيدبن اسلم فى فلك بين السماء والارض رواه ابى حاتم وهو غريب جداً بل**



**منكر (ابن كثير) تبارک الذى جعل فى السماء بروجاً الخ فيها فى السماء قاله ابن عباس رضى الله عنه تنوير المقياس من تفسير ابن عباس رضى الله عنه**

د فیها نه ظاهراً ددې ستورو په اسمان کښې د ننه کیدل معلومیږي، د بیان القران اشرف علی تهانوی صاحب غوره قول هم دادې، امید دې چه تاسو صاحبان به د پوړتنی اشکالاتو کافی شافی جوابونه اولیکئ؟

**الجواب:** (۱) د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول په تفسیر روح المعانی صفحه ۵۰ جلد ۳۰ کښې شته (۲) په ستورو باندې د جناتو تیریدل او اسمان باندې لاسونه لګول څه محال کار نه دې ځکه چه په جناتو باندې شهاب ثاقب، هله مسلط کیږي چه کله هغوی استماع کوي، او د استماع دپاره بره خکته یوشان دی او اشکال به هله لازم کیدلو چه صرف په بره تللو کښې شهاب ثاقب مسلط کیدو، ﴿۲﴾ **والامر ليس كذلك كما لا يخفىٰ علىٰ من تفكر فى آيات القرآن حيث قال تعالىٰ فمن يستمع الآن يجد له شهاباً رصداً ﴿۱﴾ و قال تعالىٰ لا يسمعون الى الملأ الا علىٰ و يقذفون من كل جانب .﴿۲﴾**

(۳) فلک او سماء د یو څیز نوم دې یا د جدا جدا څیزونو نومونه دی په دې کښې مفسرین مختلف دی اکثر مفسرین په اختلاف باندې قائل دی (صرح به الالوسى فى تفسير روح المعانى ص ۴۰ جلد ۱۷ )

(۴) د (فی) کلمه د ظرفیت دپاره موضوع ده د (رکزیت) دپاره نه ده ﴿۳﴾ یعني په لغت او عرف کښې د (فی) کلمې مراد دا وی چه ددې مدخول د څه څیز ظرف دې او دا مراد نه وی چه یو څیز دده د مدخول په څخن او بدن کښې وردننه دې او ظرفیت هم کله په ښکاره او سرسری نظر کښې مراد وی کما فى وجدها تغرب فى عين حمئة ﴿۴﴾ دا رنګې کوم اسمان او زمکه چه په ګول شکل کښې تسلیم کړئ شی نو په دې تقدیر سره د زمکې نمر او سپوږمئ په،، فی السماء،، کیدلو کښې څه مشکل نشته، (۵) د راجح او غیر مرجوح دا ضابطه د نه منلو قابله ده، فقط

﴿۱﴾(پاره: ۲۹ سورة جن آیت: ۹) ﴿۲﴾(پاره: ۲۳ سورة صافات آیت: ۸)

﴿۳﴾ قال عبدالرحمان الجامی و فی للظرفية ای لظرفية مدخولها لشئی حقيقة نحوالماء فی الکوز او مجاز انحو النحاة فی الصدق وبمعنیٰ علیٰ قلیلاً . ( شرح جامی ص ۲۸ ۳ بیان الحروف الجر )

﴿۴﴾(پاره: ۱۶ سورة الکهف رکوع: ۲ آیت: ۸۶)

## د سپوږمۍ پورې د انسان رسیدل. د څو شبهاتو ازاله

د سائنس په دنیا کښې د خلائی فتوحاتو شهرت چه د عوامو په ذهنونو کښې کوم شور جوړ کړې دې، او د روس دعوی چه د روس محکمه (خلائی تحقیقات) لونانهم. د سپوږمۍ په سطح باندې کوز کړو، او د شان د امریکائی خلائی جهاز اپالودهم وغیره تجربې هم مخې ته راغلې، نو د مذهب او سائنس د دائره کار او حدودو نه د لاعلمۍ په طبیعیاتی علومو کښې ناپختګۍ او د مذهب نه لرې والې یا د کم علمۍ په وجه سره عام مسلمانان په شکوکو شبهاتو کښې مبتلاشول، ددې وجې نه سپوږمۍ ته د رسیدو په باره کښې دارالافتاء کښې بې شمیره استفتاګانې او خطونه ملاؤ شول. نو حضرت مفتی اعظم دامت برکاتهم ددې قسمه توهماتو او شکوکو شبهاتو په رد کښې د شریعت په رڼا کښې یو تفصیلی مضمون په ماهنامه (الحق) کښې د جولائی او اګست ۱۹۶۹ ء په شمارو کښې شائع کړو. چونکه په بعضې استفتاګانو کښې ددې مضمون حواله هم ورکړې شوې ده نو ددې وجې د عام فائدې د پاره دا پیش کولې شی (ازمرتب)

(الف) اول یو څو بنیادی خبرې عرض کیږی او دا خبره دې واضحه وی چه د ټولو مسلمانانو اجماعی عقیده ده چه ددې ټول عالم جوړونکې صرف یو الله دې او هغه ددې عالم د ټولو ذراتو او ټولو هغه قومونو نه چه په دې عالم کښې پراته دی ښه خبر او عالم دې نو چه الله تعالی د وحی په ذریعې سره کوم حقائق بیان کړی دی په هغې کښې غلطی نا ممکن ده، هم دا وجه ده چه په سائنس او وحې کښې چرته ټکراؤ ښکاره شی نو دا فیصله به کیږی چه سائنسدانانو پوره تحقیق نه دې کړې کنې نو د هغوی صحیح تحقیقات به د وحی سره چرته نه وو متصادم شوې ځکه چه په وحی او سائنس کښې (چه په رشتیاؤ مبنی وی) مخالفت او تصادم نا ممکن دې.

(ب) الله تعالې وحی ددې مقصد د پاره نازله کړې ده چه انسان ته د تعلق مع الله د حاصلولو طریقې معلومې شی او د مرضیات الهی د غیر مرضیاتو نه امتیاز اوشی د وحی الٰهی مقصد وسلې او کارخانې جوړول نه دی او نه قران کریم د تاریخ او جغرافیه صحیفه ده ددې مقاصدو د حاصلولو د پاره د خدائی نعمت یعنې د عقل استعمال د ضرورت په وخت کښې کافی دې هم دا وجه ده چه په وحی کښې داسې حقائقو طرف ته هیڅ تعرض نه کیږی چه د هغې د وحی د نزول د مقصد سره څه خاص تعلق نه وی.

(ج) د عقلیاتو او اسرائیلیاتو سره اسلامی رویه هم داسې راروانه ده چه په هغې کښې کوم کارونه د وحی سره مخالف دی د هغې به تکذیب کولې شی او چه کوم مخالف نه وی نو هغه په دوه قسمه دی یو دا چه په مشاهدې یا دلیل سره ئې ثبوت شوې وی نو د هغې به تصدیق کولې شی. دویم دا که په مشاهدې یا دلیل سره ئې ثبوت نه وی شوې نو د هغې به نه تصدیق کولې شی او نه تکذیب.

(د) د قران او حدیث نه دا حقیقت معلومیږی چه کافران په اسمان کښې نشی داخلیدلې الله تعالی فرمائی "لا تفتح لهم ابواب السماء" (سورة اعراف رکوع ۵)



د مکذبینو او کافرانو د پاره (یعنې د هغوی د عملونو، روحونو او بدنونو د پاره) به د اسمان دروازې نه کهلاویږی. لیکن تر اسمان پورې تللو نه منع نه دی او نه اسمان پورې تلل د مسلمانانو سره خاص دی. (ومن ادعی فعلیه البیان) بلکه د شیطانانو او جناتو د اسمان پورې ختل او اسمان سره لاس لګیدل په نص د قران سره ثابت دی الله تعالی فرمائی. (وانا لمسنا السماء فوجدناها ملئت حرسا شدیدا وشهبا (سورة جن) لهذا کوم ځیزونه چه د اسمان نه لاندې دی نو هغې ته د کافرانو ختل ممنوع نه دی او مسلمانانو سره هغه مخصوص نه دی.

(ه) د سپوږمۍ متعلق د یونان د حکماؤ (سائنس دانانو) خیال او عقیده وه چه سپوږمۍ د اولنی اسمان په جسم کښې دننه ده او ډیر اهل اسلام هم ددې سره موافقت کوی په دې وجه باندې چه دا عقیده د نصوصو سره متعارض نه وه، ځکه چه په قران او حدیث کښې صفا چرته نه وو وئیلې شوی چه سپوږمۍ د اسمان په جسم کښې ده او دا وئیلې شوی دی چه سپوږمۍ د زمکې او اسمان په مینځ کښې په فضا کښې ده. ځکه چه د قران پاک د نازلیدلو مقصد ددې سره هډو تعلق نه وو، او بیشکه په قران مجید کښې د سپوږمۍ متعلق د (فی) لفظ استعمال شوې دې الله تعالی فرمائی :وجعل فیها سراجا وقمرا منیرا، وقال الله تعالی جعل القمر فیهن نورا، وقال الله تعالی کل فی فلک یسبحون. لیکن د (فی) کلمې مدلول ظرفیت دې مرکوزیت نه دې یعنې د (فی) مدلول دا دې چه د هغې مدخل به د څه ځیز د پاره زمان یا مکان وی او دا معنی نه ده چه ددې په مدخول کښې څه ځیز مرکوز وی، وهذا مما لایخفی علی من تفکر فی الاستعمال )

دا نه د لغت تقاضا ده او نه د عرف، او بله دا چه د ظرفیت نه خو همیشه دا مراد نه وی چه د فی،، مدخول په حقیقت او نفس الامر کښې هم ظرف وی، بلکه ډیر کرته د هغې ظاهری او سرسری نظر سره ظرفیت مراد وی، او خاص طور سره هغه ځائې کښې چه عام ذهنونو ته پوهیدلو کښې د مشکلاتو خطره وی او دا معنی هم فصیحه او بلیغه ده الله تعالی فرمائی :وجدها تغرب فی عین حمئة) (ذوالقرنین نمر د چقړې ختې یو تالاب کښې په ډوبیدو اولیدو)

ددې مقصد هم دغه په ظاهری نظر باندې راتلل دی په حقیقت کښې داسې نه وو، نو ددې تحقیق په بناء باندې دا ګنجائش شته چه د سپوږمۍ (فی السماء) کیدل هم یو ظاهری او سرسری نظر سره وی.

(و) دلته دا هم په ذهن کښې کینول پکار دی چه (فلک) او (سماء) د بعضې مفسرینو په نزد باندې د یو ځیز نومونه دی لیکن تحقیق دا دې چه (فلک)

مدار ته وائی اسمان ته نه.

(قال العلامة الآلوسی فی تفسیره جلد ۱۷ ص ۴۰) والفلک فی الاصل کل شئ دائر ومنه فلکة المغزل والمرادبه هنا علی ماروی عن ابن عباس والسدی رضی الله تعالیٰ عنهم السماء وقال اکثر المفسرین هو موج مکفوف تحت السماء یجری فیه الشمس والقمر وقال الضحاک هو لیس بجسم وانما هو مدار هذه النجوم. انتهیٰ

حکیم الامت حضرت تهانوی رحمه الله په بیان القران کښې فرمائی چه فلک ګول خیز ته وائی د نمر او سپوږمۍ حرکت مستدیر دی ددې وجې نه ئې ددې مدار ته فلک اووې برابره خبره ده که هغه اسمان وی او که فضاء بین السمائین وی او که فضابین السماء والارض وی، ددې وجې دا مبهم پریخودل احتیاط ته نزدې دي (سورة انبیاء رکوع ۳) ددې عبارت نه معلومه شوه چه فلک او سماء جدا جدا خیزونه دی او ددې تائید هم اوشو چه نمر او سپوږمۍ یقینی طور سره د اسمان په جسم کښې مرکوز نه دی.

(ز) د ستورو متعلق علامه الوسی رحمه الله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړې دې ان النجوم قنادیل معلقة بین السماء والارض بسلاسل من نور بایدی ملئکة من نور (روح المعانی جلد ۳۰ ص ۵۰) یعنی ستورې د زمکې او اسمان په مینځ کښې دی او د اسمان په جسم کښې مرکوز نه دی بیا فرمائی: لم یقم دلیل علی ان شیئاً من الکواکب مغروز فی شئ من السموات کالفص فی الخاتم (روح المعانی جلد ۲۸ ص ۴۵) حالانکه ددې متعلق الله تعالی فرمائی: تبارک الذی جعل فی السماء بروجا (سورة الفرقان) او د بروج نه مراد ستوری دی. (فی التحقیق وهو منقول عن السلف) نو ځنګه چه د ستورو دپاره د (فی) کلمه استعمال شوې ده او هغې ته د اسمان زینت وئیلې شوې دې او سره ددې چه دا په اسمان کښې مرکوز نه دی بلکه په ښکاره او سرسری نظر باندې اکتفاء شوې ده دغه شان به د سپوږمۍ متعلق هم وئیلې شی بلکه چه زمکه او اسمان (دواړه ګول دی نو په دې اندازې سره په نمر سپوږمۍ بلکه په زمکه او هر څه باندې دا اطلاق بې شکه بې شبهې صحیح دې چه دا خیزونه په اسمان او اسمانونو کښې دی.

ددې تمهید نه پس دا حقیقت واضحه شو چه د مسلمانانو دپاره په سپوږمۍ او نمر بلکه اسمان باندې کوزیدل ممکن دی، د حضرت ادم علیه السلام، حضرت عیسی علیه السلام او حضرت خاتم النبین صلی الله علیه وسلم اسمانونو ته مافوق الاسباب ختل ددې امکان واضحه دلیل دې ځکه چه ددې حکم د انبیاء علیهم السلام سره د مخصوص کیدلو څه دلیل نشته، بیشکه دامریکې وغیره کافرانو دپاره ناممکن دی چه



هغوی اسمان کښې داخل شی لیکن چه کوم خیزونه د اسمان نه لاندې دی په هغې کښې کوزیدل د کافرانو دپاره ناممکن او ممنوع نه دی، نو که سپوږمۍ د اسمان نه لاندې وی لکه چه د اکثر مفسرینو رائې ده نو د کفارو دپاره په هغې باندې کوزیدلو کښې هیڅ منع والې نشته، باقی پاتې شوه دامریکې دادعوی چه!

(۱) چه هغوی په سپوږمۍ کښې انسانان کوز کړیدی نو ددې په منلو کښې هیڅ حرج نشته ځکه چه دداسې دعوو د وحی سره هیڅ ټکراؤ نشته،

(۲) په الاتو او او رصدګاهونو سره ددې مشاهده شوی ده.

(۳) روس وغیره چه د امریکې مخالف دی هغوی هم دا منلې ده.

(۴) دارنګې په شریعت کښې د کافرانو په دنیاوی خبرو باندې اعتماد کول جائز دی بلکه په دې کښې دینی مصلحتونه هم موجود دی خصوصاً د عیسیٰ علیه السلام اسمان ته ختل او د معراج د واقعې په ذهن کښې کیناستل او په کافرانو باندې اتمام حجت کیدل، او د انکار په صورت کښې د قران مجید د تکذیب خطره ده، خصوصاً چه کله عام سروس شروع شی لهذا ددې په منلو کښې هیڅ خطره نشته البته په دې سره حکمت یونانی ته سخته صدمه اورسیدله ځکه چه دهغوی دا عقیده چه سپوږمۍ د اسمان په جسم کښې مرکوزه ده غلطه ثابت شوه.

**د څو شبهاتو ازاله :**

(۱) الله تعالی فرمائی: ولکم فی الارض مستقر. (ستاسو دپاره په زمکه کښې د استوګنې ځائ دې) ددې نه دا مراد نه دی چه انسان په علویاتو کښې نشی کوزیدلې ګنی نو حضرت عیسیٰ علیه السلام وغیره څنګه په اسمان کښې استوګنه کوی بلکه مراد دادې چه عام طور سره به انسان په زمکه کښې استوګنه کوی ځکه چه د دنیاوی ژوند د ضروریاتو دلته انتظام شوې دې، لهذا دا ممکن ده چه بعضې افراد (مافوق الاسباب یا ماتحت الاسباب) دعادت نه خلاف علویاتو ته لاړشی.

(۲) الله تعالی فرمائی! وفیها نعیدکم) په زمکه کښې به مو واپس کوؤ) ددې نه دا نتیجه نه راوځی چه انسان خلائی پرواز نشی کولې بلکه ددې مراد دادې چه انسان به خامخا یو وخت کښې دې زمکې ته راکوزولې شی، برابره خبره ده چه هغه د مرګ سره متصل وی یا د حشر نه مخکښې.

(۳) وحفظناها من کل شیطن رجیم) محفوظ اوساتلو مونږ دغې لره د هر شیطان مردود نه) نو ددې نه مراد اسمان ته د ختلو او لاس لګولو نه حفاظت نه دې بلکه ددینه مراد د اسمان د حالاتو نه د خبریدلو نه حفاظت دې یا د اسمان داوسیدونکو سره د اختلاط نه حفاظت دې (صرح به الالوسی فی تفسیره ص ۲۳ جلد ۱۴)

(۴) د شهاب ثاقب حمله هغه وخت کیږی چه کله شیطانان غوږ ونه کیږدی اوریدلو ته، قال الله تعالی فمن یستمع الآن یجد له شهابا رصدا :او دقران حکیم نه دانه ده معلومه چه صرف په ختلو سره داحمله شروع کیږی لهذا د کافرانو اسمان پورې ختلو کښې هیڅ اشکال نشته.

**نمر او سپوږمئ په کوم اسمان کښې دی**

**سوال:** علمائې کرام ومفتیان عظام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نمر په کوم اسمان کښې دې او سپوږمئ په کوم اسمان کښې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی : شفیق احمد ډیلوری ایجنټ کسروال ضلع ساهیوال.... ۱۹۲۹ء

**الجواب:** د یونانی سائنسدانانو په نزد باندې نمر په څلورم اسمان کښې دې لیکن په قران او حدیث کښې ددې غیرضروری خبرې متعلق څه ذکر نشته لهذا ممکنه ده چه په اسمان څلورم کښې وی یا په اولنی اسمان کښې وی او داهم ممکنه ده چه په فضا کښې وی. (وهو المتبادر) وجمیع الاقوال فی الدرالمنثور فلیراجع الیه. فقط

**قران او حدیث د شمس او قمر د مرکزیت یا تعلیق نه ساکت دی :**

**سوال:** مفتیان شرع متین په دې مسئلې کښې څه فرمائی په قران پاک کښې دی :رب السموات والارض و ما بینهما و رب المشارق، انا زینا السماء الدنیا بزینة ن الکواکب الخ :کله چه دا ثابت شو چه شیطان د الله پاک دشمن دې په دې سبب سره اسمان ته د ختلو طاقت نه لری، غیر خلق چه کافران دی او د الله تعالی دوستان نه دی چه اسمان نه اوخیژی او په سپوږمئ کښې اوسیږی او حال دادې چه سپوږمئ په فلک کښې ده په اسمان کښې دننه ده. لقوله تعالی :وجعل القمر منهن نورا وجعل الشمس سراجا. (نوح) القصه. پیغمبر علیه السلام فرمائیلي دی چه څه د ام هانی بنت ابی طالب، کور کښې ووم چه جبرئیل علیه السلام براق راوستلو څه په براق سور شوم بیت المقدس ته اورسیدم هلته مې انبیاء علیهم السلام ته امامت ورکړو بیا اسمان طرفته روان شوم څنګه اسمان ته اورسیدم نو جبرئیل علیه السلام راوړاندې شو فصاح جبرائیل یا اسمعیل افتح الباب فقال اسمعیل من علی الباب فقال انا جبرائیل الخ اسمان ته دننه لاړو بیا چه نورهم بره شو او سپوږمئ ته اورسیدو. اندرون اسمان شدیم چون بالاشدیم بمقام ماه رسیدیم مهتاب را مگردون نشانید وگردون راسه صدوشست (۳۶۰) گوشه هست، وبرهر گوشه فرشته مقرراست وگردون ماه رامیکشد، چون ماه فروشود باز بطرف عرش مجید میکند چون بزیرعرش مجید رسیدشود، انجا الله تعالی راسجده کند، واپس بحکم الله پاک بمطلع خود بیاید چنین افتاب بزیرعرش مجید سجده کند.

المستفتی : قاضی شهزاده کنډ یر بلامبټ دیراستیټ... ۱۹۲۹ء ۸/۱۹/۱



**الجواب:** شمس وقمر په اسمان کښې مرکوز دی یا په فضا کښې معلق دی قران او حدیث ددینه ساکت دې او اثار په کښې مختلف دی لهذا په دویم تقدیر سره د کافرانو سپوږمئ ته ختل ممکن دی. اوهم دا د اکثرمفسرینو قول دې. (وصرح به الالوسی فی روح المعانی) او د زیات وضاحت دپاره (الحق) رساله د اکتوبر او نومبر ۱۹۲۹ء د میاشتې اوګورئ. فقط

**په سپوږمئ باندې کوزیدل د یونانی حکمت د پاره خطره ده او د ایمانی حکمت د پاره نه ده**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی څه وایم انسان سپوږمئ ته نشی ختلې او زمونږ امام صاحب وائی او نور خلق هم وائی چه انسان سپوږمئ ته ختلې شی دا ممکن ده. نوایا داخبره صحیح ده که نه؟

المستفتی : نامعلوم

**الجواب:** دقران او حدیث نه داخبره ثابته ده چه د کافرروح که سره د بدن نه وی او که بغیر د بدن نه وی اسمان پورې تللې شی او بره نشی تللې. (لاتفتح لهم ابواب السماء)﴿۱﴾ او په قران او حدیث کښې دا تصریح نشته چه سپوږمئ وغیره د اسمان نه لاندې دی یا بره دی، دومره ذکر شته چه کل فی فلک یسبحون ﴿۲﴾ لیکن د فلک نه مراد مدار دې اسمان نه دې لهذا که سپوږمئ د اسمان نه لاندې وی نو هغې ته کافر ختلې شی او که بره وی نو نشی ختلې. تاسوهم انتظار کوئ مونږ هم په انتظار کښې یو که او ختل نو پته به اولګی چه دا د اسمان نه لاندې ده او که بالفرض او ختل نو یونانی حکمت ته به خطره ملاؤشی او ایمانی حکمت ته په هیڅ وخت کښې هم خطره نه رسیږی. فقط

**ستوری سپوږمئ د اسمان نه لاندې دی :**

**سوال:** محترم جناب مفتی صاحب څمونږ پیش امام صاحب وائی چه امریکې والا څکه سپوږمئ ته اوختل چه ستوری سپوږمئ او نمر د اسمان نه لاندې دی او مقتدیان وائی چه مولوی صاحب غلط وائی سپوږمئ په اسمان کښې ده څکه چه د ایت هم دا ترجمه کیدې شی. وجعل القمر فیهن نوراً وجعل الشمس سراجاً (نوح) او سپوږمئ مونږ په اسمان کښې نور پیدا کړو او نمر مو په کښې چراغ جوړ کړو، مقتدیان په دلیل کښې قرانی ایت پیش کوی او مولوی صاحب وائی چه نه دا د اسمان نه تقریباً شپږ زره میله لرې فاصله

---

﴿۱﴾ (پاره: ۸ سورة اعراف رکوع: ۱۲ آیت: ۴۰) ﴿۲﴾ (پاره: ۲۳ سورة یٰس رکوع: ۲ آیت: ۴۰)

باندې دی. تاسو مهرباني او کړئ مونږ ته د قران او حدیث نه څه ثبوت فراهم کړئ ځکه چې دلته به څه نور بغاوت پیدا شي نو د معاملې صفا کولو دپاره مونږ ته څه دلیل پیش کړئ؟

المستفتي: شیخ سلطان حسن کلاتهٔ مرچنټ پاره چنار جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** د قران او حدیث نه دا حقیقت معلوم دې چه کافران اسمان ته نشي داخلیدلي او د اسمان نه چه کوم څیزونه لاندې دی هغې ته تللو نه کافران منع نه دی. او د (فی) لفظ دا تقاضا نه کوی چه سپوږمۍ وغیره دې د اسمان په جسم کښې دننه وی اونه په دې خبره څه دلیل شته دې. (روح المعانی ص ۱۴۵ جلد ۲۸) بلکه چه کله ظاهری او سرسری نظر کښې ظرفیت ثابت وی نو د (فی) د استعمال دپاره کافی دې. کما فی وجدها تغرب فی عین حمئة (۱) هم داوجه ده چه مفسرین په دې کښې مختلف دی. لیکن اکثر دا وایی چه ستوری سپوږمۍ د اسمان نه لاندې دی. صرح به فی روح المعانی نفسیر سورة انبیاء ویونس) اوچه کله په دلیل سره دا ثابت شی کافران سپوږمۍ ته ختلي دی نو دا به هم منعین شی چه سپوږمۍ د اسمان نه لاندې ده. فقط.

## د ستورو او سپوږمۍ د اسمان نه لاندې کیدوباندې په دویم ځل تپوس

**سوال:** السلام علیکم! عرض دادې چه مونږ په خیریت سره نه یو په جوابی خط کښې ځمونږ د زړه خبره نه وه مونږ نور څه وئیل تاسو بل څه لیکلی دی. تردې چه تاسو ددې خبرې تصدیق کړې دې چه امریکایان سپوږمۍ ته ختلی دی ځکه چه سپوږمۍ لاندې ده. تاسو چه کوم حدیث شریف لیکلي دې هغه اوس منسوخ دې دکومې خبرې چه ثبوت نشي ورکولې نو غلط جواب ورکول هم نه دې پکار. ځکه چه د قران کریم د ډیرو ایتونو نه دا بیان شوې دې چه سپوږمۍ په اسمان کښې ده او تاڅه بل شان جواب راکړې دې صبا له به امریکې والا اووائی چه مونږ عرش معلی ته لاړلو یا اسمان ته اوختلو نو بیا به هم تاسو دا لیکئ چه صحیح ده ختلي شی. تاسو مهرباني اوکړئ دا رسالې خلقو ته مه لیږئ ځکه چه دا رسالې زمونږ ستاسو په شان خلق لیکی اومنی ئې. او قران او حدیث د الله تعالی او پیغمبر علیه السلام فرمانونه دی که تاسو ته څه معلومه نه وی نو دا حدیث شریف په بخاری شریف کښې اوګورئ. چه سپوږمۍ او نمر د الله تعالی نښې دی. په دوی کښې څوک هم

(۱) (پاره: ۱۶ سورة کهف رکوع: ۲ آیت: ۸۶) (۲) (پاره: ۸ سورة اعراف آیت: ۴۰ رکوع: ۱۲)



څه دخل نشی کولي ددې نه علاوه په تفسیرابن کثیر. حقانی عزیزی او ابوسعود ټولو کښې دا خبره په وضاحت سره بیان کړې شوې ده. چه څوک هم د الله تعالی په نظام کښې خلل نه شی اچولې، دغه شان جواب ورکوه. الله تعالی دروغ نه وائی وحفظناها من کل شیطان رجیم. برائې مهرباني صحیح جواب اولیکئ؟

المستفتي: شیخ سلطان حسن کلاتهٔ مرچنټ پاره چنار ۱۷ جمادی الثانی ۱۳۸۹ هجری

**الجواب:** د قران مجید او احادیثو نه دا حقیقت ثابت دې په کافران اسمان ته نه شی داخلیدلي لاتفتح لهم ابواب السماء(۱) (وهکذا فی حدیث رواه احمد) نوچه کله کافران اسمان ته داخلیدلي نشي نوعرش معلی ته چرته هم نشي ختلې. او تراسمان پورې ختل نه د مسلمانانو سره مخصوص دی او نه د کافرانو دپاره ممنوع دی. (ومن ادعی فعلیه البیان) او بیشکه چه شیطانان د اسمان دخبرو اوریدلو نه ممنوع دی او اسمانونه دهغوی نه محفوظ ساتلي شوې دی دانه چه د لاس لګولو او ختلو نه منع کړې شوې دی.

**کما لا یخفیٰ علی من تفکر فی القرآن. قال الله تعالیٰ لا یسمعون الی الملأ الاعلی و یقذفون من کل جانب (۲) وقال وانالمسنا السماء فوجدنا ها ملئت حرسا شدیدا و شهبا وانا کنا نقعد منها مقاعد للسمع فمن یستمع الآن یجد له شهابا رصداً. (۳) فقط**

## سپوږمۍ پورې د انسان رسیدل ممکن دی

**سوال:** امریکه دعوی کوی چه د هغوی اپالوراکټ او د روس. کاسموس راکټ په سپوږمۍ باندې کوز شوې دی او ددې میاشتې په اولنۍ هفته کښې به ریډیو پاکستان بیا بیا نشرکولو چه د. اپالو ۱۲، د راوړلې شوو کاڼړو نمائش په پاکستان کښې هم شوې. نو ایا په سپوږمۍ باندې کوزیدل د انسان د وس خبره ده؟ که داخبره د انسان د وس خبره نه وی او خلاف شریعت وی نو امریکه او روس او نور ملکونه چه دا دعوی کوی نو پاکستان ئې تردید ولې نه کوی چه دا اسلامی ملک هم دې او لوئ لوئ علماء کرام ددې خلاف اوازولې نه اوچتوی. نو اوس مونږ په خپله خبره باندې کلک شو یاد امریکې خبره اومنو. دا رنګې سپوږمۍ په اسمان کښې ده اوکه د اسمان نه

(۱) (پاره: ۸ سورة اعراف آیت: ۴۰ رکوع: ۱۲)
(۲) (پاره: ۲۳ سورة صافات آیت: ۸)
(۳) (پاره: ۲۹ سورة جن رکوع: ۱۱ آیت ۹،۸)

لاندې ده؟ مونږ ته تفصيلي معلومات راوليږئ.

المستفتي : كرامت الله امازئ چرړي چمله سوات...۱۹۶۹ء

**الجواب:** د قران او حديث نه دا خبره معلومه ده، چه سپوږمئ په اسمان كښې مظروفه ده او دا معلومه نه ده چه سپوږمئ په اسمان كښې مركوزه ده، لان كلمة،،في،، معناها الظرفية لاالركزية، لهذا ممكن ده چه د اسمان په جسم كښې وي (كما قال به حكماء اليونان) او ممكن ده چه په فضا كښې وي، او د صحابه كرام رضی الله عنهم په اثارو كښې اختلاف موجود دې. (كما لايخفى على من راجع الى روح المعانى) لهذا دې مسئله كښې سختى نه ده پكار، بيشكه د قران مجيد نه دا خبره معلومه ده چه د كافرانو روحونه په اسمان كښې نشي داخليدلې برابره خبره ده چه سره د جسمونو وي او كه بغير د جسمونو نه وي. قال الله تعالى لاتفتح لهم ابواب السماء ﴿۱﴾ نو كه سپوږمئ د اسمان نه لاندې په فضا كښې وي نو هغې ته د كافرانو ختل څه لرې خبره نه ده لكه څنګه چه د پيريانو شيطانانو اسمان ته ختل ممكن او واقع دى او په ظاهره خو داسې معلوميږي چه ستورى سپوږمئ بلكه نمر هم د اسمان نه لاندې په فضا كښې دې، د زيات معلومات دپاره د اكتوبر ۱۹۶۹ء مياشتې رساله (الحق) اوګورئ.

### د نمر او سپوږمئ په اسمانونو كښې كيدل د حكمائې يونان نظريه ده

**سوال:** السلام عليكم ورحمة الله وبركاته! ستاسو حضراتو يوه رساله څمونږ علاقې ته راغى چه هغې كښې ليكلې شوې وو چه سپوږمئ په اسمان كښې نه ده او په قران مجيد كښې هم د سپوږمئ په اسمان كښې د كيدلو ثبوت نشته، بلكه د اسمانونو نه لاندې ده څما تعليم چونكه كم دې مګر صرف يو قران مجيد او تفسيرابن كثير سپاره ۲۵ اردو مونږ سره ده په هغې كښې دى چه اووه اسمانونه په دنيا كښې موجود دى (پ: ۲۹ ع: ۹ ص ۴۳) نه معلوميږي چه سپوږمئ په اسمان كښې موجود ده برائې مهربانى مكمله مسئله اوليكئ او رااوليږئ چه څما او د قوم صحيح تسلى اوشى؟

المستفتي : تراب ګل كوټ ملاكنډ ايجنسى.....۱۹۶۹ء ۲۹۱۹۱

**الجواب:** په قران وحديث كښې دا تشريح نشته چه سپوږمئ او ستورى په اسمان كښې مركوز دى او نه دا تصريح شته چه سپوږمئ په اولنى اسمان

﴿۱﴾ (پاره:۸ سورة الاعراف ركوع:۱۲ آيت:۴۰)



كښې ده او نمر په څلورم اسمان كښې دې په حقيقت كښې دا عقيده د يونان د حكماؤ ده چه علماؤ د نصوصو سره د عدم تعارض په وجه باندې په كتابونو كښې نقل كړې ده. او بيشكه د قران او حديث نه دا ثابته ده چه ستورى سپوږمئ په اسمان كښې مظروف دى نو ممكن ده چه مركوز هم وى او ممكن ده غيرمركوز وى خو صرف په سرسرى نظر باندې اكتفا او كړې شوه كما في تغرب في عين حمئة ﴿۱﴾ او ممكن ده چه د اسمانونو د كره كيدو په وجه باندې د ظرفيت اطلاق شوې وى ځكه چه په دې تقدير سره زمكه هم په اسمان كښې ده او ستورى سپوږمئ هم او د صحابه كرامو رضی الله عنهم نه اثار متعارض دى. لهذا ددې د اسمان نه لاندې كيدل او په فضا كښې معلق كيدل هم ممكن دى او د كافرانو هلته تلل ممكن دى ځكه چه كافرانو دپاره اسمان ته داخليدل ممنوع دى او باقى تر اسمان پورې تلل نه د مسلمانانو دپاره مخصوص دى او نه د كافرانو دپاره ممنوع دى فقط

### د ستورو او سپوږمئ په اسمان كښې كيدلو او نه كيدلو په باره كښې د سلف صالحينو اختلاف

**سوال:** علمائې دين او د شرع متين مفتيان څه فرمائى دې مسئلې كښې چه زيد وائى نمر او سپوږمئ د اسمان د پاسه يا دې سره پيوست نه دى بلكه د اسمان نه ډير لاندې په خلاء او فضاء كښې دى دغه شان نورې ټولې سيارې هم د اسمان نه لاندې دى. لكه روح المعانى د ايت (كل في فلك يسبحون) لاندې ليكلې دى. (قال اكثرالمفسرين هو موج مكفوف تحت السماء يجرى فيه الشمس والقمر قال الضحاك هو ليس بجسم لان هو مدار وهل النجوم (روح المعانى ص ۴۰ جلد ۱۷) او بل سړې عمر دې هغه وائى چه نمر او سپوږمئ د اسمان دپاسه دى الله تعالى هم دا فرمائيلې دى چه (اى كل في خلاء اوفضاء يسبحون) يعنې ټول نمر سپوږمئ او ستورى په خلاء او فضا كښې ګرزى، بلكه فرمائيلې ئې دى (كل في فلك يسبحون) او حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائى. (الفلك السماء) او دجلالين شريف په حاشيه صفحه ۲۷۰، تفسير قادرى صفحه ۵۲۵ كښې دى چه د سپوږمئ ككورې په اسمان كښې دې او ددې رڼا په ټولو اسمانونو كښې خوريږى. لكه چه په زمكه باندې خوريږى او د سپوږمئ او نمر تفسير په ۲۸ سيپاره كښې دې د هر برج حصه په دائره كښې تاويږى او هره ورځ ددې منزل په اندازه باندې قطع كوى

﴿۱﴾ (پاره:۱۶ سورة كهف ركوع:۲ آيت:۸۶)

او په ټول اسمان کښې ددې رڼا پریوځی الخ... او تفسیر جلالین ص ۱۲۸ کښې د (هوالذی جعل الشمس ضیاء والقمر نورا وقدر منازل ثمانیة وعشرین منزلاً فی ثمان وعشرین منزل لیلة وفی کل شهر ستر لیلتین ان کان شهر ثلاثین یوماً ولیلة ان کان تسعة وعشرین یوماً) (جلالین ص ۱۶۱) او برجونه په اسمانونو کښې دی لکه ایت شریف دې (تبارک الذی جعل فی السماء بروجا اثنی عشر الحمل والثور الخ (جلالین ص ۳۰۵) ډیر برکت والا دې هغه ذات چه چاپه اسمان کښې برجونه پیدا کړل، وجعل فیها سراجا وقمرامنیراً او په دې اسمان کښې ئې نمر او سپوږمئ پیدا کړل نو معلومه شوه په نمر او سپوږمې لاندې دی بلکه پخپله الله تعالی د اسمانونو ذکر کړې دې چه نمر او سپوږمئ په اسمانونو کښې دی، الم ترکیف خلق سبع سموات طباقا وجعل فیهن نورا وجعل الشمس سراجا. آیا ته نه ګورې څنګه پیدا کړل الله تعالی اووه اسمانونه د یو بل د پاسه او جوړه ئې کړه ددې په مینځ کښې سپوږمئ رڼا والا او نمر رڼا والا، نو معلومه شوه چه سپوږمئ نمر او ستوری په اسمانونو کښې ګرځی، انه فیه ذلك الکوکب وکل کوکب یجری فی السماء الذی قدرفیه وفی الذی اختلف العلماء فیه فقال بعضهم الفلك لیس بجسم وهواستدارة هذا النجوم، وقال الکثیرون الفلك اجسام تدار النجوم علیها وهذا اقرب الی ظاهر القرآن. (جلالین حاشیه ص ۲۷۰) او حضرت شاه عبدالعزیز محدث دهلوی لیکی (داسمان حقیقت څه دې)؟ (جواب) د اسمان اووه طبقې دی جدا جدا، په یو اسمان کښې شباب دویم کښې عطارد تراخرې پورې (فتاوی عزیزی ص ۷۷ جلد ۱) نو اوس په دوی کښې دچا خبره صحیح ده؟

المستفتی: شفیق احمد کسوال ضلع ساهیوال... ۲۷ شوال ۱۳۸۹ هجری

**الجواب:** په قران او حدیث کښې په صراحت سره نه ده فوقیت ذکر شته او نه لاندیوالی اونه ده رکوزیت. او د سلف صالحینو اثار په دې کښې مختلف دی لهذا په کومو خیزونو کښې کافران داخل شی هغه به د اسمان نه لاندې وی، او کومو خیزونو کښې چه داخل شوې نه وی نو په هغې کښې ټول احتمالات موجود دی. فقط.

### د اسمان او فلکیاتو په باره کښې د یونان د فلاسفرانو نظریات او شریعت

**سوال:** (۱) ایا اسمان کلک دې؟ (۲) د اسمان تعریف څه دې؟ (۳) ناری طبقه د سپوږمئ نه لاندې ده که اوچته؟ (۴) په قران مجید کښې دی چه انسان به په



زمکه باندې مړ کیږی که هغه په سپوږمئ باندې مړ شو نو بیا به ئې څه تاویل وی؟ (۵) اووه اسمانونه څنګه جوړ دی؟ (۶) سپوږمئ د اسمانی دنیا نه لاندې ده که دپاسه؟ (۷) د (کل فی فلک یسبحون) څه تفصیل دې؟ (۸) بعضې خلق وائی چه اسمان د زمکې نه برنې حصې ته وائی په دې باره کښې د قران څه نظریه ده؟

المستفتی: نامعلوم ..........

**الجواب:** (۱) (۲) اسمان یو کلک جسم دې په هغې کښې دروازې هم دی او رنګدار هم دې د دلیلونونه سور رنګ والا معلومیږی. (۳) ناری طبقه د یونانی فلاسفرانو په نزد باندې د سپوږمئ نه لاندې ده او د ایمانی فلاسفرانو په نزد باندې دا څه مصدقه خیز نه دې ممکن ده چه دا طبقه موجود وی او داهم ممکنه ده چه نه وی. ځکه چه په وحی کښې دې طرفته څه تعرض نه دې شوې. (۴) دا مضمون په قران مجید کښې نشته او دا مضمون په کښې شته چه انسان به زمکې ته واپس کولې شی او دا چه ستاسو دپاره په زمکه کښې استوګنه ده، لیکن په دې سره سپوږمئ ته نه ختل نه لازمیږی، ځکه چه دا خو په غالب باندې محمول دی او یا به دا اووئیلې شی چه په سپوږمئ وغیره کښې مړه خلق به د حشرنه مخکښې زمکې ته واپس کولې شی، او یا به دا اووئیلې شی چه د انسان د ژوند ضروریات او د بقا سامان صرف په زمکه کښې دې. (۵) یو بل نه ډیر لرې دی یو ځائ نه دی نشته لهذا ممکن ده چه په جسم کښې وی او ممکن ده چه په فضا کښې وی. ظاهری طور سره ئې شکل (کروی) معلومیږی. (۶) په وحی کښې تصریح او دا د اکثرو قول دې لیکن اوس دا په یقینی طور سره معلومه شوه چه کافران سپوږمئ ته ختلې دی نو دا فیصله به کولې شی چه سپوږمئ په فضا کښې ده جسم کښې نه ده. (۷) حضرت تهانوی او مولانا عثمانی او په روح المعانی کښې تصریح شته چه د فلک نه مراد (مدار) دې اسمان نه دې یعنې هریو په خپل خپل مدار کښې چکرونه وهی. (۸) سماء اسمان ته هم وئیلې شی، او هر بره خیز ته هم سماء وئیل صحیح دی. فقط.

### د ستورو او سپوږمئ په باره کښې د سائنسی تحقیقاتو شرعی حیثیت

**سوال:** (۱) ایا داخبره صحیح ده چه انسان سپوږمئ باندې کوز شوې دې او ځان سره ئې څه نمونې هم راوړې دی؟ (۲) سپوږمئ د اسمان نه لاندې ده که د پاسه؟ که اوچته وی نو په کوم اسمان کښې ده؟ (۳) سپوږمئ د زمکې نه وړه ده که لویه؟ او څومره لویه یا وړه ده؟ (۴) ایا د سپوږمئ جسم کمیږی یا

زیاتیږی او که نه؟ (٥) ایا سپوږمۍ د نمر نه رڼا حاصلوی او که پخپله باندي په کښي رڼا ده؟ (٦) ایا د نمر په شان ډوبیږی او که نه؟ (٧) سپوږمۍ د زمکي نه څومره لري ده؟ (٨) که د دوی دعوی غلطه وی نو ددي د ناممکن کیدو سبب د قران او حدیث په رڼا کښي څه دي؟ (٩) مولانا شمس الحق رحمه الله دي باره کښي څه رائي لری؟ (١٠) خلق وائی چه درویشان خلق سپوږمۍ ته په پنځه سوه کاله کښي رسیدلي شی، ایا دا صحیح ده؟ (١١) علمائي کرام دي باره کښي چپ دی؟ (١٢) ځما خیال دادي چه انسان په سپوږمۍ باندي کوزیدلي شی ځکه چه الله تعالی فرمائی لیس للا نسان الا ماسعی) یعني انسان ته به څه نه ملاویږی.

لیکن د کوم ځیز چه هغه کوشش کوی که دا خیال غلط وی نو اګاه کړئ؟

المستفتی: صدیق الرحمٰن خوبی...... ١٩٦٩ء

**الجواب:** (١) په ظاهره سره درست ده (٢) د اکثرمفسرینو په نزد باندي د اسمان نه لاندي ده. (٣،٤) په قران او حدیث کښي ددي څه تذکره نشته لهذا په دي غیر ضروری کارونو کښي د سائسدانانو تصدیق کول څه ګناه نه ده. (٥) ظاهراً دا د نمر نه رڼا حاصلوی. (٦) ځمونږ په نظر سره ډوبیږی او حقیقت څه بل څه دي. (٧)(٨) په قران او حدیث کښي ددي ذکر نشته په داسي غیرضروری خبرو کښي د سائنس والا منل ګناه نه ده. (٩) د مولانا شمس الحق صاحب او ځمونږ یوه رائي ده. (١٠) غلطه خبره ده. (١١) کیدي شی تا نه د (الحق) رسالي مطالعه کړي وی اونه دي د مولانا عبدالحق صاحب خطبه اوریدلي وی. (١٢) د تعلق مع الله په حاصلولو کښي ددي څه د خل نشته دا جغرافیائی او طبعی مسئله ده لهذا ددینه وحی ساکت (چپ) ده او ستا خیال صحیح دي لیکن دایاتونو نه استدلال غلط دي د زیات تفصیل دپاره د اګست او ستمبر ١٩٦٩ء د شماري (الحق) رساله اوګوره.

## د اسمان وجود او د ستورو متحرک او ساکن کیدل

**سوال:** علمائي کرام دي مسئلو باره کښي څه فرمائی: (١) اسمان موجود دي او که نه؟ (٢) دیوبل دپاسه دی که نه؟ (٣) حرکت کوی که نه؟ (۴) ستوری متحرک دی که نه؟ (٥) د اسمان دپاسه دی که لاندي؟ (٦) امریکي والا



سپوږمۍ باندي کوز شوي دی که نه؟ (٧) د شریعت په رڼا کښي د امریکي یا روس والو سپوږمۍ یا اسمان ته رسیدل کیدي شی او که نه؟ د شریعت او حکمت او حقیقت په رڼا کښي جواب راکړئ ددواړو جهانونو ثوابونه حاصل کړئ؟

المستفتی: محمّد اسرار ساکن ګړهی

**الجواب:** (١) یقیناً موجود دي (٢) دیوبل دپاسه دی خو پیوست نه دی. (٣) په وحی کښي ددي ذکر نشته. (۴) بعضي متحرک دی او بعضي ساکن دی. (٥) د اکثرمفسرینو په نزد لاندي دی. (٦) کیدي شی. (٧) کافران په اسمان کښي نه شی داخلیدلي او د اسمان نه لاندي ځیزونو ته رسیدلي شی. دا ممنوع نه دی او نه دچا پوري مخصوص دی، فقط. د زیات وضاحت دپاره د اګست او ستمبر ١٩٦٩ء د شماري (الحق) رساله مطالعه کړئ.

## په سپوږمۍ باندي د کوزیدلو دعوی تسلیمولو کښي څه حرج نشته

**سوال:** نن صبا په ریډیو او اخبارونو کښي دا یوه عام خبره ده چه د امریکي خلابازان په سپوږمۍ باندي کوز شوي دی، تاسو صاحبان مهربانی او کړئ فتوی ورکړئ چه سپوږمۍ ته تلل منع دی که نه؟ دا رنګي د امریکي خلابازان سپوږمۍ ته رشتیا ختلي دی او که نه؟

المستفتی: نامعلوم......

**الجواب:** (الف) مختصرا عرض دي چه د قران او حدیث نه دومره معلومه ده چه کافران په اسمان کښي نشی داخلیدي باقی د اسمان نه لاندي چه څومره ځیزونه دی سپوږمۍ وی که نمر وی هغي ته ختلي شی، او په قران او حدیث کښي دا تصریح نشته چه سپوږمۍ د اسمان په جسم کښي ده. او اکثر مفسرین وائی چه د اسمان نه لاندي ده. (کما فی روح المعانی) لهذا که ثابت شول چه کافران سپوږمۍ ته ختلي دی نو مونږ به په دي نتیجي ته اورسیږو چه د اسمان نه لاندي ده. او یونانی حکماء غلط شوي دي.

(ب) د امریکي په دعوی تسلیمولو کښي هیڅ حرج نشته ځکه چه د دعوي نه علاوه په الاتو سره ئي مشاهده هم وی، او روس ئي تکذیب هم نه دي کړي د عام

سروس د تواتر نه مخکښې د کافرانو په اخبارونو باندې يقين کول نه دی پکار.

## د اووه زمکو طبقات

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د زمکې کوم اووه طبقات دی نو دا د اسمانونو په شان د يوبل دپاسه دی يا صرف يوه سطحه په اووه حصو کښې تقسيم ده؟

المستفتی: محمد عارف اسماعيله مردان..........١٩٧٧ء١٩١٨١

**الجواب:** په دې کښې څو احتمالات دی (١) د اسمانونو په شان (٢) اووه مستقلې دی بغير د يوځائ کيدونه. (٣) اووه اقليمه ده. ﴿١﴾ ليکن دويم او دريم قول د (غضب والاحديث) نه مخالف دې البته د دويم قول تطبيق ممکن دې په خلاف د دريم. وهوالموفق.

---

﴿١﴾ قال العلامه آلوسی والمثلية تصدق بالاشتراک فی بعض الاوصاف فقال الجمهور هی هاهنا فی کونها سبعاً وکونها طباقا بعضها فوق بعض وبين کل ارض وارض مسافة کما بين السماء والارض ........وقال الضحاک هی فی کونها سبعاً بعضها فوق بعض لافی کونها کذلک مع وجود مسافة بين ارض وارض. واختاره بعضهم زاعماً ان المرادبها تيک السبع طبقة التراب الصرفة الجاورة للمرکز، والطبقه الطنية والطبقة المعدنيه ..........وقيل من القائم السبعة وهی مخلفة الحرارة والبرودة والليل والنهار .الخ (روح المعانی ص ٢١١، ٢١٢ جلد ١٥ سورة الطلاق پاره:٢٨)

..........

..........

..........



# باب الكرامات

..........

## قال الله تعالیٰ

اَلَآ اِنَّ اَوْلِيَآءَ اللّٰهِ
لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۶۲﴾
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿۶۳﴾
لَهُمُ الْبُشْرٰى فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا
وَفِي الْاٰخِرَةِ

(الاية)



# باب الکرامات

## د کرامت تعریف او د شهداؤ برزخی ژوند

**سوال:** د کرامت تعریف څه دي؟ دا رنګې :ولاتقولوا لمن يقتل فی سبيل الله اموات (الاية) مطلب او تشريح څه ده؟

المستفتی :غلام رحمانی یوسف خيل مهمند ايجنسی ۲۰ محرم ۱۳۹۲ هجری

**الجواب:** کرامت هغه خلاف عادت کارته وائی چه د یو کامل تابع شریعت سړی نه ظاهرشی ﴿۱﴾ برابر خبره ده که هغه ژوندي وی او که مړوی، او د قبرونو زیارت سنت دي.﴿۲﴾ او توسل بالصالحين جائز دي ﴿ ۳﴾ ددې ايت صفا مطلب دادي چه کوم سړې د اعلاء کلمة الله په سلسله کښې اوو ژلې شی نو هغه د عام مړو په شان یو مړې مه ګڼړئ ځکه چه هغه ته روحانی راحت، د بدن حفاظت او برزخی ژوند ورکړې شوې دي. ﴿۴﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال الملا علی القاری الکرامة خارق للعادة الا انها غر مقرونة بالتحدی وهی کرامة للولی وعلامة لصدق النبی فان کرامة التابع کرامة المتبوع والولی هو العارف بالله وصفاته بقدر ما يمكن له، المواظب على الطاعات المجتنب عن السيئات المعرض عن الانهماک فی اللذات و الشهوات و الغفلات واللهوات .(شرح فقه الاکبر للقاری ص ۷۹ الکرامات للاولياء حق)

وقال ابن عابدين و کرامات الاولياء حق فتظهر الکرامة علی طريق نقض العادة للولی من قطع المسافة البعيدة فی المدة القليلة وظهور الطعام و الشراب و اللباس عند الحاجة و المشی علی الماء والهواء وکلام الجماد و العجماء واندفاع المتوجه من البلاء و کفاية المهم من الاعداء وغير ذلک .

(ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۶۸۴ جلد ۲ مطلب في ثبوت کرامات الاولياء والاستخدامات)

﴿۲﴾ قال الحصکفی وبزيارة القبور وللنساء لحديث کنت نهيتکم عن زيارة القبور الا فزوروها الخ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص۶۶۵ جلد ۱ مطلب فی زيارة القبور)

﴿۳﴾ قال ابن عابدين وقد قال تعالیٰ وابتغوا اليه الوسيلة وقد عد من اداب الدعاء التوسل علی ما فی الحصن وجاء فی رواية اللهم انی اسألک بحق السائلين عليک وبحق ممشای اليک فانی لم اخرج اشرا ولا بطرا الحديث.(رد المحتار هامش الدر المختار ص ۲۸۱ جلد ۵ فصل فی البيع کتاب الخطر والاباحة)

﴿۴﴾ قال العلامه آلوسی "ولکن لا تشعرون "ای لا تحسون ولا تدرکون ما حالهم بالمشاعر لانها من احوال البرزخ التی لا يطلع عليها ولا طريق للعلم بها الا بالوحی و اختلف فی هذه الحياة فذهب کثير من السلف الیٰ انها حقيقية بالروح و الجسد ولکنا لا ندرکها فی هذه النشأة واستدلوا بسياق قوله تعالیٰ عند ربهم يرزقون وبان الحياة الروحانية التی

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## د اولیائې کرامو د مرګ نه مخکښې او روستو نفع او نقصان رسول

**سوال:** اولیائې کرام ژوندی دی که مړه، څه نفع او نقصان رسولې شی یا نه، وضاحت اوکړئ؟

المستفتی :اهالیان اسبنړ دیرستیټ..........۵شوال ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** اولیاء الله که ژوندی وی او که مړه وی ما فوق الاسباب نفع او نقصان نه شی رسولې. البته د اولیاء الله کرامت حق دې د مرګ نه مخکښې ژوند کښې هم او د مرګ نه پس هم ﴿۱﴾

## د اولیائې کرامو دخوب نه علاوه په نورو ذریعوسره معلومات حاصلول

**سوال:** ایا اولیائې کراموته د خوب نه علاوه په نورو ذریعو سره معلومات حاصلیږی او که نه؟ او که حاصلیږی نو اولیکئ؟

المستفتی :مولوی حیات الله اشکرکوټ جنوبی وزیرستان ۷ربیع الثانی ۱۳۸۹ھ

(بقیہ حاشیہ) لیست بالجسدلیست من خواصهم فلا یکون لهم امتیاز بذلک علی من عداهم وذهب البعض الیٰ انها روحانیة وکونهم یرزقون لا ینا فی ذلک فقد روی عن الحسن ان الشهداء احیاء عند الله تعالیٰ تعرض ارزاقهم علی ارواحهم فیصل الیهم الروح والفرح کما تعرض النار علی ارواح آل فرعون غدوًّ وعشیا فیصل الیهم الوجع فوصول هذالروح الی الروح هو الرزق والامتیاز لیس بمجرد الحیاة بل مع ما ینضم الیها من اختصاصهم بمزید القرب من الله عز شانه ومزید البهجة والکرامة الخ .
(تفسیر روح المعانی ص ۳۰ جلد ۲ سورة البقرة آیت :۱۵۴)

﴿۱﴾قال الحافظ ابن کثیر الکرامة لولی من هذه الامة وهی معدودة من المعجزات لان کل مایثبت لولی فهو معجزة لنبیه ........عن ابی سبرة النخعی قال اقبل رجل من الیمن فلما کان ببعض الطریق نفق حماره فقام فتوضأ ثم صلی رکعتین ثم قال اللهم انی جئت من الدفینة مجاهداً فی سبیلک وابتغاء مرضاتک وانا اشهد انک تحی الموتی وتبعث من فی القبور لا تجعل علی الیوم منه اطلب الیک الیوم ان تبعث حماری ،فقام الحمار ینفض اذنیه الخ وایضاً فی باب کلام الاموات وعجائبهم عن ربعی بن خراش العبسی قال مرض اخی الربیع بن خراش فمرضته ثم مات فذهبنا نجهزه فلما جئنا رفع الثوب عن وجهه ثم قال السلام علیکم قلنا وعلیک السلام قدمت ،قال بلی ولکن لقیت بعد کم ربی ولقینی بروح وریحان ورب غیر غضبان ثم کسانی ثیابا من سندس اخضر وان سألته ان یأذن لی ان ابشر کم فاذن لی وان الامر کما ترون فسددوا وقاربوا وبشروا ولا تنفروا فلما قالها کانت کحصاة وقعت فی ماء ثم اورد باسانید کثیره فی هذاالباب .(البدایه والنهایه ص ۱۹۱،۱۹۷ جلد ۶ کرامة لولی من هذه الامة )



**الجواب:** د کشف، خوب او الهام، ټولو طریقو سره په اولیائې کرامو باندې حقائق ښکاره کیږی. ﴿۱﴾

## د مرګ نه پس کرامت او د اولیاؤ تصرف

**سوال:** ایا د مرګ نه پس د اولیاؤ اختیار ثابت دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی : تسلیم هیډ کوارټر شبقدر مهمند ایجنسی ۳ جمادی الثانیه ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** د قران احادیثو او اثارونه ثابت دی چه کرامت بعد الممات﴿۲﴾ او توسل بالصالحین ثابت دې ﴿۳﴾ د ټولو دیوبندیانو اکابرو دا مسلک دې البته د غیر الله نه غائبانه انداز کښې حاجتونه غوښتل یا دهغوی د غیبی طاقت عقیده لرل یا حاجتونه دپاره د هغوی د مقرر کیدلو قول کول یا د هغوی د دعا دقبلیدلو نه خلاف نه کیدلو قول کول دا ټول شرکیات دی. وهو الموفق.

﴿۱﴾قال الملا علی قاری وبالجملة فالعلم بالغیب امر تفرد به سبحانه ولا سبیل للعباد الیه الا باعلام منه والهام بطریق المعجزة اوالکرامة اوالارشاد الی الاستدلال بالامارات فیما یمکن فیه ذلک ،الخ (شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ۱۵۱ حکم تصدیق الکاهن بما یخبر به من الغیب )

﴿۲﴾عن عائشة قالت لما مات النجاشی کنا نتحدث انه لا یزال یری علی قبره نور رواه ابوداؤد .
(مشکواة المصابیح ص ۵۴۵ جلد۲ باب الکرامات )
عن اسماعیل بن طلحة بن عبید الله عن ابیه قال اردت مالی بالغابة فادرکنی اللیل فأویت الی قبر عبد الله بن عمرو بن حرام فسمعت قرأة من القبر ما سمعت احسن منها .الخ
(کتاب الروح لابن القیم الجوزیه ص ۱۳۴ این مستقر الارواح الخ)

﴿۳﴾قال الشیخ المفتی اعظم محمد فرید دامت برکاتهم التوسل بالصالحین وهو قد یکون باعمالهم ودعائهم کما روی البخاری عن مصعب بن سعد مرفوعا هل تنصرون وترزقون الا بضعفاء کم وکما روی صاحب شرح السنة فی شرح السنة ان النبی ﷺ کان یستفتح بصعا لیک المهاجرین وقد یکون بشرکتهم کما فی قوله تعالیٰ وما کان الله لیعذبهم وانت فیهم وما کان معذبهم وهم یستغفرون (الانفال)...... وقد یکون بمحبة المتوسل الصالحین وقد یکون بمحبة الله ایاهم و قد یکون بجاههم عند الله ،وتوسل العوام بالصالحین یرجع غالبا الی هذه الاقسام الثلاثة وبالجمله ان التوسل بالذوات الفاضلة لا یرادبه التوسل بالذوات الفاضله من حیث انها ذوات لعدم تفاوت الصالحین من غیر الصالحین فی الذات لکون کلهم من قبیل الحیوان الناطق والانسان ،ولو تفکرت لعلمت انه قد یجتمع من اقسام التوسل بالصالحین قسمان بل اکثر فی مادة واحدة.
(رسالة التوسل فی آخر منهاج السنن شرح جامع السنن ص۳۲۵ جلد ۴ )

## د کراماتو او معجزاتو په باره کښې د بهار شریعت نومې کتاب په تحقیق باندې نظر

**سوال:** په (بهارشریعت) کتاب صفحه ۶۳ کښې ئې د ولایت په بیان لیکلی دی چه مړې ژوندې کول، پیدائشی ړوند ته شفا ورکول، د مشرق نه مغرب پورې ټوله زمکه په یو قدم کښې ختمول، غرض ټول خلاف عادت کارونه د اولیاء نه ممکن دی، سوا د هغې معجزې نه چه د نورو خلقو نه د هغې ممانعت ثابت دې، لکه د قران مجید په شان څه سورت جوړول یا په دنیا کښې د بیدارئ په حالت کښې دیدار الهی کول یا په حقیقی کلام سره مشرف کیدل ددې خبرو چه څوک د خپل ځان دپاره یا د ولی دپاره دعوی اوکړی هغه کافر دې ددې عبارت په باره کښې خپل نکته نظر بیان کړئ؟ بینوا وتوجروا

**الجواب:** ددې ویونکی اولنې کلام حق دې البته په اخره کښې د کفر فتوی علی الاطلاق ناحقه ده.

ولعل هذا القائل اخذ هذا من ردالمحتار ص ۵۵۲ جلد ۳ ﴿۱﴾ والحاصل انه لا خلاف عندنا فی ثبوت الکرامة وان الخلاف فی ما کان من جنس المعجزات الکبار و المعتمد الجواز مطلقا ولا فیما ثبت بالدلیل عدم امکانه کالاتیان بسورة وتمام الکلام علی ذالک فی حاشیة ردالمحتار. وهوالموفق

## کرامت بعدالوفات او تبرک په اٰثارو د صالحینو او دم تعویذ

**سوال:** (۱) بعضې خلق د کرامت بعد الوفات قائل دی وائی چه ای پیربابا څمونږ دا کار اوکړې، څمونږ دا اپریشن اوکړې ددې څه حکم دې؟ (۲) بعضې خلق تعویذونه په غاړه کښې اچوی هر وخت ئې ځان سره ږدی بعضې خلق په تعویذ کښې لیکی یاجبرییل یا میکائیل، یا بدوح وغیره، ددې څه حکم دې؟

المستفتی: مولوی الله داد گلستان ضلع پشین بلوچستان ۱۱ محرم ۱۴۱۰ھ

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین وقد ذکر علماؤنا ان ماهو من المعجزات الکبار کاحیاء الموتی وقلب العصا حیة وانشقاق القمر واشباع الجمع من الطعام وخروج الماء من بین الاصابع لا یمکن اجراؤه کرامة للولی وطی المسافة منه لقوله علیه الصلاة والسلام زویت لی الارض فلو جاز لغیره لم یبق فائدة للتخصیص لکن فی کلام القاضی ابی زید ما یدل علی انه لیس بکفر ......... وان امام الحرمین قال المرضی عندنا تجویز جمله خوارق العادات فی معرض الکرامات ثم قال نعم قد یرد فی بعض المعجزات نص قاطع علی ان احداً لایأتی بمثله اصلا کالقرآن الخ.

(رد المحتار هامش الدر المختار ص ۳۳۷ جلد ۳ قبیل باب البغاة مطلب فی کرامات الاولیاء)



**الجواب:** (۱) کرامت بعد الوفات حق دې ﴿۱﴾ او تبرک باثار الصالحین هم حق دې ﴿۲﴾ لیکن د عوامو خودساخته کرامات قابل غور بلکه ناقابل التفات دی. (۲) په تعویذ، دم او معالجه کښې دا ضروری ده چه د قران او حدیث سره معارض نه وی. لحدیث اعرضوا علی رقاکم الحدیث ﴿۳﴾ او دا ضروری نه ده چه د قران او حدیث نه ثابت وی، وهوالموفق.

## د کرامت په طور د ستنې په سوری باندې اوښ اوباسل ناممکن نه دی

**سوال:** صرف دا جواب نقل شوې او سوال نشته دې.

المستفتی: غلام سرور سنگاپور.... ۱۹۸۳ء ۱۰/۱۸/

**الجواب:** محترم المقام غلام سرور قادری! السلام علیکم: په کرامت سره د مړو ژوندی کول ممکن بلکه واقع دی البته ددې لیکلې شوې واقعې ثبوت په صحیح سند سره نه دې شوې لهذا ددې خاص واقعې نه منل نقصانی نه دی دا رنګې د کرامت په طریقې سره د ستنې په سوری کښې اوښ اوباسل نا ممکن نه دی ﴿۴﴾ وهوالموفق.

## د قبر خاوره په ننکو لګول او په کرامت سره د مړو ژوندی کیدل

**سوال:** (۱) علمائې دین څه فرمائی چه په مزارونو او زیارتونو باندې چه کومه

---

﴿۱﴾ عن عائشة قالت لما مات النجاشی کنا نتحدث انه لا یزال یریٰ علی قبره نور، رواه ابو داؤد.
(مشکواة المصابیح ص ۵۴۵ جلد ۲ باب الکرامات)

﴿۲﴾ عن عثمان بن عبد الله بن موهب قال ارسلنی اهلی الی ام سلمة بقدح من ماء وکان اذا اصاب الانسان عین او شئ بعث الیها مخضبه فاخرجت من شعر رسول الله ﷺ وکانت تمسکه فی جلجل من فضة فخضخضة له فشرب منه قال فاطلعت فی الجلجل فرأیت شعرات حمراء رواه البخاری.
(مشکواة المصابیح ص ۳۹۱ جلد ۲ باب الطب والرقیٰ)

﴿۳﴾ عن عوف بن مالک الاشجعی قال کنا نرقی فی الجاهلیة فقلنا یا رسول الله کیف تری فی ذلک فقال اعرضوا علی رقاکم لا بأس بالرقیٰ مالم یکن فیه شرک. رواه مسلم
(مشکواة المصابیح ص ۳۸۸ جلد ۲ کتاب الطب والرقیٰ)

﴿۴﴾ عدم ایلاج الجمل فی سم الخیاط من العادة العامة فایلاجه غیر ممکن للعامه واما بالکرامة فممکن وجائز لان الکرامة فهی نقض العادة قال العلامه ملا علی قاری الکرامة خارق للعادة کما فی شرح فقه الاکبر وقال ابن عابدین وکرامات الاولیاء حق فتظهر الکرامة علی نقض العادة للولی الخ.
(فلیراجع الی رد المحتار ص ۶۸۴ جلد ۲)(از مرتب)

مالګه پرته وي چه خلق ئې د تبرک په طور وړي او د قبر نه خاوره اوڅتوی او په زخمي ځايونو او تنکو باندې ئې لګوي ايا دا جائز دي يا نه؟ (۲) بعضې خلق دا وائي چه پيران پير شيخ عبد القادر جيلاني رحمه الله د دولسو کالو ډوبه شوې کشتئ سره د هغې د خلقو د درياب نه راويستلې وه او کوم خلق چه ډوب شوي وو هغه ژوندي راوتلي وو، ايا دا صحيح ده؟

المستفتي : عبد الوهاب زړه ميانه نوشهره....... ١٩٧٢ء

**الجواب:** (۱) تبرک اګر چه ثابت دې ليکن د عوامو خودساخته تبرک منل د علماؤ د شان نه لرې دي (۲) په کرامت سره د مړو ژوندي کيدل اګر چه ممکن بلکه واقع دي ﴿۱﴾ ليکن بې سنده خبره منل د اصولو او تعامل نه خلاف ده.

## د پيران پير کرامت او د عوامو غلو کول

**سوال:** ځما يا داشت سره داخبره شوې ده او کيږي چه پيران پير عبد القادر جيلاني رحمه الله د يوولسو کالو ډوبه کشتئ سره د جنج نه د درياب نه راويستلې وه چه د هغه کرامت وو ځکه دهغه په نوم يوولسمه کوؤ ليکن اوس بعضې خلق وائي چه دا کشتئ نه وه بلکه هغه يوولس کاله ددين سخت محنت او خدمت کړې وو نو ددې وجې نه داخبره مشهوره شويده، په دې کښې کومه خبره صحيح ده او کومه غلطه ده؟

المستفتي : عبد المقتدس جلبئ صوابي مردان..... ١٩٧٣ء ١٠١٤١

**الجواب:** داخبره دې واضحه وي چه د کرامت په طورسره د مړو ژوندي کول ممکن بلکه واقع دي ﴿۲﴾ کما فصله في ترجمان السنة فليراجع اليه. ليکن دا مخصوص حادثه په صحيح سند سره نه ده ثابت، دارنګې ددې ثبوت د نذر لغير الله د جواز دپاره مستلزم نه دې، وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ عن ابی سبرة النخعی قال اقبل رجل من اليمن فلما كان ببعض الطريق نفق حماره فقام فتوضأ ثم صلى ركعتين ثم قال اللهم انی جئت من الدفينة مجاهدا فی سبيلک و ابتغاء مرضاتک وانا اشهد انک تحی الموتى وتبعث من فی القبور لا تجعل علی اليوم منه اطلب اليک اليوم ان تبعث حماری فقام الحمار ينفض اذنيه الخ. (البداية والنهاية لابن الكثير ص ۱۹۱ جلد ٦ كرامة لولی من هذه الامة)

﴿۲﴾ قال ابن عابدين ان امام الحرمين قال المرضی عندنا تجويز جملة خوارق العادات فی معرض الكرامات ثم قال نعم يرد فی بعض المعجزات نص قاطع علی ان احد الا يأتی بمثله اصلا كالقرآن .......ونقض العادة علی سبيل الكرامة لاهل الولاية جائز عند اهل السنة.

(رد المحتار هامش الدر المختار ص۳۳۷ جلد ۳ مطلب فی كرامات الاولياء قبيل باب البغاة)



## د کراماتو منکر معتزلي دې او د ما ثبت بالقران منکر کافر دې.

**سوال:** کرامات الاولياء ثابت دي يا نه؟ ددې د منکر څه حکم دې؟ شرعي حکم واضح کړئ.

المستفتي : ماسترامين الحق سرائي نورنګ بنوں......۱۳ شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** کرامات د اولياؤ حق دي په ژوند کښې او د مرګ نه پس هم، اوددې نه انکار کونکې معتزلي دې ﴿۱﴾ الا اذا انکر ما ثبت بنص القران فهو کافر. وهو الموفق.

## د اولياؤ کرامات او ددينه د منکر شرعي حکم

**سوال:** د کرامات الاولياء متعلق د شريعت څه حکم دې؟ او ددې نه د منکر څه حکم دې؟ او ددې نه دمنکر خلاف تحريک چلول څنګه دي؟ بينوا وتوجروا

المستفتي: مولوی لطف الرحمن سرائي نورنګ بنوں ۲۳ رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** کرامات د اولياء الله حق دي په ژوند کښې هم او دمرګ نه پس هم، د قران او حديث او علم کلام نه دغه عموم ثابت دې ددينه انکار کونکې بدعتي دې ﴿۲﴾ مونځ ورپسې کول مکروه تحريمي دي ﴿۳﴾ په ده باندې باقاعده رد کول د علمائې حق فرض او ذمه داري ده لکه څنګه چه غير الله ته اواز کونکې مشرک کس باندې رد کول د علمائې حق فريضه ده، وهو الموفق.

## د مرګ نه پس کرامات، روح، حيات، او عليين ته د روح تلل وغيره

**سوال:** د اولياؤ کرامات او د انبيائې کرام عليهم السلام معجزات په ژوند او د مرګ

---

﴿۱﴾ قال العلامه ملاعلی قاری والكرامات للاولياء حق ای ثابت بالكتاب والسنة ولا عبرة لمخالفة المعتزلة واهل البدعة فی انكار الكرامة......وخالفهم المعتزله حيث لم يشاهدوا فيما بينهم هذه المنزلة. (شرح فقه الاكبر لملاعلی قاری ص ۷۹ المعجزات للانبياء والكرامات للاولياء حق)

﴿۲﴾ الكرامات للاولياء حق ای ثابت بالكتاب والسنة ولا عبرة بمخالفة المعتزله واهل البدعة فی انكار الكرامة. (شرح فقه الاكبر لملاعلی قاری ص ۷۹ المعجزات للانبياء والكرامات للاولياء حق)

﴿۳﴾ قال العلامه طحطاوی وكره امامة العبد ......والاعمی...... والاعرابی ......و الفاسق ......والمبتدع بارتكابه ما احدث علی خلاف الحق المتلقی عن رسول الله صلى الله عليه وسلم الخ.

(حاشية الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۱٦۵ جلد ۱ فصل فی بيان الاحق بالامامة)

نه پس دواړو کښې حق دی یا صرف په ژوند کښې دی او د مرګ نه پس په مړو کښې د قران او حدیث په رڼا سره څه ژوند او پوهه موجود وی که نه وی؟ په انسان کښې اصل څیز روح وی او روح د مرګ نه پس علیین یا سجین ته ځی نو بیا د منکر نکیر د سوال جواب او د ژوند وغیره به څه کیږی؟ جواب راکړئ.

المستفتی: حضرت خان پشاور.... ۱۰ رمضان ۱۴۰۵ ھ

**الجواب:** کوم څیز چه د قران او حدیث نه باقاعده ثابت وی او هغه د ممکناتو نه وی او د هغې په موجویدلو سره محال ذاتی نه لازمیږی نو دغه کار به بغیر تاویل نه منلې کیږی نو ددې قاعدې په بنیاد سره معجزات او کرامات بعد الممات ﴿۱﴾ او سوال جواب وغیره په امورحق کښې د عدم مشاهدې او عدم وجود فرق نه کول او په روح او حیات کښې فرق نه کول غلط فهمی ده ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د کرامت بعدالوفات ثبوت

**سوال:** کرامات بعدالوفات د اولیاؤ دپاره په کوم دلیل سره ثابت دی؟ او په کوم شکل کښې شوې دی؟

المستفتی: الحاج نیازولی خان حسن خیل
شمالی وزیرستان ۲ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** کرامت بعدالوفات حق دې. یدل علیه حدیث روية النور علی قبر النجاشی ﴿۳﴾ والکتابة علی باب الکفل وحدیث بلیغ الارض وغیرذلک، وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامه ملا علی قاری الایات ای خوارق العادات المسماة بالمعجزات للانبیاء علیهم الصلاة والسلام والکرامات للاولیاء حق ای ثابت بالکتاب والسنة ولا عبرة بمخالفة المعتزلة واهل البدعة فی انکار الکرامة. (شرح فقه الاکبر للقاری ص ۷۹ المعجزات و الکرامات حق)

﴿۲﴾ قال الحافظ ابن القیم ومما ینبغی ان یعلم ان ما ذکرنا من شان الروح یختلف بحسب حال الارواح من القوة والضعف و الکبر والصغر ......وانت تری احکام الارواح فی الدنیا کیف تتفاوت اعظم تفاوت بحسب تفارق الارواح و کیفیاتها وقواها وابطائها فللروح المطلقة من اسر البدن و علائقه وعوائقه من التصرف و القوة والنفاذ والهمة و سرعة الصعود الی الله والتعلق بالله ......فیکف اذا تجردت وفارقته واجتمعت فیها قواها ......فهذه لها بعد مفارقة البدن شان اخر و فعل اخر...... و کان بمنزلة شعاع الشمس الذی هو ساقط بالارض فاصله متصل بالشمس ......وکما ان السراج لو فرق بینه وبین الفتیلة الاتری ان مرکب النار فی الفتیلة وضوءها وشعاعها یملأ البیت فکذالک الروح (الی اخره)
(کتاب الروح لابن القیم ص ۱۳۶ فصل فی ان شان الروح یختلف بحسب حال الارواح)

﴿۳﴾ عن عائشة قالت لما مات النجاشی کنا نتحدث انه لا یزال یری علی قبره نور . ابو داؤد .
(مشکواة المصابیح ص ۵۴۵ جلد ۲ باب الکرامات)



# کتاب السیاسة

# قال الله تعالى

وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٦٩﴾ ع

(الاية)



# كتاب السياسة

## د سیاست اصلی معنی او مطلب

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د سیاست معنی څه ده؟ او د نن صبا سیاستدانان د سیاست نه څه معنی اخلی؟

المستفتی: مولانا عجب خان صدر اتحاد قبائل دره ادم خیل ۷۲ء ۲۵۱۱۰۱

**الجواب:** سیاست په لغت کښې (پاس داشتن ملک وحکم دادن بررعیت) ته وائی (شمس اللغات ص ۴۱۴) یعنې تدبر او حکومت، او په دې کښې څه خاص اصطلاح نشته البته د موجوده خلقو په اصطلاح کښې سیاست وائی خپل ځان نیک نام کول او خپل ځان اوچتول، مقابل بدنامه کول او غورځول اګرچه په دروغو او دهوکو سره وی او اګر که مقابل په حقه وی، وهوالموفق.

## د سیاست او اقتدار د اصولو کامیابه طریقه

**سوال:** کوم خلق چه وائی چه شریعت بل د اسلام او عوامو خلاف سازش دې دا رنګې د ۱۹۷۳ء د آئین په موجودګئ کښې د شریعت بل هیڅ ضرورت نشته، حالانکه د ۱۹۷۳ء په ائین کښې په سلګونو دفعات د اسلامی قانون خلاف دی، لهذا ددغې بعضې علماؤ دا وئیل صحیح دی که نه؟ او د دوی دپاره څه سزاده چه بغیرد څه وجې نه شور جوړوی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حافظ حزب الله ولد امان الله خان ټانک ډی ائی خان ۱۹۸۸ء ۱۰۱۴۱

**الجواب:** څه پخپله د سیاست نه ناواقفه یم خو کامیاب سیاست دادې کوم چه مجاهدین او مهاجرین په افغانستان کښې کوی صرف شور چه جنګ په کښې نه وی داسې سیاست سره د اقتدار حاصلول ناممکن دی البته ددې سره د اهل اقتدار د حملونه د حفاظت یوه لویه فائده کیږی او داهم د شیخ الهند او مفتی محمود ﷫ د سیاست ثمره ده د بل سیاست نه، وهوالموفق.

## په موجوده غیر شرعی قانونو کښې فیصلې، وکالت او مقدمات وغیره کول

**سوال:** دپاکستان د سرکاری قانون اکثره حصه تعزیرات هند دی چه د انګریزانو پخوانې قانون دې چه غیر اسلامی دې دغه شان نور هم قوانین دی چه د شریعت سره متصادم دی ددې قوانینو علم څو وکیلانو یعنې قانون دانو ته وی چه د عام خلقو نه پیسې اخلی اوپه عدالتونو کښې د مقدماتو پیروی کوی او قانون خو غیر اسلامی دې لیکن د یوم ملک دا وسیدونکو دپاره دیونه یو قانون موجودګی ضروری ده، نو په دې صورت کښې چه د شریعت قانون نشته، په دې کافرانه قانون کښې د مقدماتو پیروی کول فیصلې کول او عدالتونو ته تلل جائز دی که نه؟ بینوا وتوجروا.

المستفتی: محمد عالم کیدام بحرین سوات....۲۲محرم ۱۴۰۱ ھ

**الجواب:** په موجوده قوانینو کښې چه کوم قوانین د شریعت د قوانینو سره متصادم وی نو په هغې باندې فیصله کول او دهغې مطابق د مقدماتو پیروی کول او دهغې معاوضې اخستل ټول په ټوله غیر اسلامی کارونه دی، البته په دغې قوانینو سره جائز حقونه خپلول اود ظالم نه خلاصې موندل ممنوع نه دی، لکه چه حضرت یوسف علیه السلام خپل رور د نورو رونړو د متوقع ظلم نه د بچ کولو دپاره (دین الملک) او مروجه قانون پکار راوستلو ﴿۱﴾ یعنې د مروج قانون په ګرفت کښې د راتللو نه د بچ کیدلو دپاره ئې تدبیر استعمال کړې وو لیکن جج یا وکیل مجبور نه وی، د رزق ګټلو ډیرې ذریعې دی نو غالبه داده چه د ګناه نه د دوی بچ کیدل مشکل دی وهو الموفق.

## د ووټ شرعی حیثیت

**سوال:** محترمی ومکرمی حضرت الاستاذ المحترم مفتی اعظم محمد فرید صاحب دامت برکاتهم العالیه! په یو څو میاشتو کښې پاکستان کښې الیکشن کیدو والادې چه په هغې کښې ټولې سیاسی پارټۍ حصه اخلی په هغوی کښې یوه پارټی داسې ده چه د هغوی مقصد د شریعت قانون نافذ کول

﴿۱﴾قال الله تعالیٰ ما کان لیأخذ اخاه فی دین الملک ..الآیة (پاره: ۱۳ سورة یوسف رکوع :۳ آیت :۷۶)



او د قران او سنت نافذ کول نو ددوی په مقابله کښې بلې سیکولر پارټۍ ته ووټ ورکول څنګه دی او د ووټ ورکولو نه پس به ددې سړی د عبادتونو څه کیږی مهربانی اوکړئ زمونږ راهنمائی اوکړئ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: خاکپائې بزرګان دیوبند احمد نواز کوئیه جنوبی بهکرمیاں والی.....۸ذی قعده ۱۳۸۹ ھ

**الجواب:** (۱) چالره ووټ ورکول په هغه باندې د اعتماد اظهار کول دی.

(۲) اوحکومت یا عوامو ته دهغه د اهلیت سفارش کول دی.

(۳) اوحکومت یا عوامو ته دهغه د اهلیت مشوره ورکول دی نو چه کوم سړې داسې پارټۍ ته ووټ ورکړی چه هغه شرعی قانون نه غواړی نو دا سړې غدار، خیانت ګر اوخراب سفارشی دې.

**قال الله تعالیٰ من یشفع شفاعة حسنة یکن له نصیب منها و من یشفع شفاعة سیئة یکن له کفل منها ﴿۱﴾ و قال علیه الصلاة والسلام المستشار مؤتمن ﴿۲﴾ و قال رسول الله ﷺ الدین النصیحة ثلثا قلنا لمن قال لله و لکتابه و لرسوله ولائمة المسلمین و عامتهم رواه مسلم ﴿۳﴾. فقط**

## د فاسق امارت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلو باره کښې څه فرمائی!

(۱) کوم سړې چه دوه ځلې په دروغه قسم خوړلې وی او دهوکه ئې ورکړې وی نو داسې کس د یو جماعت امیر یا نائب امیر جوړول څومره پورې صحیح دی؟ (۲) کوم سړې چه سمګلر وی، غل، بازاری او د سمګلنګ کاروبار کوی نو داسې سړې امیر مقررول څنګه دی؟

المستفتی: محمد اکرم مین بازار مینګوره سوات.....۱۲ جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه داسړې د فسق په وجه باندې د (امارت) لائق نه دې خو په دې شرط چه قوم ترې نه په فسق اوفجور کښې زیات نه وی ګنې نو (اندھوں میں کانا راجہ) په ړندو کښې یوې ستر ګې والا بادشاه وی) او په دې شرط چه دا سړې د قوم په نسبت مضبوطې رائې اوښه تدبیر والا نه وی ګنې داځه داسې امامت نه دې چه دده امارت به د امامت په شان مکروه شی.

﴿۱﴾(پاره: ۵ سورة النساء رکوع: ۸ آیت: ۸۵)
﴿۲﴾(جامع الترمذی ص ۱۰۵ جلد۲ ابواب الاداب باب ما جاء ان المستشار مؤتمن)
﴿۳﴾(صحیح المسلم ص۵۴ جلد ۱ کتاب الایمان باب بیان الدین النصیحة)

(۲) او سمګلنګ يو سياسی ګناه ده اسلامی ګناه نه ده چه کله (خيانت او بې وعدګئ نه خالی وی وهو الموفق.

## د شريعت په نوم عالم دين امير منتخب کول

**سوال:** علمايئ دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که يو قوم په اتفاقی طريقې سره يو عالم دين د شريعت په نوم باندې امير مقرر کړی نو دا به شرعی امير وی که نه؟ بينو اوتوجروا

المستفتی: محمد سردار وزيرستانی متعلم دار العلوم حقانيه ۲۹\ ذی قعده ۱۴۰۲ ھ

**الجواب:** دا سړې شرعی امير دې دده جائز حکم منل ضروری دې البته دا سړې حدود او قصاص نشی جاری کولې او دده نه مخالفت کولو والا ته باغی هم نشی وئيلې کيدې. لعدم تحقق شرائط الامامت الكبرى فافهم (۱) وهو الموفق

## په موجود عام انتخاباتو کښې د حصې اخستلو شرعی حيثيت

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په اسلام کښې د عام انتخاباتو څه حيثيت دې او ايا په دې کښې حصه اخستل جائز دی که نه؟ بينو اوتوجروا.

المستفتی: عبد الصبور افغانی متعلم دار العلوم حقانيه اکوړه خټک..۱۹۸۹ء۸\۱\۳

**الجواب:** په خير القرون کښې به خاص خاص او هوښيارو خلقو ووټ استعمالولو هر يو سړې نه او په موجوده زمانه اعجاب كل ذى رائ برايه (۲) عام رواج دې او ددې مخ نيوې ناممکن دې لهذا د ماكان له ان ياخــــذاخاه فى دين الملك.... (الاية) (۳) ايت په رڼا کښې د اسلامی اقتدار حاصلول په دې حيلې سره ممنوع نه دی، وهو الموفق.

## په افغانستان کښې د کميونسټانو د اقتدار لاندې خلقوحکم

**سوال:** سوال ليکلې نشته او د تفصيلی جواب نقل موجود دې؟ ۱۹۸۹ء۸\۱۵

**الجواب:** مدعيان اسلام که درافغانستان سکونت پذير اند، برسه گونه اند

(۱) قال العلامه حصکفی فالكبرىٰ استحقاق تصرف عام على الانام وتحقيقة فى علم الكلام ونصبه اهم الواجبات...... ويشترط كونه مسلما حراً ذكراً عاقلاً بالغاً قادراً .الخ
(۲) (مشكواة المصابيح ص۴۳۷ ج ۲ باب الامر بالمعروف الفصل الثانى)
(۳) (پاره: ۱۳ سورة يوسف ركوع : ۳ آيت: ۷۶)



(۱) اول ان کسان اند که کميونزم واشتراکيت راموجب ترقی واسلام راموجب تنزل مے دانند، واين فرقه بلاشک وشبه کافر است وامامت واقتداء بايشان باطل است.

(۲) دوم ان کسان اند که کميونزم واشتراکيت راباطل مے دانند وليکن ازوجه خوف وتجبر موافقت کميونستهان مے کنند واين فرقه مسلمان است وامامت واقتداء ايشان درست است البته برايشان هجرت کردن ضروری است.

(۳) فرقه سوم انکه صرف ازوجه مفاد دنيوی درين جماعت خبيثه داخل شده باشند ورنه اعتقاد واعتقاد ارتداد نه باشد اين کسان بلاشک وشبه فساق وفجار اند، وهو الموفق.

## د افغانستان د مجاهدينو اتحاد ضروری دې

**سوال:** ايا د افغانستان د مجاهدينو يووالې فرض دې که نه؟ چه اوس د فرقه واريت ښکارشوی دی او ايا د هندوستان، پاکستان او مسلمانانو ملکونو په علماؤ باندې د افغانستان مجاهدينو د يووالی خدمت فرض دې يا نه؟ د جواب احسان اوکړئ.

المستفتی: محمد حارث علاقه جندول ضلع دير.... ۱۹۸۲ء۳۱\۳\۲۳

**الجواب:** دا اتحاد ډير زيات ضروری دې ليکن عملی طريقې سره دا اتحاد د وخت حکومت کولې شی نورڅوک ئې نشی کولې، د نورو خلقو په اقدام سره به يو بل جماعت هم په وجود کښې راشی. وهو الموفق.

## مغربی طرز انتخابات او اسلامی طريقه انتخابات

**سوال:** سوال ليکلې نشته خود جواب تفصيلی نقل شته دې!

**الجواب:** الحمد لله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى اما بعد! پس واضح باد که انتخابات عامه که مروج غرب وامريکه اند خلاف تعامل خير القرون وقرون ماضيه اند، نزد برمقاصد ومصالح امامت سازگار نه اند، وهو واضح، البته دربلاديکه حصول اقتدار وامامت بغير ازين رويه مغربی حاصل نه مے شود مباح وجائز باشد لعدم ورود النهى عنه لان الله تعالى حسن كيد يوسـف عليه السلام لاخذاخيه كما قال تعالى كذالک كدنا ليوسف ماكان لياخذ اخاه فى ديــن

الملک ای فی قانونه وطاعته. الحمد لله که علماء افغانستان مهاجرین ومجاهدین اعزهم الله تعالی برعدم مطالبه این انتخابات عامه متفق اند، اختلاف صرف درطریقه انتخاب شوری دارند، بعض این انتخاب شوری رابانتخاب عامه جائز مے گویند لعدم ورود النهی عنه لان عمر رضی الله عنه جعل امر الامارة شوری بین الاشخاص البتة وکان عمر قائما مقام الرعیة والامة، وبعض دیگراین راناجائز قرار مے دهند لکونه مخالفا عن التعامل، ولان العوام ینتخبون من لایکون اهلا لها ومن یعطیهم المال الکثیر ویعنیهم فی الامور الدنیویه فشاور عمر فانه کان ممن یعتمد علیه الامة وکان اهل الشوری منه اهلالها ولائقالها.

پس مناسب نزد فقیر این ست که ازانکه اساس هجرت وجهاد نهاده اند وهرقسم قربانی کرده اندوحق اقتدار حاصل کرده اند این شوری رامنتخب کنند یعنې ازهرصوبه ومنطقه، تاکه حق قربانی ایشان ضائع نه شود البته تکالیف غیر مهاجرین مناسب است البته برائې ازمنه ائنده یقین اوصاف اهلیت شوری ضروری باشد.

**تنبیه**: مراد از مهاجرین ومجاهدین اهل حل وعقد ازایشان اند.

## د بهوک هړتال حکم او د سینیټ شریعت بل

**سوال**: (۱) علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د بهوک هړتال څه حکم دې جائز دې که ناجائز دې؟ که په دې وجه باندې سړې مړشو نو جنت ته به ځی که دوزخ ته؟ (۲) سینیټ چه نن صبا کوم شریعت بل منظور کړېدې داخو یوڅو کاله مخکښې غیرائینی اسمبلۍ تیارکړې وو نودې څه حیثیت دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: عزیزالرحمٰن جنرل سټورنریاب کوهاټ.... ۱۹۹۰ء ۱۹۱۶

**الجواب**: (۱) بهوک هړتال یو سیاسی چال دې او مباح دې لیکن په لوږې سره خودکشی کول ګناه کبیره ده او حرام دی.

(۲) ددې بل متعلق ټول علمائې کرام یوځائ شوې وو لیکن په نورو ذرائعو سره د حکومت والو منافقت ښکاره شو. وهو الموفق

## د کافرانونه د امداد اخستلو حکم

**سوال**: د دین او شریعت علمائې کرام دې مسئله کښې څه فرمائی چه بعضې



خلق د افغان کیمونسټ حکومت نه وسله او پیسې اخلی او په خلقو کښې ئې تقسیموی نو ایا په دې سره سړې کافر کیږی یا نه؟ یعنې د کافرانو نه دداسې امداد اخستلو څه حکم دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمد شریف ګیاخیل بنوں.... ۱۰ شوال ۱۴۰۸ ھ

**الجواب**: امداد خواستن ازکافر (مثلاروس وامریکه) جائز لیکن اگر این امداد باعث وسبب ترک جهاد یا کمزور شدن جهاد باشد حرام است نه که کفراست ونه شعار کفر، وهوالموفق

## سیاست او مذهب

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې کښې څه فرمائی چه یو سړې سیاست فضول ګڼړی او وائی چه سیاست د مذهب حصه نه ده دا علماؤ د دولت او اقتدار د حاصلولو یو ذریعه جوړه کړې ده نو دداسې سړی داخبره ترکومې پورې صحیح ده؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حافظ صدیق الرحمٰن لنډ پوره بنوں ۱۰ ربیع الثانی ۱۴۰۹ ھ

**الجواب**: په عربی کښې سیاست حکومت او تدبیر ته وئیلې شی او انبیاء علیهم السلام ټول په ټوله تدبیر کونکی وو ﴿۱﴾ او د حضرت موسی علیه السلام د زمانې نه په کښې حکومت هم راغلې، نو سیاست ته فضول وئیلو والا په غلطئ باندې دې، البته که ددې سړی مراد داموجوده بې دینه سیاست وی نو د علماؤ نه علاوه د نورو خلقو سیاست صرف د اقتدار دپاره دې او د علماؤ سیاست د اقتدار دپاره د دین دحفاظت دې، وهوالموفق

## د ووټ اخستل خرڅول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د ووټ اخستل خرڅول جائز دی که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: بادشاه میرشیرګړه ضلع مردان...۱۵ ربیع الثانی ۱۴۰۹ ھ

**الجواب**: ووټ د شفاعت او شهادت نوم دې او په دې کښې په یو باندې هم پیسې اخستل جائز نه دی، وهوالموفق

﴿۱﴾ عن ابی هریره رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال کانت بنواسرائیل تسوسهم الانبیاء کلما هلک نبی خلفه نبی (صحیح البخاری ص ۴۹۱ ج ۱ کتاب الانبیاء باب ماذکر عن بنی اسرائیل)

## د (دهری حکومت) سره د خپلو اغراضو د پاره د تعلقاتو حکم

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه (دهری حکومت) سره تعلق ساتل او د هغوی نه تنخواه اخستل څنګه دی او حال دا چه دا خلق خپل وطن ته راشی نو وائی چه مونږ د خپل غرض دپاره تلي وو او د هغوی نه مو وسلي اخستلي، نو دادسي روئي ساتلو څه حکم دي؟ لکه چه نن صبا په افغانستان کښي داسي کیږی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولاسید جمعدار سلارزو...۱۴۰۱ه ۲۹۱۴۱

**الجواب:** په دي روي سره دا مسلمان فاسق او بي عزته کیږی او د دهریانو په نظر کښي ضمیر فروش او اسلام فروش ښکاری او د مسلمانانو په نزد باندي مداهن ګرځی. وهو الموفق.

## د موجوده عوامی طرز انتخابات شرعی حیثیت

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه:

(۱) په میراث کښي دوخوریانې د یوبرابر ګرځولي شوي دی او په ګواهئ کښي دوه زنانه د یو سړی برابر ګرځولي شوي دی ددي صریح او قطعی حکم باوجود زنانه ته په ووټ ورکولو کښي د سړی برابر حق ورکول ایا دا د قرانی حکم نفی نه ده؟

(۲) د داسي دستور ساز اسمبلئ، انتخابات چه د هغي د انتخاباتو طریقه د قرانی نصوصو خلاف وی نو ایا دا د (اسلامی اسمبلئ) وئیلو حقداره ده؟ او ایا د دي مرتب کړي شوي دستور به د مسلمانانو دپاره قابل عمل وی؟

(۳) د پاکستان اکثر سیاسی جماعتونو دپاره سره د جمیعت علمائي اسلام وغیره د داسي د ستور ساز اسمبلئ په انتخاباتو کښي حصه اخستل د شریعت په رڼا کښي جائز دی که نه؟

(۴) داچه کوم غیر اسلامی انتخابات دی مسلمانانو دپاره ددي انتخاباتو بائیکاټ واجب یا مستحب نه دي؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حکیم شرین ګل ساول ډهیر مردان...۱۵ ربیع الثانی ۱۳۹۰ه

**الجواب:** ویثبت عقد الامامة باحد الامرین باستخلاف الخلیفة ایاه واما بیعة من تعتبر بیعته من اهل الحل والعقد ولایشترط بیعة جمیعهم الخ (المسامرة والمسایرة ص ۳۲۶)



ددي عبارت نه معلومه شوه چه بادشاه او امیر په مشوري او اکثري رائي سره هم مقررولي شی، اودا هم معلومه شوه چه مشوره او رائي ورکول د هر چا حق نه دي بلکه د اهل حل وعقد حق دي ځکه چه په دوی باندي د باقی خلقو اعتماد وی لیکن چه کله د خلقو اعتماد نامعلومه وی نو مجبوراً به عوامو طرف ته رجوع کیږی ځکه چه په اهل حل وعقد باندي اکتفاء دعوامی اعتماد په وجه باندي وو، نودا ووټ ورکول په حقیقت کښي د شفاعت او اعتماد اظهار دي چه په هغي کښي د مذکر او مؤنث هیڅ فرق نشته. (۱) لهذا د انتخاباتو دا طریقه قابل اعتراض نه ده خو نااهل او بي دینو ته ووټ ورکول او په هغه باندي اعتماد کول قابل د اعتراض دی او د شریعت سره متصادم دی، فقط.

## په دستور ساز اسمبلئ کښي د قطعی محرماتو په باره کښي رائي شماری کول

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه ددین اسلام په واضح، قطعی، منصوصی او حتمی قرانی محرماتو کښي به په قانون ساز ادارو او اسمبلو کښي تعداد ته کتلي شی او که نه؟ لکه د سود په شان قطعی اوخدائی فیصلي په باره کښي د اسمبلئ د ممبرانو رائي شماری په شریعت مصطفوی کښي څه حیثیت لری؟ ددي تجویز پیش کولو والا او د دوی د ملګرو په شریعت کښي څه حکم دي؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمد عبدالله عفی عنه لاهور..... ۱۹۷۳ء

**الجواب:** داسي تجویز پیش کول بغیر د مصلحت نه ناجائز دي البته د منافق او غیر منافق د امتیاز دپاره یا قانونی طور سره بندیدلو دپاره که داسي مصلحتونه وی نو جائز دي، وهو الموفق.

## اسلامی ښارونه د روس یا امریکي اسټیټ جوړول ظلم عظیم دي

**سوال:** علمائي کرام دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه:

(۱) دحضرت عثمان رضی الله عنه دانتخاب دپاره چه د عوامو دپاره کومه رائے اخستے شوے وه د مورخ ابن کثیر په الفاظو کی: حتی خلص الی النساء المخدرات فی حجابهن و حتیٰ سأل الولدان فی المکاتب و حتی سأل من یرد من الرکبان والاعراب الی المدینة فی مدة ثلاثة ایام بلیالیها (البدایة والنهایة ص ۱۷۶ ج۷ خلافت عثمان رضی الله عنه)

(امیر گرویک)، شمالی وزیرستان د پښتونستان د جوړولو دعوی کوی په
دافغانستان کښې هم د سرخ پوش پښتونستان نعره لګوی، نو پښتونستان
غوښتل او ازاد قبائل د حکومت پاکستان نه جدا کولو دعوی د
امیر گرویک)، دپاره د شریعت په رڼړا کښې جائز دی که نه؟ بینوا وتوجروا
المستفتی: مولوی ګل منیر خیسور شریف شمالی وزیرستان ۱۵ جنوری ۱۹۸۴ء

**الجواب:** د پښتونستان نعره په ظاهره یوه سیاسی نعره ده نه مطلوب شرعی ده او نه ممنوع شرعی ده، البته اسلامی ښارونه د روس او روس نواز قومونو استیټ جوړول ظلم عظیم دي لکه څنګه دا د امریکې او امریکه نواز خلقو استیټ جوړول ظلم عظیم دي.

## ښځو ته ووټ ورکول

**سوال:** محترم المقام زید مجدکم! د سلام مسنون او نیک دعاګانو نه پس ستاسو خدمت کښې دا عرض دي چه په شریعت کښې ښځو ته ووټ ورکول څنګه دی، ددې واقعې نه قطع نظر چه د صوبائی اسمبلۍ ممبرانو ښځې ته ووټونه ورکړی دی، نو ایا ښځې ته ووټ ورکول جائز دی که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولوی علی اکبر صاحب مدرسه عربیه انوار العلوم
میراخیل ضلع بنوں ۲۰ محرم ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** محترم المقام السلام علیکم! نه پس دي واضحه وی چه د ووټ مقصد د اعتماد اظهار او د اهلیت سفارش کول دی لهذا په شریعت مقدسه کښې چه زنانه د کومو ذمه دارو ادا کولو حقداره ده نو په هغې کښې ښځې ته ووټ ورکول جائز دی، او د کومو ذمه داریانو چه حقداره نه ده (لکه امامت کبری، صغری، خطابت وغیره) نو په هغې کښې ورته ووټ ورکول حرام دی، قال الله تعالی ومن یشفع شفاعة سیئة یکن کفل منها ﴿۱﴾ وقال الله تعالی ان الله یامرکم ان تؤدوا الامانات الی اهلها ﴿۲﴾ فقط.

## د اسلامی ائین نه نافذ کونکو سره د جهاد حکم

**سوال:** علمائې دین او د شرع متین مفتیان کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د ۲۵ کالونه مسلسل د پاکستان لیډران د اسلامی ائین د نافذ

﴿۱﴾ (پاره: ۵ سورة النساء رکوع: ۸ آیت: ۸۵) ﴿۲﴾ (پاره: ۵ سورة النساء رکوع: ۵ آیت: ۵۸)



کولو وعده کوی لیکن تر اوسه پورې یو هم دا وعده پوره نه کړه، اوس را روان کال مارچ کښې چه به کوم ائین نافذ کیږی دهغې متعلق هم وعده کوی چه اسلامی ائین به نافذ کوو. که خدائې مه کړه دې ځل هم ائین جوړ نه شو نو دې لیډرانو سره د اسلامی اصولو مطابق جهاد کول جائز دی که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولوی ملک عجب خان صدر اتحاد قبائل دره ادم خیل ۲۵/۱۰/۱۹۷۲ء

**الجواب:** حقیقت دادې چه اکثریت اسلامی نظام نه غواړی لکه چه دانتخاباتو نه معلومه شوه او یه اسمبلۍ کښې هم ظاهریږی. که دې ځل دې اسمبلۍ والو اسلامی نظام قائم نه کړو نو دې منافقانو سره به د طاقت مطابق جهاد فرض وی او د طریق کار تعین اوس نشی کیدلې فقط.

## سیاست شرعیه د اسلام حصه ده

**سوال:** یو بریلوی مولانا صاحب په تقریر کښې او وئیل چه دیوبندیانو د مرزائیت خلاف کوم تحریک چلولې وو دهغې د اسلامی مذهب سره هیڅ تعلق نه وو، بلکه دا یو سیاسی تحریک وو. ایا دا صحیح ده؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولوی غلام یحی پنډی ګهیپ. ۲۲ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** په سیاست او اسلام کښې هیڅ ټکراؤ نشته، سیاست شرعیه د اسلام حصه ده ﴿۱﴾ فقط.

## خدائی قوانین ترقیامته پورې د امن، ترقئ، اوخوشحالئ کفیل دی

**سوال:** یو مقتدر سړې چه (پرده) یو شرعی حکم دې ددې تشبیه د قید او جیل سره ورکوی او عملاً خلاف کوی په یوه موقع باندې ئې زنانو نه د پردې لرې کولو حکم اوکړو او هغه بې پردې کیناستلې. دا سړې د ملک د سرو سپینو مالک دې که هغه او غواړی نو د پردې حفاظت هم کولې شی، ائنده دا خطره هم ده چه هغه په خپلې جراتمندانه بداعمالئ سره چرته قران کریم منسوخ اونه ګرځوی دداسې سړې په باره کښې شرعی حکم څه دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: سعد الدین کان الله له..... ۱۴ ربیع الاول ۱۳۹۲ھ

﴿۱﴾ عن ابی هریرة عن النبی ﷺ قال کانت بنوا سرائیل تسوسهم الانبیاء کلما هلک نبی خلفه نبی وانه لا نبی بعدی وسیکون خلفاء فیکثرون قالوا فما تأمرنا یا رسول الله قال فوابیعة الاول فالاول اعطوهم حقهم فان الله سائلهم عما استرعاهم.
(صحیح البخاری ص ۴۹۱ جلد ۱ کتاب الانبیاء باب ماذکر عن بنی اسرائیل)

**الجواب:** الله تعالی حکیم مطلق چه کوم قوانین او احکامات د خاتم النبیین ﷺ په ذریعې سره رالیږلي دي نو دهغې لازم بېن دادې چه دا قوانین او احکام به ترقیامته پورې د امن، ترقئ او خوشحالئ کفیل وی، نو د خارجی اثر د وجې نه د ترقئ په لاره کښې رکاوټ ګڼړل اوختمول د الله تعالی په حکمت اوعلم باندې بې اعتمادی ده بلکه الحاد او زندیق توب دې، وهوالموفق.

## د بې دینه او کافرانو سره سیاسی اتحاد کول

**سوال:** علمائې دین دهغه سړی باره کښې څه فرمائی چه څوک د سوشلستانو یا کیمونستانو یادیو داسې تحریک او جماعت سره منسلک وی چه هغه سراسر یا ضمنی طور د اسلام د اصولو خلاف وی او د قطعی احکامو منکر وی نو دې قسم خلقو سره د اتحاد کولو څه حکم دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: عبدالکریم اکوړه خټک..۱۹۸۵ء۲۱۱۱۱۱

**الجواب:** کمیونزم او سوشلزم کافرانه نظامونه دی د دوی تحسین او تائید کول د کافرانو کارونه دی، البته د اسلام د مفادو په خاطر دیو کافر سره اتحاد ممنوع نه دې ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## د حکومت د زکوة په سستم کښې د جمیعت علمائې اسلام د پالیسئ تائید

**سوال:** په یو اجلاس کښې دا قرارداد منظور شو چه موجوده د زکوة طریقه کار د خالص سود یو شکل دې لهذا مدارس عربیه له ددینه انکار کول پکار دی لیکن تراوسه پورې مدرسې دا زکاتونه اخلی اوتاسو حضراتو وئیلي دی چه دا زکوة اخستل صحیح دی نو په اجلاس کښې چه ستاسو په حوالې سره داخبره شویده څومره پورې صحیح ده په دلائیلو سره ئې وضاحت اوکړئ؟بینوا وتوجروا.

المستفتی :محمد داؤد خان افغانی چارسده...۱۹۸۴ء۱۴۱۲۱۱

**الجواب:** د زکوة په موجوده طریقه کار کښې دوه خبرې قابل اعتراض دی،
اول: دا د سودی پیسو نه اخستل او په سود سره اخستل.
دویم: دا د کالج په طالب علمانو او د فوجیانو په بچو باندې خرچ کول او د

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین قوله و قد استعان علیه الصلاة والسلام ......... انه علیه الصلاة والسلام استعان فی غزوة خیبر بیهود من بنی قینقاع و فی غزوة حنین بصفوان بن امیه و هو مشرک .الخ (رد المحتار ص۲۵۷ ج۳ مطلب فی الاستعانة بمشرک فصل فی کیفیة القسمة)



هغوی پورې مخصوص کول.
ددینه علاوه په کښې قابل اعتراض څه خبرې ظاهراً نه معلومیږی.
**نوټ:** که د جمیعت علمائې اسلام په نزد باندې ددې اخستل د مصلحت خلاف وی نو څما د هغوی سره هیڅ مخالفت نشته. وهوالموفق.

## د مرزایانو اتحادی جماعت ته ووټ ورکول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یوجماعت مرزایانو سره (قادیانانو) اتحاد وی هغوی له ووټ ورکول یا په هغې کښې شاملیدل یا د هغوی تشهیر کول جائز دې که ناجائز؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: سید محمد صغیر شاه مینابازار کیمل پورشهراټک ۱۹۷۰ء۲۰۱۹۱

**الجواب:** که ددې جماعت سره د مرزایانو اتحاد د اسلامی نظام د حاصلولو دپاره وی نو ووټ ورکول ورته جائز دی او که دا اتحاد په دې ارادې سره نه وی نو ووټ ورکول ورته حرام دی برابره خبره ده چه مرزایان معاون اوتابع وی یا د جماعت سره برابر وی، وهوالموفق.

## د ختم نبوت په مسئله کښې د ،،خدمت،، د الفاظو صحیح مطلب

**سوال:** جناب مفتی صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک پیښور السلام علیکم! د پاکستان په مذهبی جماعتونو کښې د یوجماعت مولانا دا دعوی کړې وه (په لیکلو سره) چه په دې اخری زمانه کښې د ختم نبوت مسئلې کوم خدمت څمونږ جماعت کړې دې ددې مثال په تیرو دیارلسو پیړو کښې ملاویدل ګران دی ایا په دې عبارت سره خوبه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او دهغه نه روستو خلقو توهین نه وی شوې، هغوی خو د مرتدینو سره جنګونه کړې دی او جهنم ته ئې داخل کړی دی. بیا د هغوی نه روستو خلقو هم مرتدین د جهنم اور ته داخل کړی دی. لیکن نن صبا علماؤ خو نه چرته مرتد جهنم ته داخل کړو اونه ئې جنګ کړې دې او نبی ﷺ فرمائی. خیر القرون قرنی ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم الخ؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: محمد یعقوب بورې والا شهر ملتان ریل بازار...۱۹۷۹ء ۴۱۵

**الجواب:** کیدې شي ددې مولانا مراد علمي خدمت او په ژبې سره دليل بازي او مناظره وی چه په مخکنو پيرو کښې د ضرورت د نيشتوالی په وجه باندې نه وی شوې، اويا به دده مراد دا وی چه ځمونږ جماعت بغير د حکومت او اهل اقتدار د امداد نه کوم خدمت کړې دې آلخ لهذا دا الفاظ د مؤاخذې قابل نه دی. (لظهوره مراده) فقط.

## د ښځې اقتدار او حکمرانی

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زنانه په حکومت او اقتدار کښې د کوم حد پورې داخليدلې شی، شرعی حکم ئې واضح کړئ؟ ډيره مهربانی به وی.

المستفتی: محمد ارشاد اينډ برادرز پشاور شهر...۲ شعبان ۱۴۰۵ ھ

**الجواب:** زنانه په زوره باندې حکمران کيدلې شی ﴿۱﴾ ليکن بغير د طاقت نه حکمرانه جوړول ناجائز دی او د بی برکتئ باعث دی ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د مصلحت په وخت کښې مودوديانو سره اتحاد جائز دې

**سوال:** دجميعت علمائې اسلام د مودوديانو سره د اتحاد څه حکم دې؟ بينوا وتوجروا

المستفتی: محمدزرين ټل کوهاټ......۲۷ ذی الحجه ۱۴۰۲ ھ

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدين اذا تغلب آخر علی المتغلب وقعد مكانه انعزل الاول و صار الثانی اماما ...........فقد علم انه يصير اماما بثلاثة امور لكن الثالث فی الامام المتغلب و ان لم تكن فيه شروط الامامة و قديكون بالتغلب مع المبايعة و هو الواقع فی سلاطين الزمان نصرهم الرحمن.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۳۳۹ ج ۳ مطلب الامام يصير اماما بالمبايعة او بالاستخلاف باب البغاة)

﴿۲﴾ عن ابی بكرة رضی الله تعالیٰ عنه قال لقد نفعنی الله بكلمة ......... لن يفلح قوم و لوامرهم امرأة
(صحيح البخاری ص ۶۳۷ ج ۲ كتاب المغازی كتاب النبی الیٰ كسریٰ و قيصر)
وقال العلامة عبدالعزيز الفرهاری (والنساء ناقصات عقل و دين ......... وايضا هی مامورة بالتستر و ترك الخروج الیٰ مجامع الرجال و ايضا قد اجمع الامة علیٰ عدم نصبها حتی فی الامامة الصغریٰ
(النبراس شرح شرح العقائد ص ۳۲۱ و يشترط ان يكون الامام من اهل الولاية)



**الجواب:** چه هر کله د مصلحت په وخت کښې د هندوانو سره اتحاد جائز دې ﴿۱﴾ نو د بدنام مسلمانانو سره به څنګه ناجائزه وی. فقط.

## د اليکشن يعنی د انتخاباتو حکم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه اليکشن (انتخابات) د شريعت په رڼا کښې جائز دې که نه؟ بينوا وتوجروا

المستفتی: ماسټر روز مين خان واړئ ضلع دير....۲۵ صفر ۱۳۹۷ ھ

**الجواب:** اليکشن د (اظهاررائې) نوم دې او دخپل نمائنده انتخاب دې اسلام ددې اجازت ورکوی ﴿۲﴾ او په دې وخت کښې دملک ښه ښه مشران په دې کښې حصه اخلی کوم مولوی صاحب چه ددې مخالفت کوی هغه غلط وائی.

## ازاد اميدوارنه د ووټ ورکولو فتوی ورکول د سياست نه بې خبری ده

**سوال:** يو مولوی صاحب د ۷ مارچ انتخابات کښې د قومی اتحاد اميد وار نه د ووټ ورکولو فتوی ورکړه او په لسم مارچ باندې انتخاباتو دپاره ئې دخپل کلی د ازاد اميدوار په حق کښې فتوی ورکړه چه د ګاونډی حق زيات دې نو داسې مولوی صاحب پسې مونځ جائز دې يا نه؟ بينوا وتوجروا.

المستفتی: الطاف حسين عبد المجيد اينډ کمپنی ګندم منډی راولپنډی ۱۹۷۰ء

---

﴿۱﴾ قال الحصكفی و مفاده جواز الاسعانة بالكافر عند الحاجة و قد اسعان عليه الصلاة والسلام باليهود علی اليهود و رضخ لهم. قال ابن عابدين انه عليه الصلاة والسلام استعان فی غزوة خيبر بيهود من بنی قينقاع و فی غزوة حنين بصفوان ابن اميه و هو مشرك. (الدر المختار مع رد المحتار ص ۲۵۷ ج ۳ مطلب فی الاسعانة بمشرك)

﴿۲﴾ دحضرت عثمان رضی الله عنه دانتخاب دپاره چه کومه رائې اخستې شوې وه هغه عوامی رائې وه او کله چه اليکشن د اغيارو په لاسونو کښې وی او نتائج د عوامی رائې مطابق نه وی بلکه د پورته نه راځی نو بيا دا اليکشن هم نه دې بلکه سليکشن دې دې ته انتخابات وئيل غلط وی لهذا په آزاد انتخاباتو کښې عوامی رائې دشريعت په رو سره جائز ده:
كما يدل عليه كلام ابن كثير حتی خلص الی النساء المخدرات فی حجابهن و حتی سأل الولدان فی المكاتب و حتی سأل من يرد من الركبان والاعراب الی المدينة فی مدة ثلاثة ايام و بلياليها (البداية والنهاية ص ۱۴۶ ج ۷ خلافت عثمان رضی الله عنه) (مرتب)

**الجواب:** په دي تضاد باندي خو په مونځ باندي څه اثر نه پریوځی لیکن دا مولوی صاحب د سیاست نه بالکل ناواقفه دي، وهو الموفق.

## شاهراه ریشم د تحریک نظام مصطفی دپاره

## د اکابرو د هدایت مطابق بندول پکار دی

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره كښي څه فرمائی چه چين ته تللو والا لار (شاهراه رشيم) د بهټو صاحب د مخالفت او د تحريک نظام مصطفی د حاصلولو دپاره بندول جائز دی که نه؟ بينوا وتوجروا

المستفتی: عالمگير پټين کوهستان......١٩٧٧ء

**الجواب:** د سوشلزم د مغلوب کولو دپاره او د اسلامی نظام راوړلو دپاره چه کوم اقدام هم اوشی جائز دي البته مصلحت په دي کښي دي چه د اکابرو د هداياتو مطابق تحريک او چلولي شی. (دي پاره چه ګډوډی د تحريک دناکامیاب کیدلو سبب جوړنشی) وهو الموفق.

## د ښځو په جلوس کښي وتل

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه په جلوسونو کښي د ښځو وتل جائز دی که نه؟ یعني په شریعت کښي د ښځو د جلوس څه حکم دي؟ بينوا وتوجروا

المستفتی: عبدالله مرکزی جامع مسجد اسلام اباد.

**الجواب:** فقهائي کرامو ليکلی دی چه کله جهاد (فرض کفايه) وی نو ښځه به د خاوند د اجازت نه بغير نه ځی او چه کله (فرض عين) وی نو بغير اجازت نه تللي شی نو دغه شان به مظاهرو له وتل هم وی البته بي پردګی هر وخت ممنوع ده.

## د شرعی حقوقو خيال ساتلو سره سره د ښځو د جلسي جلوسونو حکم

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه ايا د ښځو جلسي جلوسونه جائز دی يا نه؟ چه د پردي خيال ساتل په کښي وی؟ بينوا وتوجروا.

المستفتی: نامعلوم.... ٢٢جمادی الاول ١٩٩٧ هـ



**الجواب:** بي پردګی حرامه ده د شرعی حقوقو خيال ساتلو سره سره ﴿١﴾ د اسلامی قوانينو د نافذ کولودپاره دا کوششونه او د ښځو چغي سوري وهل جائز دی. وهو الموفق.

## د اسلامی نظام دپاره جلسي جلوسونه کول جهاد دي بغاوت نه دي

**سوال:** نن صبا چه د قومی اتحاد خلق کومي جلسي جلوسونه کوی او د بادشاه وخت نه بغاوت کوی نود داسي فسادیانو او باغیانو خلقو شرعی سزا څه ده؟ د جواب احسان اوکړئ.

المستفتی: مياں کريم الدين کاکاخيل سرډهيری مردان.....١٩٧٧ء ٣١٨١

**الجواب:** غير مسلح قوم چه کله جلسي او جلوسونه کوی نو دوی ته باغيان وئيل د دين نه ناواقفيت ده، ﴿٢﴾ او حال داچه دا خلق د سوشلزم د کمزوري کولو او اسلامی نظام د راوړلو دپاره جهاد او کوششونو کولو والا وی.

**نوټ** : شرعی باغی مباح الدم وی. كذا فی جميع كتب الفقه، وهو الموفق.

## په موجوده سياست کښي د اسلامی نظام دپاره کوشش کول

**سوال:** موجود سياست يقينی جهاد دي که نه؟ بينوا وتوجروا

المستفتی: سميع الرحمٰن مردان گمبت

**الجواب:** د اسلامی نظام د قائمولودپاره کوشش کول يقينی جهاد دي والطريقة المروجة وسيلة له كما ان يوسف عليه السلام توسل بدين الملک. ﴿٣﴾ فافهم.

---

﴿١﴾ يجوز لهن الخروج اذا كان باذن الزوج تفلات مجتنبات عن لباس الزينة والتعطر واختلاط الرجال فما دامت النساء راعت هٰذه الشرائط فلا ضير فيه. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ١٦٩ ج٥) باب ماجاء فی خروج النساء فی الحرب)

﴿٢﴾ قال ابن عابدين ان المسلمين اذا اجتمعوا على امام و صارو آمنين به فخرج عليه طائفة من المؤمنين فان فعلوا ذالک لظلم ظلمهم به فهم ليسوا من اهل البغی و عليه ان يترک الظلم و ينصفهم و لا ينبغی للناس ان يعينوا الامام عليهم لان فيه اعانة على الظلم

(رد المحتار هامش الدر المختار ص ٣٣٨ ج٣ باب البغاة)

﴿٣﴾ قال الله تعالىٰ ما كان ليأ خذ آخاه فی دين الملک...... الآية (پ: ١٣ سورة يوسف ع: ٣ آيت: ٧٦)

### د علماؤ د پاره اسلامی نظام راوړل د اقتدار او کرسئ نه بغیر ناممکن دي

**سوال:** که په الیکشن کښې په مقابله کښې علمائي کرام مثلاً مفتی محمود صاحب وغیره امیدوار شی نو که یو سړي دي علماؤ ته ووټ ورنکړی نو شرعا به مجرم وی که نه؟ او بعضې خلق وائی چه علمائي کرام په انتخاباتو کښې صرف د کرسئ حاصلولو د پاره حصه اخلی د نظام مصطفی د پاره انتخابات نه کوی، او کومو خلقو چه تیرشوو انتخاباتو کښې د پیپلزپارټئ (ppp) او سوشلزم حمایت کړي د هغوی شرعی حکم څه دي؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: حافظ عبدالخالق ډی ائی خان... ۱۹۷۷ء ۱۹۱۹۱

**الجواب:** خبرشه چه په هر مسلمان باندې ضروری دی چه د اسلامی نظام راوړو حمایت او تعاون اوکړی، او د غیر اسلامی نظامونو لکه سوشلزم، کمیونزم، کیپټلزم، او فاشزم وغیره مقابله اوکړی نو چه کوم سړي ددې نه مخالف وی هغه به منافق وی او بعضې صورتونو کښې کافر کیږی مثلاً چه دا غیر اسلامی نظامونه د ترقئ باعث اومنی او اسلامی نظام د تنزل باعث اوګنړی، او دا خبره دې هم په ډاګه وی چه په دې زمانه کښې بغیر د اقتدار او کرسئ نه یو نظام راوړل ناممکن دی، نو په هر مسلمان باندې ضروری دی چه علماؤ کرامو سره په کرسئ او اقتدار حاصلولو کښې پوره امداد اوکړی، او د علمائي کرامو نه دا امید کیدې شی چه هغوی اسلامی نظام رائج کړی د نورو پارټیانو نه دا امید ساتل غلط دی او د تجربې نه خلاف دی، وهو الموفق

### دجمیعت علمائي اسلام حمایت اود جماعتی فیصلې مطابق ووټ استعمالول

**سوال:** په دې زمانه کښې هره پارټی د اسلام نعره وهی، نو مونږ له په کومه پارټئ کښې شمولیت او حمایت کول پکار دی چه الله او رسول ﷺ څمونږ نه راضی شی، دارنګې پیپلزپارټی د اسلام سره د سوشلزم نعره هم وهی، نو ایا سوشلزم اسلامی نظام دې، او په داسې جماعت کښې ورتلل او د هغوی حمایت کول څنګه دی او دوی ته ووټ ورکول څنګه دی؟ چه کله مذهبی څوک امیدوار نه وی؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: سیدمحمد بلوچستانی... ٦شعبان ۱۳۹۴ ھ

**الجواب:** په موجوده زمانه کښې د جمیعت علمائي اسلام حمایت کول ضروری دی دهغوی نه د اسلامی نظام توقع کیدلې شی، نورې پارټئ دخپل غرض



دپاره د اسلام نوم اخلی، نو چه کوم ځائ کښې د جمیعت نمائنده نه وی هلته د جمیعت د جماعتی فیصلې مطابق ووټ استعمالول پکار دی. فقط.

### د علماؤ د پاره اتحاد ډیر اهم او ضروری دي

**سوال:** بخدمت جناب محترمی ومکرمی شیخ الحدیث صاحب دامت برکاتهم، السلام علیکم! د خیریت نه پس عرض دادې چه موجوده سیاسی کشمکش عام طور سره او د علمائي دیوبند کشمکش خاص طور سره څمونږ دپاره یو لوئ مصیبت جوړ شوې دې ځکه چه نه خو په مدرسو کښې طالبان سبقونه وائی او نه په ارام سره یوه مدرسه کښې اوسیږی. او خاص کر په علمائي دیوبند کښې د جمیعت علمائي اسلام هزاروی ګروپ او تهانوی ګروپ اختلاف د طالبانو دپاره یو غټ مصیبت جوړ شوې دې ځکه چه کوم ځائ کښې د هزاروی ګروپ مدرسه ده هلته د تهانوی ګروپ سره تعلق والا طالبان نه ایساریږی، او په کوم ځائ کښې چه د تهانوی ګروپ مدرسه ده هلته د هزاروی ګروپ سره تعلق ساتلو والا طالبان په سکون کښې نه دی الخ؟ بینوا وتوجروا.

المستفتی: منجانب: محمد تاج اشرف العلوم گوجرانواله ۱۹۷۰ء ۱۴۱۹۱

**الجواب:** محترم المقام د وعلیکم السلام نه پس خبره داده چه د علمائي کرامو دپاره اتحاد ډیر اهم او ضروری دې او خاص طور په هغه وخت کښې چه دنیاداري پارټیانې د اتحاد دپاره او د اختلاف ختمیدلو دپاره محنت کوی نو علمائي کرامو دپاره به د اتحاد نه مخ اړول سراسر وبال وی څمونږ د طرفنه هیڅ انکار نشته لیکن صرف څمونږ په کوشش سره دا اتحاد ناممکن دې. فقط.

### د جمیعت علمائي اسلام د سواد اعظم، نه مخالفت کول غلطی ده

**سوال:** محترم جناب مفتی صاحب نن صبا د جمیعت په نوم سره یو ګروپ جمیعت علمائي اسلام دې او دویم ګروپ د (مرکزی جمیعت) په نوم سره کار کوی، او د یو بل مخالف دی، نو په دوی کښې کوم یو ګروپ په غلطئ دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: عبدالله کانګړه چارسده... ۲۲ ربیع الاول ۱۳۹۰ ھ

**الجواب:** د مرکزی جمیعت افراد لږ دی او د سواد اعظم نه مخالفت کولو په وجه باندې په غلطئ دی، دوی دپاره ضروری ده چه په دې نازک وخت کښې ددې خپلې روئې نه واپس شی جمیعت علمائي اسلام یو منظم کارکن، سرفروش او دهرې فتنې او زندقې مقابلې کولو والا جماعت دې او دهغوی

اراده ده چه په یو جماعت کښې هم مدغم نه شو بیشک نور جماعتونه د
دوی سره د دوی په منشور باندې یو ځائ کیدلې شي فقط.

### د جمیعت علمائې اسلام سره تعاون او الحاق ضروري دې

**سوال:** د سلام او ادابونه پس عرض دادې چه نن صباد بې دینه پارټیانو په مقابله کښې دوه مذهبي پارټیانې دی جمیعت علمائې اسلام او جماعت اسلامی، لیکن دا دوه پارټۍ هم په یو بل باندې د کفر فتوی لګوی مثلاً اوس اوس څمونږ په علاقه کښې د جماعت اسلامی علماؤ د جماعت اسلامی نه علاوه په ټولو باندې د کفر فتوی اولګوله ستاسو صاحبانو په خدمت عالیه کښې عرض دې د قران او حدیث په رڼا کښې اولیکئ چه مونږ په کومه پارټۍ کښې شریک شو چه خالص د اسلام د سربلندئ دپاره کوشش کوی او مکمل اسلامی نظام او شریعت محمدی نافذ کول غواړی او په کومه پارټۍ چه تاسو اعتراض کوئ په هغې باندې د قران او حدیث مطابق فتوی ورکړئ مونږ به ستاسو د فتوی رارسیدلو پورې یوې پارټۍ سره هم الحاق نه کوؤ؟ بینوا و توجروا.

المستفتی: محمد رسول کمبر لعل قلعه علاقه میدان ضلع دیر ۱۰ ربیع الثانی ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** د جمیعت العلماء په نزد باندې مودودی جماعت کافر نه دې خو په مودودی او د هغه په تابعدارو افرادو باندې د کفر خطره موجود ده، او د جماعت اسلامی په نزد باندې سوشلزم کفر دې لیکن د جمیعت علمائې اسلام په نزد باندې هم سوشلزم خلاف اسلام ډله ده، لهذا جمیعت العلماء ته سوشلستان او کمیونستان وئیل او د دوی کفر ثابتول غلط دی. په دې کښې شک نشته چه جمیعت العلماء د مکمل اسلامی نظام په نافذ کولو کښې محنت کوی او دا خلق بدنام نه دی په خلاف د جماعت اسلامی چه هغوی حدود جاری کول نه غواړی د هغوی په منشور کښې د حدود هیڅ تذکره نشته، دا رنګې هغوی ټول لاهوری ګروپونه او اکثر قادیانیان په اکثریت کښې د شاملولو وئیلې دی، او دا خلق بدنام هم دی، لهذا په هر دیندار مسلمان باندې ضروری دی چه د جمیعت العلماء سره الحاق اوکړی او د هغوی سره تعاون اوکړی. فقط

### جمیعت علماء اسلام له ووټ ورکول پکار دی

**سوال:** نن صبا ووټ کومې پارټۍ له ورکول پکار دی؟ بینوا و توجروا

المستفتی: فضل احد غلام احد بازار بټ خیله ملاکنډ ایجنسی ۲ جون ۱۹۷۰ء



**الجواب:** د جمیعت علماء اسلام، جماعت اسلامی او مرکزی جمیعت نه علاوه ټول جماعتونه د اسلامی قانون د نافذ کولو مطالبه نه کوی، نو ددې فرق نه بچ کیدل ډیر زیات ضروری دی او په دې دریواړو کښې جماعت اسلامی بدنام دې دا خلق تیډی اسلام او ماډرن اسلام غواړی چه په هغې کښې حدود هم نه وی او د مرزایانو په کښې هم ګنجائش وی، لهذا د دوی نه هم پرهیز ضروری دې. او مرکزی جمیعت والا ډیر کم دی او د هغوی کار کول د سواد اعظم نه په ځان له طریقې سره داهم غلطی ده، لهذا هغوی ته ووټ ورکولو سره مقصد نه حاصلیږی، نو بس تا دپاره ضروری ده چه جمیعت علمائې اسلام ته ووټ ورکړې دا اهل حق دی او د هرباطل مقابلې دپاره هر وخت تیار دی د دوی نه ډیره توقع او امید کیدلې شی. فقط

### جمیعت العلماء د هرې فتنې مقابلې کولو والا جماعت دې

**سوال:** مفتیان شرع څه فرمائی چه د علماء دوه ګروپه دی د مودودی صاحب جماعت او جمیعت علمائې اسلام، ددې دواړو ډلو متعلق په دوابه او کانګړه علاقه ډیر اختلاف دې لهذا مونږ ته اطلاع راکړئ چه په دې دواړو ډلو کښې کوم یو بهتره ده. دا رنګې په کانګړه کلی کښې د جمیعت العلماء یوه جلسه شوې وه، په هغې کښې مولانا ګل بادشاه صاحب امیر صوبه سرحد او نورو علماؤ په تقریر کښې ترديې پورې او وئیل چه مودودیانو پسې مونځ نه کیږی نو حقیقت حال نه مونږ خبردار کړئ؟ بینوا و توجروا

المستفتی: روح الله موضع کانګړه چارسده..... یکم جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** مودودی هم په اسلام کښې ترمیم او تجدید کړې بلکه د یهودیانو په شان د معنوی تحریف په جرم کښې مبتلا دې او په خپل منشور کښې ئې د حدودو جاری کولو څه تذکره نه ده کړې او اکثر بلکه ټول مرزایان ئې په اقلیت کښې د داخلیدلو نه بچ کړی دی او تجدید ملک چه د سوشلزم بنیادی طریقه ده هغه ئې جائز کړې لهذا ټولو مسلمانانو دپاره ضروری دی چه دې جماعت سره تعاون نه کوی ددې ماډرن او تیډی اسلام د نافذ کولو په بدله کښې د مکمل اسلامی نظام د نافذ کولو دپاره کوشش ضروری دې او جمیعت علمائې اسلام یو منظم، کارکن، سرفروش او د هرې فتنې او زندقې مقابلې کولو والا جماعت دې او د دوی اراده ده چه په چا کښې به نه مدغم کیږی او بیشکه نور جماعتونه د دوی سره الحاق کولې شی، خو د دوی په منشور، لهذا تاسو خلق د دوی سره بغیر شک شبهې نه شاملیدلې شئ او په جهاد کښې حصه اخستلې شئ. فقط

## د جمیعت العلماء او جماعت اسلامی د اسلام دعوٰی

**سوال:** محترمی ومکرمی صاحب عرض دادي چه د ضلع دیر په پاکستان کښې دمدغم کیدو سره په دې ملک کښې مختلفې پارټیانې په وجود کښې راغلی دی د هرې پارټي مقررین د قران او حدیث په رنړا کښې د خپلې مدعی په ثابتولو باندې د لیلونه ورکوی او په دې ریاست کښې مخکښې څه پارټی نه وه اوس مونږ حیران او پریشان حال یو چه په کومه پارټۍ کښې شرکت اوکړو؟ چه د اسلام د ترقۍ او عروج باعث اوګرځی نو مونږ د جمیعت علماء اسلام سره موافقت اوکړو که د جماعت اسلامی سره؟ د اسلام په دعوی کښې څوک صحیح دی؟ بینوا وتوجرا

المستفتی: سلطان ادریس باغدوشخیل تالاش ریاست دیر... ۱۳۸۹ ھ

**الجواب:** جمیعت علمائې اسلام د شرعی قانون په نافذ کولو کښې کوشش کوی. لهذا د دوی سره الحاق ضروری دې او نورې پارټیانې خو یا د اسلام نوم د دهوکې دپاره اخلی او یا د دهوکې دپاره نه وی خو په هغوی باندې خطره ده چه هسې نه ماډرن اسلام ئې مراد وی لکه جماعت اسلامی لهذا د دوی سره الحاق نه کول ضروری دی. فقط.

## د جماعت اسلامی د غیراسلامی خیالاتو نه بچ کیدل پکار دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه جماعت اسلامی ته اسلامی جماعت وئیل صحیح دی که نه؟ ځکه چه اکثر اکابرینو او لویو لویو علماؤدوی په خیالاتو او بعضې غلط نظریاتو باندې نیوکه کړې ده؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: مولوی فضل الرحمٰن کوټهه صوابی مردان.... ۱۹۶۹ء ۸۱۹۱

**الجواب:** دمسلم لیګ، نظام اسلامی پارټی او جماعت اسلامی د غیراسلامی خیالاتو نه بچ کیدل ضروری دی نوم چه هرڅنګه وی په نومونو اعتراض کول بې مقصده کار دې.

## په جماعت اسلامی او جمیعت العلماء کښې فرق

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دې وخت کښې په پاکستان کښې دوه جماعتونه په منظم طریقې سره د اسلامی نظام دعوت



کونکی دی، یو جمیعت العلماء او دویم جماعت اسلامی، د دوی دواړو خپل مینځ کښې سخت اختلاف دې نو دې دواړو کښې د کوم جماعت سره اشتراک او تعاون پکار دې او د کوم جماعت عقیدې او نظریات د اسلام او سلف صحالحینو د تعبیراتو مطابق دی؟ د جواب مهربانی اوکړئ.

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** په دې دواړو جماعتونو کښې د جمیعت علمائې اسلام عقیدې او نظریات د اسلامی او سلف صالحینو د تعبیر کړې شوې دین موافق دی، نو د جمیعت العلماء سره تعاون او شریکیدل ضروری دی ترڅو چه د خود غرضه خلقو اله کار نه وی او جماعت اسلامی بدنام دی د دوی اسلام ماډرن اسلام دې فقط.

## په مودودی جماعت. تبلیغی جماعت او جمیعت العلماء کښې په کوم جماعت کښې کار کول پکار دی

**سوال:** محترمی مکرمی صاحب حضرت مفتی محمد فرید صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه ختک. د مولانا مودودی جماعت اسلامی. تبلیغی جماعت او جمیعت العلماء په باره کښې ستاسو حضراتو رائې څه ده. په کوم جماعت کښې کار کول د ثواب کار دې. بعضې خلق جماعت اسلامی د. ادخلوا فی السلم کافةً، مصداق ګرځوی، څمونږ راهنمائی اوکړئ؟

المستفتی: مولوی محمد افضل خان شاه پور کانا سوات ۱۹۶۹ء ۲۹۱۹۱

**الجواب:** د مودودی صاحب او دهغه (د تفرداتو) په هم خیاله خلقو باندې د کفر سخته خطره ده. ځکه چه د هغوی په نزد باندې قادیانیان (لاهوریان) کافران نه دی او حال دادې چه دا خلق د معجزاتو نه منکر دی. او د حضرت عیسٰی علیه السلام د پلار په کیدلو قائل دی (چه یوسف نجار دې) او تبلیغی جماعت نیک او بااثره جماعت دې. په دوی کښې بعضې کسان (چه هغه معلمینو او متعلمینو ته د درسونو په وخت دعوت ورکوی یا بال بچ والا محتاج د ځآن سره په بوتللو مجبور کوی) په غلطۍ دی. په جمیعت العلماء کښې کار کول د ثواب کار دې (دا د علماء سواد اعظم دې) اګر چه جماعت اسلامی صرف منظم او مالدار تنظیم دې.

ورهما از جهاں شود معدوم پس نیا بد بزیر سایهء بوم........ وهو الموفق

## موجوده وخت کښې اهل حق جمیعت علمائې اسلام ته ووټ ورکول جهاد دې

**سوال:** ووټ ورکول جائز دی که نه؟ او د ووټ حقداره کومه پارټی ده؟ جواب

راکړئ مهربانی به وی.- المستفتی : شاه نواز ضلع دیر... ۱۹۷۶ء ۱۷/۳/۱

**الجواب:** د حق اوباطل د مقابلې په وخت کښې اهل حق ته ووټ ورکول جهاد دې په موجوده وخت کښې اهل حق جمیعت علماء اسلام دې او کوم ځآئ کښې چه د جمیعت العلماء امیدوارنه وی نوهلته د جماعتی فیصلې مطابق عمل کول پکار دی، وهو الموفق.

## جمیعت علمائې اسلام د اعتماد، الحاق او تعاون قابل جماعت دې

**سوال:** نن صبا پاکستان کښې د مختلفو نظریاتو والا پارټیانې دی مونږ خلق په کښې د حق جماعت تمیز نه شو کولې تاسو فکر والا او علم والا خلق ئې نو ستاسو په نزد باندې قابل اعتماد او قابل الحاق کومه پارټی ده چه مونږ په کښې شامل شو؟ بینوا وتوجروا...

المستفتی: رحمٰن الدین ضلع دیرملاکنډ ډویژن

**الجواب:** جمیعت علمائې اسلام د اکابرین علمائې دیوبند یو نمائنده مذهبی او سیاسی جماعت دې چه د هغوی منشور قران او سنت، د مملکت نظام جوړول دی او د دوی ماضی او تاریخی تسلسل هم بدنام نه دې نو جمیعت علمائې اسلام چه د علماؤ سواد اعظم دې دې کښې شاملیدل، الحاق او تعاون کول پکار دی. فقط

## د جمیعت علمائې اسلام مقصد او نصب العین

**سوال:** کوم سړې چه جمیعت علمائې اسلام ته د قومی اسمبلئ ووټ ورنکړی نو دهغه سړی څه حکم دې؟ او نورو پارټیانو ته د ووټ ورکولو یا نه ورکولو څه حکم دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: رحیم الله اضاخیل بالانوشهره ۱۹۸۸ء ۱۱/۱۱/۳

**الجواب:** د جمیعت علمائې اسلام نه علاوه د نورو پارټیانو نصب العین د اسلام سره متضاد دې نو د هغوی نصب العین حق منل او د جمیعت علمائې اسلام نظام او نصب العین غلط او د تنزل باعث ګڼړل ښکاره کفر دې، او دې نورو پارټوته ووټ ورکول د دین سره د شمنی ده او چه کله د جمیعت علمائې اسلام امیدوار مقرر نه وی نو چاته ووټ مه ورکوئ، بهر حال جمیعت علمائې اسلام مکمل اسلامی نظام راوړل غواړی او په جماعت اسلامی باندې خطره ده چه هغوی چرته تیډی اسلام رانه ولی او مسلم لیګ صرف د اسلام نوم قدرې باقی ساتل غواړی، او نیشنل پارټی او پیپلزپارټی د اسلام نوم هم ختمول غواړی. فقط.



## پیپلزپارټی، مسلم لیګ نیشنل وغیره سره اتحادکول اوهغوی ته ووټ ورکول

**سوال:** په پاکستان کښې مختلف سیاسی پارټیانې دی مثلا پیپلزپارټی، مسلم لیګ او نیشنل پارټئ وغیره د یو مذهبی پارټئ دوی کښې یوې سره اتحاد کول څنګه دی؟ او دوی ته ووټ ورکول څنګه دی؟ جواب راکړئ.

المستفتی: سید رحیم الله باچا اضاخیل بالانوشهره ۱۳ رمضان ۱۴۰۵ هـ

**الجواب:** پیپلز پارټئ نیشنل پارټئ او مسلم لیګ ته ووټ ورکول ناجائز دی دا ټول د کافرانه نظام حفاظت کونکی دی دا د چین روس او امریکې په اشارو باندې چلیږی خو چه کله د اسلام د مفادو دپاره عیسایانو سره اتحاد جائز دې لکه چه حدیث شریف کښې راغلی دی ﴿۱﴾ نو دانشور علماؤ (حضرت مدنی رحمه الله مفتی محمود رحمه الله) د اسلام د مفادو دپاره داسې اتحاد جائز ګرځولې دې خو دومره ده چه په هغوی کښې ادغام (بالکل ورننوتل) بیاهم ناجائز دی چونکه د پیپلزپارټئ، نیشنل پارټئ او مسلم لیګ نصب العین او منشور د اسلام سره متضاد دې دا خلق د سوشلزم، کمیونزم (کپیټلزم) او سیکولرازم حمایت کونکی دی چه د اسلام مخالف دی نو دوی ته ووټ ورکول حرام دی او د اسلام سره دشمنی ده البته د اسلام د مفادو دپاره ورسره اتحاد جائز دې دانشور علماؤ مثلا حضرت مدنی، حضرت عثمانی او مفتی محمود رحمه الله دوی سره اتحاد کړې دې او د ادغام نه ئې ځان ساتلې دې او موجوده زمانه کښې د تجربې نه ثابته ده چه دا پارټیانې اهل حق ته دهوکې ورکوی او خاص طورسره د مسلم لیګ دهوکه خو اظهر من الشمس (د نمرنه هم زیاته ښکاره ده) لهذا د (لایلدغ المومن من جحر واحد مرتین) حدیث په وجې سره د اتحاد نه ځانله والی کښې سلامتیا ده فقط.

## د سوشلزم خلاف تحریک چلول د ثواب کار دې

**سوال:** نن صبا چه د سوشلزم او بهټو خلاف کوم تحریک روان دې او مفتی محمود ئې قیادت کوی نو ددې تحریک شرعاً څه حکم دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی : مولولی عبدالحکیم جنډ امیان والی... ۱۹۷۷ء

---

﴿۱﴾ عن ابن عمر رضی الله عنهما قال حاربت النضیر و قریضة فاجلی بنی النضیر و اقر قریظة و من علیهم حتی حاربت قریضة فقتل رجالهم و قسم نساء هم و اولادهم و اموالهم بین المسلین الا بعضهم لحقوا بالنبی ﷺ الخ (صحیح البخاری ص ۵۷۴، ج ۲ کتاب المغازی باب حدیث بنی النضیر)

﴿۲﴾ (صحیح البخاری ص ۹۰۵ ج ۲ کتاب الادب باب لایلدغ المؤمن جحر مرتین)

**الجواب:** سوشلزم د اسلامی نظام سره متضاد دې ددې خلاف تحریک چلول د ثواب باعث کار دې. وهو الموفق.

### په اسلام کښې د سیاسی اومعاشی ژوند مکمل راهنمائی موجود ده

**سوال:** ایا په سیاسی معاملاتو کښې قران خاموش (چپ) دې؟ ایا ددې خبرو متعلق په اسلام کښې هدایات او احکام موجود دی؟ دا رنګې سوشلزم او جمهوریت چه هرسړی دپاره ډوډۍ، جامې او کور مفت (بې پیسو) دی ایا په اسلام کښې ددې کارونو متعلق څه پرګرام نشته، دا رنګې د سیاسی حالاتو متعلق د سوشلزم نظریه اختیارول چه خپله عقیده دې صحیح وی نو ایا دې کښې څه قباحت شته؟ اسلام دې باره کښې څه فرمائی؟ بینوا بالدلیل توجروا عند الجلیل.

المستفتی: میاں محمد دین جامعه حنفیه ضلع لائل پور ۱۰ ذی قعده ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** (۱) قران او حدیث د ژوند یو مکمل قانون دې دسیاسی معاملاتو باره کښې دده چپ کیدل د عقل او د واقعې نه خلاف دی په دې کښې د سیاسی معاملاتو اصول په شاهانه طریقې سره بیان او ذکر دی، که په دې کښې سیاست نه وی نو غیر اسلامی سیاسی جماعتونو ته به ئې بدترین شکست نه ورکولو. (۲) په اسلام کښې بې کارتوب، فضول خرچی، حسد، حرام کاری، تعصب وغیره ممنوع دی د زکوٰة، عشر، تصدق، رحم، او همدردۍ وغیره حکم په کښې ورکړې شوې دې، چه په هغې باندې عمل کولو سره غریبانان او مالداران دواړه په اطمینان سره ژوند تیرولې شی.

(۳) دا عملاً ناممکن دی ځکه چه د جاګیردارونه اخستل هغه وخت جائز دی چه دا جاګیرونه د پخوانو خلقو نه په زور اخستلې شوې وی او انګریزانو (مثلاً) دې جاګیردارانو ته په انعام کښې ورکړې وی نو دا وخت دا جائز دی چه ددغه جاګیدارونه دا جاګیرونه واخستلې شی او پخوانو کسانو او یا دهغوی وارثانو ته دې واپس کړې شی، اودانه دی جائز چه د ټولو جاګیردارونه جاګیرونه واخستلې شی او پردو خلقو باندې تقسیم کړې شی دا رنګې سرمایه دارد زکوٰة او عشر نه زیاتی مال جمع کولو باندې مجرم نه دې نو دا شرعاً نه دی جائز چه دهغوی د رضا نه بغیر د هغوی نه په زور باندې مالونه واخستلې شی او دغه شان د کارخانو د املاکو حکم هم دې (۱) فقط

﴿۱﴾ عن ابی حرة الرقاشی عن عمه قال قال رسول الله ﷺ الا لا تظلموا الا لا یحل مال امرء الا بطیب نفس منه. رواه البیهقی فی شعب الایمان و الدار قطنی فی المجتبیٰ.
(مشکواة المصابیح ص ۲۵۵ جلد ۱ باب الغصب والعاریة)



### د اسلام په اقتصادی نظام او سوشلزم کښې عملی مطابقت بالکل ممکن نه دې

**سوال:** محترم جناب مفتی صاحب مدظله العالی به معرفت حضرت مولانا عبدالحق صاحب رحمه الله نن صبا په ملک کښې د سوشلزم او د اسلامی سوشلزم نعره لګولې کیږی؟ (۱) ایا د اسلام خپل څه اقتصادی نظام نشته؟ (۲) ایا په اسلام او سوشلزم کښې مطابقت ممکن دې؟ ددې دوه سوالونو جوابونه راولیګئ مهربانی به وی.

المستفتی: اکرام الله زید ګنج لائل پور.....۱۹۷۹ء/۱۱/۲۶

**الجواب:** (۱) دا د زکوٰة وغیره نظام د اسلام مستقل اقتصادی نظام دې (۱) (۲) په عملی طورسره ناممکن دې فقط.

### اسلامی سوشلزم، اسلامی جمهوریت اوپاکستان صرف زړه راخکونکی الفاظ دی

**سوال:** علمائې دین څه فرمائی چه ایا په اسلام کښې د اسلامی سوشلزم څه ګنجائش شته دلته چه کوم خلق د سوشلزم نعرې لګوی هغوی ورته اسلامی سوشلزم وائی او داخلق دالله تعالی د ذات، پیغمبرانو، فرښتو او قیامت منکر هم نه دی بلکه صرف دا وائی چه بعضې څیزونه په قومی ملکیت کښې اخستل دی، لوئ صنعتونه سرمائې او جاګیرونه خو څه کوې دا څیزونه په قومی ملکیت کښې اخستل ناجائز دی اوچه کله ورته اسلامی سوشلزم وائی نو بیا د ناجائز والی څه وجه ده وضاحت اوکړئ؟

المستفتی: امیرمقام شیرګړه مردان

**الجواب:** د اول نه په اسلامی سوشلزم، اسلامی جمهوریت اوپاکستان وغیره زړه

﴿۱﴾ عشر، خراج جزیه، زکوٰة، صدقات، فی، خمس، ضرائب، کراء الارض، عشور، وقف، اموال فاضله وغیره دغسې ممنوع جواری، سټه. سود. ذخیره اندوزی وغیره دغسې مضاربت، شرکت، بیوع وغیره۔ مولانا حفظ الرحمٰن سیوهاروی فرمائی داسلام معاشی نظام یوداسې عامه فلسفه باندې قائم دې چه دهغې نوم اسلام دې. چه دا عالمګیر دعوت او عام انقلاب طرف ته داعی دې، اوددنیا دانسانو صرف معاشی صلاح اوکامیابی نه غواړی، بلکه روحانی، مذهبی، اخلاقی، سیاسی، معاشرتی، اومعاشی غرض هرقسم دینی اودنیوی کامیابی اوکامرانی اوهدایت غواړی، ـــ په دې وجه دا دژوند هرې شعبې دپاره د یوصالح اجتماعی نظام غوښتونکې دې. اوهم ددې ژوند یوه شعبه صالح نظام معاش هم دې. (اسلام کا اقتصادی نظام ص۲۶ حفظ الرحمٰن سیوهاروی)

راخكونكو الفاظوسره علماء اله كار جوړوي بيا روستو علماء بې كاره ثابتوي.دارنګې د ټولو سرمايه كارانونه سرمايه اخستل او ټولو جاګيردارانو نه جاګيرونه اخستل په اسلام كښې ناجائز دي او په جائز اوناجائز كښې په ثبوت شرعي سره امتياز كول ناممكن دي او دا دغرض والوخلقو نصب العين هم نه دې، دا څما رائې ده دې باره كښې تاسو نوروسياسي علماؤ (جميعت علمائې اسلام) طرفته هم رجوع اوكړئ، فقط.

## د سوشلزم حمايت كونكوته د ووټ وركولوحكم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائي چه د سوشلزم دعوت وركونكې پارټۍ ته د ووټ وركولو څه حكم دې؟ بينوا وتوجروا

المستفتي : فيض الرحمن دره ايبټ اباد

**الجواب:** كه چرې سوشلزم د ترقۍ باعث ګڼړی او اسلام زوړ نظام تصور كوي نو دې سړی خپل ځآن د اسلام نه اوويستلو اوكه د ويرې قوميت او عصبيت په وجه باندې سوشلزم ته ووټ وركوي نو منافق دې كافرنه دې، وهو الموفق

## د سوشلزم خورولووالا سره د قتال مسئله

**سوال:** چه كله سوشلزم كفر دې نو ددې خورولووالا سره جنګ ولې ناجائز دې؟ بينواوتوجروا

المستفتي : مولوی عبدالله لورالائی بلوچستان

**الجواب:** د هرجائز كار دپاره جداجدا وخت وی، داكابرود هداياتو سره موافقت كولو كښې مصلحت دې وهو الموفق.

## د سوشلزم والوسره د جنګ په مسئله باندې په دويم ځل سوال

**سوال:** ستاسو د فتوى عبارت (چه د هركار دپاره جداجدا وخت وی مصلحت د اكابروپه هداياتو كښې دې) دادوضاحت محتاج دې؟

المستفتي : مولوی عبدالله مدرسه عربيه لورالائی بلوچستان

**الجواب:** ددې سوالاتو د تفصيلي جواباتونه مونږ د مصلحت په بنياد باندې ممنوع او معذور يو فقط.



## د مرزائي فرقې سره سياسي اتحاد د سوشلزم او اهل حق علماؤ پيژندګلو

**سوال:** (۱) يو سړې د مرزايانو قاديانی ډلې ته كافر وائي ليكن لاهوري ډلې ته كافر نه وائي نو داسې خلقو سره د سياسي اتحاد په باره كښې څه حكم دې؟

(۲) يو سړې د علمائې حق په نظر ضال او مضل دې د هغوی يو سياسي تنظيم دې په ملك كښې د اسلام نافذ كولو دپاره هغوی سره د اتحاد كولو ضرورت راځي او دا ګمراه او ګمراه كونكې سړې د خپلې ګمراهئ نه رجوع هم نه كوی نو ايا د هغوی سره اتحاد جائز دې اوكه ناجائز؟

(۳) يو سړې دې دا ذكرشوې ګمراه نه دې اسلام د ژوند كامل او مكمل قانون ګڼړی مګر په غلطئ سره د اسلامي سوشلزم اصطلاح د اسلامي مساواتو هم معنى ګرځوی نو د داسې سړی څه حكم دې؟

(۴) كه په دې برنو (۲) يا (۳) كښې د يو سره اتحاد كول يا الحاق كول وی نو اهون البليتين به كوم يو وی؟ بينواوتوجروا

المستفتي : محمد حمزه نعيم ايم اے پاكستان
قومي عجائب ګهر محمد بن قاسم باغ كراچي نمبر ۱

**الجواب:** (۱) په دې سړې باندې د كفر سخته خطره ده، داسې سياسي اتحاد كول چه په هغې سره مرزايانوته په اكثريت كښې د داخليدلو بهانه موجود وی نودا الحاد او زندقه ده. (۲) ددې فرقې سره د علماؤ اتحاد او داسې فرقه باندې اعتماد كول د خداترسه علماؤ سره مناسب نه دی. (۳) اسلامي مساوات يو مبهم لفظ دې كه ددې داسې تشريح اوكړې شي چه د اسلامي اصولوسره متصادم نه وی نو دا مساوات د اعتراض قابل نه دی ګنې نو داعتراض قابل دی.

(۴) دلته د (اهون البليتين) صورت نشته ځكه چه جميعت علمائې اسلام اهل حق دی او د مكمل اسلامي نظام غوختونكي دی او دهغوی د چاسره هم اتحاد يا الحاق كول څما په خيال كښې مضر نه دی او دوی سره ددې (علماؤ) په منشور باندې اتحاد كول صحيح دی. فقط

## اسلام نه سوشلزم نبی كريم ﷺ ته د سوشلزم علمبردار وئيل

**سوال:** يو څو عبارتونه ستاسو خدمت كښې وړاندې كوم چه په هغې كښې د

نبی کریم ﷺ شخصیت او د هغوی راوړلې شوې دین مکمل سوشلزم ګرځولې شوې دې او بله داچه نبی کریم ﷺ د اسلام او سوشلزم تکمیل کړې دې او که حضرت عیسی علیه السلام د تجرد ژوند نه تیرولې نو د هغه ژوند به د موجوده اشتراکیت د پاره بنیادی اصول جوړ شوې وو، حج ئې هم د اسلامی سوشلزم مظاهره ګرځولې، من وعن الفاظ لاندې دی.

(۱) افسوس دې چه مسلمانانو د انحضرت ﷺ ددې عظیمې کارنامې او دهغه د ډیر زیات اوچت سوشلزم قدر اونکړو د عربو بزرګ ترین سوشلسټ د رنګ او ملت فرقونه ختم کړل.

(۲) خدائې تعالی رحمة للعالمین راولیږه هغه په خپلو اسلامی اصولو سره د عرب دنیاپه ټولو معاشرو کښې یو حیران کونکې انقلاب پیدا کړو، که د عربو نوې او پرشکوه ژوند د سوشلزم په ذریعه سره وې نو د ټولې دنیا د اسلام په ذریعه او د سوشلزم او اسلام چه چا تکمیل کړې دې دا هغه سچائی نتیجه وه، الخ ددې عبارت متعلق د شریعت څه حکم دې؟

**نوټ:** ستاسو صاحبانو د مخکښې نه هم فتوی موجوده ده چه دا د کمیونسټانو انقلاب دې او د کمیونسټانو حمایت کونکی هم د هغوی په حکم کښې دی.

المستفتی: عبدالحئ مندوخیل ناظم مدرسه ریاض العلوم
ژوب بلوچستان ۲۷ اګست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** که ددې سوشلسټانو په نزد رسول الله ﷺ بزرګ سوشلسټ دې او اسلام بلند ترین سوشلزم دې نو هغوی د اسلام او مسلمانانو مقابله ولې کوی او په کومو ملکونو کښې چه د اسلام د پاره کوششونه کیږی هلته د سوشلسټانو د رکاوټونو څه ضرورت دې؟ که سړې خور قوم محتاجو انسانانو ته اووائی چه ویریږئ مه! څمونږ خواته راځئ ستاسو د ټولو مسئلو او حاجتونو حل مونږ سره دې نو ایا دا به د تسلیمولو قابل خبره وی.

**نوټ:** مونږ د مخکنئ فتوې حمایت او تائید کوو. وهو الموفق

## سوشلسټانوته د ووټ ورکولو او علماؤ ته د کنځلو کولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی (۱) چه یو سړې وائی اسلام



زمونږ دین دې، سوشلزم څمونږ معیشت دې او د طاقت سرچشمه عوام دی. (۲) یو سړې بنه په سوچ سره ددې عقیدې پارټئ پیپلزپارټئ ته ووټ ورکوی (۳) کوم خلق چه وائی مونږ اتحاد ته ووټ ورکړې دې ددې نه علاوه په مونږ باندې هیڅ ذمه داری نشته او د بائیکاټ په وخت کښې ئې بیا بائیکاټ اونکړو، (۴) هغه خلق چه سوشلزم ته ووټ ورکوی او علمائې کرامو ته کنځلې کوی د هغوی په باره کښې د شریعت څه حکم دې؟ (۵) هغه خلق چه په الیکشن کښې ئې یوې پارټئ ته هم ووټ ورنکړو دهغوی په باره کښې د شریعت څه حکم دې؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: کس شاه ضلع دیر ۱۹۷۸ء ۱۱۸۱

**الجواب:** (۱) خبرشئ چه سوشلزم د اسلام سره متصادم نظام دې نو چه کوم سړې سوشلزم د ترقئ باعث ګڼړی او اسلامی نظام د تنزل باعث او د زمانې سره ناموافق منی نو هغه مسلمان نه دې ددې سړی د الله تعالی په علم او حکمت باندې اعتماد نشته دې. (۲) کوم سړی که ددې مخکښنی اعتقاد مطابق ووټ ورکړې وی نو هغه مسلمان نه دې او کوم سړی که د طمع یا ویرې او یا د قومیت په بنیاد باندې ووټ ورکړې وی نو هغه منافق دې کافر نه دې، (۳) بائیکاټ نه کول د جهاد نه کولو په حکم کښې دی. (۴) یو عالم ته کنځل کول فسق دې او عام علماؤ ته کنځل کول کفر دې په حقیقت کښې دا سړې د علم او دین سپکوالې کوی. (۵) بې خبره سړې معذوره دې او باخبره به نیولې کیږی. وهو الموفق.

## د حکومت سره د تعاؤن په باره کښې تپوس

**سوال:** د موجوده حکومت نظریه د اسلام په نفاذ کښې مخلصانه ده که غیرمخلصانه؟ مونږ د قبائلو خلق په فکر کښې یو چه تعاؤن ورسره او کړو که نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: ملک عجب خان افریدی دره ادم خیل ۱۴۰۱/۷/۲۲ه مطابق ۱۹۸۱ء

**الجواب:** ماته په دې کښې شک دې چه دا سړې مخلص نه دې یا بهادر نه دې. فقط.

# قال اللہ تعالیٰ

فَلَوْلَا نَفَرَ

مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ

مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ

لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ

(الاٰية)





# مسائل شتی

# مسائل شتی

په دې باب کښې مختلف النوع اهم مسئلې جمع کړې شوې دی چه د ضرورت په وخت کښې حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم لیکلې دی او بیا وخت په وخت په درې میاشتنۍ رساله (الفرید) کښې د دارالافتاء په عنوان سره شائع شوې دی، اګرچه د بعضو مسئلو به د تیرشوبابونو سره تعلق وی خو اکثرغیرمتعلق الابواب مسئلې دی و ددې وجې نه (الفرید) جلد نمبر ۱ شماره اول نه ترجلد نمبر ۳ شماره څلورم پورې مسئلې مو رابوخائ کړې او د (مسائل شتی) په عنوان سره مود فتاوی سره شامل کړې. (ازمرتب)

## په سنتۍ کښې د میلمستیا دعوت

**سوال:** په سنتی (ختنه) کښې دعوت کول جائز دې که ناجائز دې؟

**الجواب:** په سنتی کښې دعوت کول جائز دې لیکن معمول نه وو.

**كما فى الهندية ص ۳۴۳ جلد ۵ لا ينبغى التخلف عن اجابة الدعوة العامة كدعوة العرس والختان و نحوهما و اذا اجاب فقد فعل ما عليه يدل عليه ما فى ادب المفرد قال سالم ختنى ابن عمر رضى الله عنه و نصيحا فذبح علينا كبشا فلقد رايتنا و انا لنجذل به على الصبيان ان ذبح عنا كبشا (رقم حديث: ۱۲۴۶)**

او په معمول نه کیدلو باندې د مسند احمد حدیث دلالت کونکې دې: وليمة الختان لم يكن يدعى لها.

## د مړی مخ کتل جائز دی

**سوال:** د مړی مخ کتل جائز دی که ناجائز؟

**الجواب:** د مړی کتل جائز دی:

**كما فى الهندية ص ۳۵۱ جلد ۵. لاباس بان يرفع ستر الميت ليرى وجهه. وان يكره ذالك بعد الدفن. وقد ورد فى الحديث ان النبى ﷺ رأى وجه عثمان بن مظعون و رأى ابو بكر رضى الله عنه وجه النبى ﷺ و قبله (رواه البخارى)**



## په دواړو لاسونو مصافحه کول بهتر دی

**سوال:** مصافحه په دواړو لاسونو سره ثابت ده که په یو لاس سره؟

**الجواب:** مصافحه په دواړو لاسونو بهتر ده:

**كما فى الهندية صفحه ۳۶۹ جلد۵. وتجوز المصافحة والسنة فيها ان يضع يديه على يديه من غير حائل من ثوب وغيره. (كذا فى خزانة الفتاوى) و صافح حماد بن زيد ابن المبارك بيديه بخارى جلد ۲ ص ۹۲۶.**

## د دعوت خوړلو نه پس دعا کول

**سوال:** د دعوت خوړلو نه پس دعا کول جائز دی که ناجائز؟

**الجواب:** جائز دی:

**كما فى الهندية ص ۳۴۳ جلد ۵ فان كان صائما اجاب و دعا و ان لم يكن صائما اكل و دعا و فى سنن الدارمى جلد ۲ ص ۲۱ فلما طعموا دعا ﷺ لهم فقال اللهم اغفر لهم وارحمهم و بارك لهم فى رزقهم.**

## د روژې په حالت کښې د قئ کولو مسئله

**سوال:** که د روژې په حالت کښې په ډکه خله قئ راشی نو روژه ماتیږی که نه؟ او که په قصد سره او کړی نو روژه ماتیږی که نه؟

**الجواب:** پخپله باندې قئ راتلل د روژې ماتونکې نه دی اګر که په ډکه خله باندې وی، او په زور سره قئ راوستل روژه ماتوی خو چه په ډکه خله وی:

**قال رسول الله ﷺ من ذرعه القى و هو صائم فليس عليه القضاء. ومن استقاء عمدا فليقض. رواه الترمذى و ابو داؤد و ابن ماجه و فى الدر المختار على ردالمحتار جلد ۲ ص ۴۱۴ طبع الحلبى و ان ذرعه القى و خرج ولم يعد لا يفطر مطلقا ملا اولا وان استقاء عامدا اى متذكراً الصومه ان كان ملا الفم مفسدا بالاجماع.**

...

## د جنازې د مونځ نه پس دعا کول

**سوال:** د جنازې د مونځ نه پس دعا کل ممنوع دی که مشروع دی؟

**الجواب:** په صفونو کښې په ولاړه باندې دعا کول ممنوع دی او د صفونو ماتولونه پس دعاکول مشروع دی اکثرفقهاؤ او مفسرينو دليل نه دې ذکرکړې صرف لايدعوا قائما او لايقوم بالدعاء ئې وئيلي دی، اوچا په کښې د جنازې په تکرار (دوباره کيدلو) سره تعبير کړې او بعضو زيادت على الجنازه، علت ګرځولې او دا منکرات په هغه وخت کښې لازميږی چه دعا د ولاړې په حالت کښې اوکړې شی اوچه کله د صفونوماتولونه پس وی يا په ناسته سره وی نو هيڅ منکر نه لازميږی، البته په حديث کښې ددې نه منع نه ده راغلې نو دا صرف جائز دی سنت نه دې.

## د واده کولو نه پس وليمه کول سنت ده او مخکښې ترې نه مباح ده

**سوال:** که د واده نه مخکښې وليمه اوکړې شی نو دا جائز دی که ناجائز؟

**الجواب:** د واده نه پس وليمه کول سنت هم ده او عبادت هم ده او د واده نه مخکښې نه سنت او نه عبادت دې بلکه مباح او جائز دې صرف د دعوت قبلول په کښې دی لفوات الوقت.ونظيره ذبح الاضاحى قبل صلاة العيد كما فى البخارى باب الاكل يوم النحر.ص ١٣١ فذبحت شاتى وتغديت قبل ان آتى الصلاة قال شاتک شاة لحم. يعنې دا عبادت پاتې نه شو صرف غوښه ده.

## د قربانئ د څرمنو قيمت په جماتونو باندې خرچ کول

**سوال:** د قربانئ د څرمنو قيمت په جماتونو باندې لګول جائز دی که ناجائز؟

**الجواب:** د هندی مشائخوپه نزد ناجائز دی.

**كما فى الهندية ص ٣٠١ جلد٥ . ولايبيعه بالدراهم لينفق الدراهم على نفسه و عياله . لو باعها بالدراهم يتصدق بها لانه قربة كالتصدق كذا فى التبين قالوا و التصدق هو التمليک**

او د افغانستانی مشائخوپه نزد صرف جائز قدرې دی.

**و هو المختار بدليل التعليل الزيلعى لانه قربة اى التصدق بالدراهم كالتصدق بالجلود .**



يعنې مقصود ثواب حاصلول دی هغه په قيمت ورکولو کښې موجود دې لکه چه څنګه په څرمن ورکولو کښې موجود دې قرب په تمليک او اباحت تولو کښې موجود دې ونظيره جلود الهدايا والضحايا فيها الاباحة العامة دون التمليک سلفاوخلفا.

## جائز کلماتو والا تعويذونه د حديث نه ثابت دی

**سوال:** د سردردی او بدنظرئ نه د حفاظت تعويذونه جائز دی که ناجائز؟

**الجواب:** په جائز کلماتو سره ليکلې شوې تعويذونه جائز دی د سلفواو خلفو د وخت نه ليکلې کيږی، دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه تعويذ ليکل ثابت دی كما فى ابى داؤد باب كيف الرقى كان عبدالله بن عمر يعلمهن من عقل من بنيه ومن لم يعقل كتبه فاعلقه عليه او شاه ولى الله صاحب اوشاه عبدالعزيزصاحب او شاه انورشاه صاحب وغيرهم په خپلو کتابونو کښې شائع کړې دی او په حديث کښې چه کوم (ان الرقى والتمائم والتولة شرک) راغلې دی نو د (تمائم) نه مراد مشکنې دی (قالواريد بها الخرزات اللتى تعلق النساء فى اعناق الاولاد على ظن انها توثرة وتدفع العين او په ناجائز کلماتوسره ليکلې شوې تعويذونه د (خزرات) په حکم کښې دی لکه چه د (رقى) نه مراد ناجائز (رقى) دی.

## بغير د خطبې نه هم نکاح صحيح ده

**سوال:** بغير د خطبې نه نکاح صحيح ده که نه؟ بنيواوتوجروا

**الجواب:** په نکاح کښې خطبه وئيل سنت دی واجب نه ده. لماروى ابوداؤد خطبت الى النبى ﷺ امامة بنت عبدالمطلب فانكحنى من غيران يتشهد ابوداؤد ص ٢٩٦ جلد ١ ورواه البخارى فى تاريخه الكبير

## په نکاح کښې به خطبه مخکښې لوستلې کيږی

**سوال:** خطبه به مخکښې لوستلې کيږی يا روستو؟

**الجواب:** مخکښې به لوستلې کیږي، لماروی الدارمی ثم یـتکلم لحاجتـه وفی شرح التنویر و یندب اعلانه وتقدیم خطبة فی اول النکاح.

## په نکاح کښې یوځل ایجاب او قبول کافی دي

**سوال:** د نکاح په وخت کښې به ایجاب او قبول درې ځلې وئیلې کیږی او که یوځل کافی دی؟

**الجواب:** درې ځلې وئیل څه منصوصی نه دی بلکه موهم دی چه کله یوځل د ایجاب او قبول نه پس څه عارض راشی نو عوام وائی چه نکاح پخه نه ده، لکه چه په یو یا دوه سره طلاق نه مضبوط کیږی.

## د مهر مقررول او د ایجاب او قبول تلازم

**سوال:** په بعضې ښارونو کښې صرف مهر مقرر کولې شی او مجلس د (ایجاب) او قبول نه خالی وی ایا دا صحیح کیدیشی؟

**الجواب:** چه کله هلک طرف والا او د جینئ طرف والا د ګواهانو په موجودګئ کښې داسې اووائی چه دا جینئ د فلانکی هلک دپاره په یو لاکه روپې باندې اوکره، نونکاح صحیح ده، کما فی الهندیة ص ۲۷۱ جلد ۱ فینعقد بلفظ الهبة وکذا بلفظ الجعل علی الصحیح کذا فی العینی.

## په تراویح کښې په ختم قران باندې د حافظ پسې اخستل

**سوال:** حافظ ته په تراویح کښې دختم قران نه پس چه کوم رقم ورکولې شی ددې اخستل جائز دی که نه؟

**الجواب:** پیسې اخستل ورکول جائز دی ځکه که یو حافظ د رمضان نه علاوه ورځو کښې په جمات کښې ختم قران اوکړی نو هغه د څه قسمه رقم مستحق نه شمارلې کیږی دارنګې که په فرضو کښې ختم قران اوکړی نو هم مستحق نه ګرځی بلکه چه کله په تراویح کښې امام جوړشی او د ټول قران ختم اوکړی نو مستحق شمارلې کیږی نومعلومه داشوه چه دارقم د مخصوص امامت معاوضه ده چه کله د قراءت رکن ټول قران وی مثلا یو سړې صرف د جمعې د ورځې امام جوړشی چه د فجر مونځ کښې به سورة الم سجده او سورت دهر وائی او د جمعې په مونځ کښې به سورت اعلی او سورت غاشیه وائی. ولاحرج فیه.



## په مقبره کښې د دعا په وخت کښې لاس اوچتول

**سوال:** په مقبره کښې د دعا په وخت کښې لاس اوچتول جائز دی که نه؟

**الجواب:** په مقبره کښې د دعا کولو په وخت کښې لاس اوچتول جائز دی. لحدیث مسلم جاء النبی ﷺ البقیع فقام فاطال القیام ثم رفع یدیه ثلاث مرات ثم انحرف ص ۳۱۲ جلد ۱ نو لاس اوچتول جائز دی البته که د غیر الله د طلب کولو شک وی نو بیا به لاس نشی اوچتولې.

## د سنتو نه پس دعا ته بدعت وئیل غباوت یا غوایت دي

**سوال:** بعضې خلق د سنتو نه پس دعا ته بدعت وائی، ایا دا صحیح دی؟

**الجواب:** د احنافو په نزد باندې دعا د سنتو نه پس افضل ده:

قال صاحب البحر لاکن عندنا السنة مقدمة علی الدعاء الذی هو عقب الفراغ ص ۳۰۴ جلد ۱ . قال صاحب الخلاصة بعد الفریضة الاشتغال بالسنة اولی من الاشتغال بالدعا ص ۹۵ جلد۱. وفی الاشباه و النظائر ص ۱۲۷ الاشتغال بالسنة عقیب الفرض افضل من الدعا و فی البزازیة علی هامش الهندیة ص ۳۸۰ والاشتغال باداء السنة اولیٰ من الدعا و فی شرح شرعة الاسلام و یغتنم الدعا بعد المکتوبة قبل السنة علی ما روی البقالی من ان الافضل ان یشتغل بالدعاء ثم بالسنة و بعد السنن والا وراد علی ما روی عن غیره و هو المشهور المعمول به فی زماننا .

نو د سنتو نه پس دعا کولو ته بدعت وئیل غباوت یا غوایت دي.

## د مسافر سړی په مقیم پسې اقتداء کښې د رکعاتونو د نیت مسئله

**سوال:** مسافر به په څلور رکعته والا مونځ کښې مقیم پسې د څو رکعتونو نیت کوی؟

**الجواب:** د برجندی په نزد به د مطلق فرض نیت ترې د رکعتونو تعین به په کښې نه کوی او د (جامع الرموز) په نزد به د دوه رکعتونو نیت کوی او څمونږ شیخ علامه غورغشتوی رحمه الله به فرمائیل چه د څلور رکعتونو نیت به

کوی ځکه چه د امامت نیت د تکبیر تحریمه نه مخکښې صحیح دې. لانـه بشرف ان یکون اماما نو د ځلورو نیت هم صحیح دې.

## د سفر په دوران کښې د سنتو کولو یا نه کولو مسئله

**سوال:** د سفر په حالت کښې به سنت کوې که نه؟

**الجواب:** غوره قول دادې چه د ویرې په وخت کښې سنت پریږدی او د امن اوقرار په وخت کښې ئې کوی، والمختاران لایاتی بها فی حال الخوف ویاتی بهـا حالة القرار والامن هکذا فی الوجیز للکردی هندیه ص ۱۳۹ جلد۱ )

## د فجر سنت به د نمر راختلو نه روستو ادا کولې شی

**سوال:** که د سحر د مونځ سنت پاتې شی نو دفرض ادا کولو نه پس به کولی شی او که د طلوع شمس نه پس؟

**الجواب:** د فرضو نه پس ئې ادا کول منع دی او د طلوع شمس نه پس ادا کول امام محمد ؒ غوره کړې دی ځکه چه په روایاتو کښې د سحر او مازیګر نه پس مونځ ممنوع دې او د کوم حدیث نه چه د فرض نه پس قضاء ثابت کولې شی هغه منقطع دې محمد بن ابراهیم د قیس بن عمر نه او ریدل نه دی کړې او دا حدیث په (محلی ) کښې روایت شوې دې ددې په سند کښې حسن بن ذکوان دې چه د ضعیف کیدلو نه علاوه قدریه فرقې والا هم دې. اوکوم حدیث چه (ابن منده ) وغیره متصل ذکر کړې نو حافظ ؒ فرمائی چه غریب وتفرد به اسد موصولا.

## د جمعې د مونځ نه مخکښې ځلور رکعته سنت د حدیث نه ثابت دی

**سوال:** بعضې علمائې کرام فرمائی چه د جمعې د مونځ نه مخکښې سنت نشته او پیغمبر ؑ او صحابه کرام ؓ دا سنت نه دی کړې، ایا دا صحیح خبره ده؟

**الجواب:** نبی ؑ به د زوال نه پس ځلور رکعته کول (ترمذی ) حضور ﷺ به د جمعې د مونځ نه مخکښې او روستو ځلور ځلور رکعتونه کول (طبرانی فی معجم الوسط مصنف عبدالرزاق وروی الترمذی عن عبدالله بن مسعود موقوفا) او د بعضې علماؤ دلیل د هغوی په علم باندې موقوف دې.



## د استدلال قابل ثابت احادیث دی صرف د بخاری شریف حدیثونه نه دی

**سوال:** اهل حدیث وائی چه زمونږ حدیثونه د بخاری شریف دی چه اصح الکتب دې او ستاسو دلائل د (ابن ابی شیبه ) وغیره دی چه په ضعیفو او هرقسم حدیثونو باندې مشتمل دی؟ بنیوا وتوجروا

**الجواب:** امام بخاری ؒ د ډیرې لوئ درجې محدث دې او صحیح بخاری اصح الکتب دې امام بخاری صاحب د خیرالقرون نه بهر دې د تبع تابعینو شاګرد دې او صحیح بخاری ته (اصح) وئیل چرته په شرالقرون کښې ځوک امام دې نه صحابی دې او نه تابعی دې نو دا کلام په چا باندې حجت او دلیل نه دې، دا رنګې دلیل خو هغه احادیث دی چه ثابت وی دا نه چه صرف د بخاری حدیث به دلیل وی او بیا کله چه د بخاری په احادیثو کښې تعارض هم وی مثلا (جلسه استراحت ) په صفحه ۱۱۳ کښې مسنون کیدل راغلی او په کتاب الایمان والنذور صفحه ۹۸۲ کښې عدم د جلسه استراحت روایت شوې. حیث قال ثم ارفع حتی تستوی قائما اولنې حدیث د رسول الله ﷺ فعل دې او دویم د تعلیم په ځائ کښې ذکر شوې دې او مقام د تعلیم راجح او غوره وی نو په دې کښې خو راجح او مرجوح موجود دی، او قران مجید اصح الکتب دې په هغې ناسخ او منسوخ شته دې نو که یو حدیث د سند په لحاظ سره (اصح ) وی او دهغه معارض ( اصح سندا ) نه وی او ناسخ وی مثلا د (رفع الیدین ) او د قرات خلف الامام احادیث شو نو په دې کښې څه استبعاد دې.

## په سرتور سره مونځ کول مکروه او خلاف سنت دی

**سوال:** په سرتور سر مونځ کول جائز دې یا ناجائز؟

**الجواب:** د احرام نه بغیر د سرې دپاره په سرتورسر مونځ کول مکروه او خلاف سنت دی برابره خبره که د نا راستئ په وجه وی یا د ویښتو د ښائست دپاره وی یا د بې پرواهئ په وجه وی چه دا څه فرض او واجب خو نه ده یا د خیرنو او شلیدلو ټوپو د وجې نه وی کما فی شرح التنویر وصلاته حاسرا راسه

للتکاسل.لکه چه په خیرنو او شلیدلو جامو کښې مونځ مکروه تنزیهی دې.
کما فی شرح التنویر صلاته فی ثیاب بذلة ومهنة ای بما یلبسه فی بیته ولایذهب به الی الاکابر والظاهران الکراهیة تنزیهیة. لکه چه دنورو ښو جامو په نه موجودګئ کښې په لغړ بدن (بغیرجامو) مونځ نه کوی، نود نورو ښه توپو په نه موجودګئ کښې به په سرتورسر هم مونځ نه کوی.

## د ډرائیور خپلې سورلئ بغیر د قصد نه هلاک کول قتل سببی دې

**سوال:** که د ډرائیور نه د خپلو سورلو نه علاوه نور خوک هلاک شول نو په دې کښې دیت اوکفاره شته که نه؟

**الجواب:** دا قتل (جارمجرائې خطاء) دې لهذا په دې کښې دیت اوکفاره دواړه واجب دی.

## د دوه ګاډو ایکسډنټ د دواړو طرف نه قتل سببی دې

**سوال:** چه کله یو ډرائیور د بل ډرائیور سره ایکسډنټ اوکړی نو ددې هلاک شوو خلقو به څه حکم وی؟

**الجواب:** دا د جانبینو نه قتل سببی دې دې کښې دیت واجب دې اوکفاره نشته.

## د تعزیت د پاره تلل او درې ورځو پورې کیناستل

**سوال:** تعزیت جائز دې که ناجائز دې؟

**الجواب:** جائز دې د (ابن ماجه او ترمذی د حدیث په وجه او درې ورځو پورې کیناستل جائز دی لیکن بهتر نه دی.

## مړې په قبر کښې مخ په قبله دفن کول

**سوال:** مړې داسې دفن کول چه سرئې شمال (قطب) طرف ته وی او ښپې ئې جنوب (سویل) طرفته وی او سینه ئې قبلې طرفته وی په دې څه دلیل دې؟



**الجواب:** په دې د امت تعامل دلیل دې، روی المحدثون عن ابن مسعود موقوفا ماراٰی المؤمنون حسنا فهو عندالله حسن. جعله الامام محمد مرفوعا فی بلاغاته او د اهل حدیثو دپاره پرې هیڅ دلیل نشته.

## په جمات کښې د مړی اعلان

**سوال:** په جمات کښې د چا د مرګ اعلان کول ممنوع دې که مشروع دی؟

**الجواب:** په جمات کښې دا اعلان جائز دې پیغمبر علیه السلام د نجاشی د مرګ اعلان په جمات کښې کړې وو، خرج به العینی فی شرح البخاری ص ۲۲ جلد٤ او د واقدی نه په صفحه ۲۵ باندې روایت شوې دې ان علیه السلام علی المنبرواخبر عن موت امراء موتة.

## د مطلقه مغلظه غیر مدخول بها بغیر د حلالې نه په دویم خل د نکاح مسئله

**سوال:** چه کله غیر مدخول بها زنانه ته درې طلاقه په یو لفظ سره ورکړې شی نو ایا په دې کښې حلاله ضروری ده؟

**الجواب:** دا زنانه بغیر د حلالې نه په نکاح کیدلې شی.

کما فی معین الحکام ص ۳۲۹ و فی المشکلات من طلق امرته الغیر المدخول بها ثلاثا فله ان یتزوج بها بلا تحلیل و اما قوله تعالیٰ فان طلقها فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجاً غیره فی حق المدخول بها .انتهیٰ

قلت المذکور سابقا طلاق المدخول بها لان الامساک والرجوع یکون فی المدخول بها بخلاف الغیر المدخول بها لعدم صحة الامساک والزجوع فیها .

د ابن الهمام وغیره په دې مسئله کښې کلام شته.

## د حائضې، نابالغ او نوې مسلمان عجیبه مسئله

**سوال:** کومه حائضه چه د څلورو منزلو په نیت سره روانه شوه لیکن اولنی دوه منزلونه ئې د حیض په حالت کښې پوره کړل اوس هم هغه مسافره نه ده او چه اوس اولامبی (غسل اوکړی) نوپوره څلور رکعتونه به کوی اوچه کله نابالغه

مسافر د دوه منزله سفر کولو نه پس بالغ شی هغه به هم اتمام (پوره مونځ) کوی. اوچه کله کافر د دوه منزله سفر کولو نه پس مسلمان شی نو هغه به قصر کوی. د دوی په مینځ کښې د فرق څه وجه ده؟

**الجواب:** د حائضې نه مونځ ساقط دې نو ګویا چه دا مسافره نه ده. اود کوم وخت نه چه د ادا کولو اهل شوه دهغې وخت نه به اعتبار کیږی. او نابالغ چه د کوم وخت نه بالغ شو د هغې وخت نه مکلف شو. په خلاف د کافر باندې چه د هغه نیت معتبر دې. فلیراجع الی شرح التنویر والدرقبیل باب الجمعة.

## د (ض) لهجه به د (ظاء) سره مشابه وی که د (دال) سره

**سوال:** (ض) به (ظواد) وئیلې کیږی که (دواد)؟

**الجواب:** ددې حرف په مخرج او صفاتو کښې هیڅ اختلاف نشته البته په اواز او لهجه کښې ئې اختلاف دې بعضې قاریان ئې (ظواد) وائی چه دا حرف (ظاء) ته ډیر نزدې دې. صرف په مخرج او استطالت کښې فرق دې لیکن امام سیرافی (ظاء) او بین الضادو الظاء ته (ضاد) ضعیفه وائی:

**كما فى الرضى شرح الشافيه صفحه٣٧٨ قوله الضاد ضعيفة قال السيرافى انها فى لغت قوم ليس فى لغتهم ضاد فاذا احتاجوا الى التكلم بها فى العربية اعتاصت عليهم فربما اخرجوها ظا اخراجهم اياها من طرف اللسان و اطراف الثنايا و ربما تكلفوا اخراجها من مخرج الضاد فلم ينأت لهم فخرجت بين الضاد و الظاء.**

نو ددې حرف لهجه نه (ظاء) ده اونه مابين الظاء والضاد ده.

اصلی اواز ددېنه علاوه دې د مصریانو علماؤ او عربی بانډچیانو لهجه صحیح ده چه نه (ظاء) ده اونه مشابه بالظاء) ده البته ددې د (ظاء) سره صرف په استطالت کښې فرق دې لیکن په دې سره په اواز کښې مشابهت نه لازمیږی لکه چه په (طاء) او دال کښې صرف په اطباق کښې فرق دې كما فى منح الفكريه شرح مقدمة الجزريه صفحه ٢٩ قال الرمانى وغيره لولاالاطباق لصارت الطاء دالا لانه ليس بينهما فرق الاالاطباق. ددې نه دا نه لازمیږی چه دال به د طاء سره مشابه فى الصوت وی.



## په انګلینډ کښې په سود سره په کرایه باندې کور اخستل یا خرڅول

**سوال:** په انګلینډ کښې کله کور په بیعه اخستلې کیږی اوکله په کرایه اخستلې کیږی نو د مسلمان نه اصل قیمت سره د سود نه وصولولې شی ایا دا جائز دی؟

**الجواب:** دا جائز دی. ولابين حربى ومسلم مستامن ولو بعقد فاسد او قمار. شرح التنوير صفحه ١٨٦.

## په جهاد او دهشت ګردئ کښې فرق

**سوال:** ایا د هشت ګردی اوجهاد یوڅیز دې؟ بنیوا وتوجروا

**الجــواب:** جهاد یومقدس عبادت دې چه د فساد د ختمولو دپاره شرعی طورسره فرض کړې شوې دې خوامریکه او دهغې د فکرخلق جهاد. مدارس او طالبانو د بدنامولو دپاره دا غلط نوم ذکر کوی لیکن د هغوی ناکامی د هغوی د خپلې دهشت ګردئ نه معلومه ده.

## د تعزیت په وخت کښې په دعا کښې لاس اوچتول

**سوال:** ایا د تعزیت په وخت کښې لاس اوچتول مباح دی یا مکروه؟

**الجواب:** د پښتنو په ښارونو کښې د تعزیت په وخت کښې لاسونه اوچتولې شی دا یو مباح کار دې مکروه نه دې ځکه چه د پیغمبر علیه السلام نه د یو کار متعلق منع نه وی راغلې نو هغه بدعت او مکروه نه وی صرف دومره ده چه هغه محبوب هم نه وی:

**كما فى الاحياء ص ٣٣١ اذا لم يرد فيه نهى فلا ينبغى ان يسمىٰ بدعة و مكروها ولكنه ترک الاحب وقال الشافعى رحمه الله ماخالف الكتاب و السنة والاثر والاجماع فهو ضلالة. وما احدث من الخير مما لايخالف شيئاً من ذلک فليس بمذموم.**

## د حلالو حرامول قسم دې

**سوال:** د حلال څیز حرامول قسم دې که نه؟ په دې کښې کفاره واجب ده یا نه؟

**الجواب:** د حلال څیز حرامول دا قسم دې او کفاره په کښې واجب ده.

تحریم الحلال یمین کذا فی الخلاصة فمن حرم علی نفسه شیئا مما یملکه لم یصر محرماً ثم اذا فعل مما حرمه قلیلا او کثیرا حنث ووجبت الکفارة کذا فی الهدایة .

## په زور سره د طلاق واقع کیدل

که دشمن په چا باندې په زور سره طلاق ورکړی نودا به منظور وی که نامنظور؟

**الجواب:** د احنافو په نزد باندې دا طلاق منظور دې (۱) لکه څنګه چه په ټوقو سره سبب ارادةً موجودیږی او مسبب په ترتب باندې راضی نه وی دغه شان په اکراه سره هم سبب ارادة موجودیږی او د مسبب په ترتب باندې راضی نه وی. کما فی الحدیث ثلاثة. جدهن جد وهزلهن جد، النکاح والطلاق والرجعة. نو طلاق به واقع کیږی. (۲) دا رنګې امام عقیل د صفوان بن عمران الطائی ؓ نه اخراج کړې دې چه پیغمبر عليه السلام د زوج مکره طلاق نافذ کړو چا باندې چه خاوند اکراه کړې وه. (۳) دارنګې عبدالرزاق د حضرت عبدالله بن عمر ؓ نه اخراج کړې چه هغه طلاق د مکره نافذ کړې دې. (۴) دارنګې په دې کښې د خاوند د قتل کیدلونه بچاؤ دې که دشمن ته دامعلومه وی چه طلاق نه نافذ کیږی نو هغه به دا خاوند قتل کړی ځکه چه د ښځې ازادی صرف په دې کښې ده اوپه کوم حدیث کښې چه راغلی دی لاطلاق ولااعتاق فی اغلاق نو مراد ترې نه غضب دې اکراه نه ده کما فی ابی داؤد او محتمل دې صریح نه دې.

## د ونو د جرړونه پیداشوې ونې به د کرلو والا وی

**سوال:** د ونو پریکولونه پس چه دهغې د جرړونه نورې ونې پیداشی هغه به د چاوی؟

**الجواب:** دا ونې به د کرلو والا وی کمافی الهندیه ص ٤٧٤ جلد۲ ولوقطعها فنبتت من عروقها اشجار فهی للغارس کذا فی فتح القدیر



## جمات او مدرسه د مال مالکان دی خو زکوة پرې نشته

**سوال:** چه کله جمات یا مدرسې ته مالونه ورکړئ شی هغه مالکان ګرځی که نه؟ او په دې مالونو کښې زکوة واجب دې که نه؟

**الجواب:** ناظم او مهتمم ته ورکولو سره جمات او مدرسه مالکان ګرځی.

کما فی الهندیه ص ۴۶۰ جلد۲ . ولو قال وهبت داری للمسجد واعطیتها له صح . و یکون تملیکا فیشترط التسلیم کما لوقال وقفت هذه المأة للمسجد یصح بطریق التملیک اذا سلمه للقیم کذا فی الفتاویٰ العتابیة

او په دې کښې شرط نه دې موجود لهذا په دې کښې زکوة واجب نه دې کما فی شرح التنویر وشرط افتراضها عقل وبلوغ واسلام وحریة والعلم به.

## درې طلاقه ورکولوپه لاعلمئ کښې به پیدا شوې بچې ثابت النسب وی

**سوال:** که څوک خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړی او د ښځې خاوند په لاعلمئ کښې بغیر د حلالې نه ماشوم پیداشی نو دا ماشوم به ثابت النسب وی یا نه؟

**الجواب:** دا ماشوم به ثابت النسب وی،

کما فی الهندیة ص ۵۴۰ جلد ۱ و لو طلقها ثلاثا ثم تزوجها قبل ان تنکح زوجا غیره فجاء ت منه بولد و لا یعلمان بفساد النکاح فالنسب ثابت و ان کانا یعلمان بفساد النکاح یثبت النسب ایضا عند ابی حنیفة رحمه الله کذا فی التتارخانیه.

## د طلاق رجعی د عدت په دوران کښې چه خاوند وفات شی نو عدت د وفات به شروع کوی

**سوال:** خاوند ښځې ته طلاق رجعی ورکړو او یو ورځ کم درې حیضه تیریدلونه پس خاوند مړشو نو دا ښځه به د وفات عدت شروع کوی که د طلاق عدت به پوره کوی؟

**الجواب:** دا ښځه به اوس د وفات عدت شروع کړی، فی الهندیه رجل طلق امرئته طلاقا رجعیا فاعتدت بثلاث حیض الایوماً فمات الزوج یلزمها اربعة اشهروعشر کذا فی غایة البیان.

## په اسفار د فجر کښې د رمضان استثناء نشته

**سوال:** په بعضي ښارونو کښې د رمضان په میاشت کښې د سحر مونځ د اسفار نه مخکښې په اولنی وخت کښې ادا کوی. ایا دا بهتردی؟

**الجواب:** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د مزدلفې نه علاوه په هره زمانه کښې اسفار بهتردې فقهائې کرامو د رمضان استثناء نه ده کړې.

**و ماروه البخاری ان الفضل بین السحور و قیام الصلاة قدر خمسین او ستین آیة و ایضا روی ان بین الفراغ من السحور و بین الدخول فی الصلاة قدر ان یقرء الرجل خمسین آیة فهو اشارة الی تعجیل اقامة الصلاة علی ان الآیة فی الحدیث المذکور تحتمل الطویلة والقصیرة و تحتمل القراءة بالترتیل و بالاسراع.**

## ژوندي څناوریا قیمت صدقه کولوسره د قربانئ نه ذمه نه فارغیږي

**سوال:** که یو سړې د قربانئ په ورځ ژوندي څناوریاد هغې قیمت صدقه کړی په دې سره ئې ذمه فارغیږی یا نه؟

**الجواب:** په دې سره ئې ذمه نه فارغیږی.

**کما فی البدائع ص ۶۶ جلد ۵ و منها ان لا یقوم غیرها مقامها حتی لو تصدق بعین الشاة او قیمتها فی الوقت لا یجزیه عن الاضحیة لان الوجوب تعلق بالاراقة.**

## که د یو والا غواه میخه د نصاب قیمت ته رسیږی نو قربانی واجب ده

**سوال:** د یو سړی سره یوه غوا یا یوه میخه ده او عواملو کښې نه ده مثلاد پیو دپاره ده او دهغې قیمت نصاب ته رسیږی یعنې دوه پنځوس نیمې تولې چاندی یا ۲۳۰۰ روپو ته رسی نو په ده باندې قربانی واجب ده که نه؟

**الجواب:** په ده قربانی واجب ده دا سړې د نصاب خاوند دې کما فی الهندیة جلد ۵ ص ۲۹۳ والزراع بثورین والة الفدان لیس بغنی وببقرة واحدة غنی.



## د (فلانکی کورتللو) سره معلق طلاق د مرګ نه پس معلق نه پاتې کیږي

**سوال:** خاوند ښځې ته اووئیل که ته د فلانکی کورته لاړلې نو طلاقه یې اوس دا ښځه د فلانکی د مرګ نه پس کورته لاړه نو ایا طلاق به واقع کیږی؟

**الجواب:** په ښځه باندې طلاق نه واقع کیږی که په دې فلانکی باندې ئې دین مستغرق وی او که نه وی.

**کما فی البزازیه علی هامش الهندیه (ص ۳۲۱ ج ۴) ان دخلت دار فلان فانت کذا فمات فلدخلت الدار ان لم یکن علی دین مستغرق لا یحنث لانتقال ملکه. وان کان فا لفتوی علی انه لا یحنث ایضا.**

## مرداري غوښې ته به پیشو راوستلې کیږي بالعکس به نه وی

**سوال:** د مردار څناور غوښه به پیشو دپاره کورته راوړلې کیږی یا پیشو وغیره به د مرداري خواته بوتلې کیږی؟

**الجواب:** پیشو به ددې مرداري خواته راوستلې کیږی بالعکس به نه کیږی.

**کما فی البزازیه علی هامش الهندیه (ص ۸۲ ج ۴) ولا یحمل الجیفة الی الهرة ویحمل الهرة الی الجیفة.**

## اجیر په اجاره باندې مالک ته مستاجر نه شی ورکولې

**سوال:** ایا اجیر په اجاره سره مالک ته مستاجر ورکولې شی؟

**الجواب:** اجیر دا څیز مالک ته په اجاره نه شی ورکولې برابرخبره ده چه ثالث متوسط وی یا نه.

**کما فی الهندیه (ص ۴۶۵ ج ۴) ان المستاجر لو اجره من المواجر لا یصح تخلل الثالث اولا. وبه عامة المشائخ. وهو الصحیح و علیه الفتوی کذافی الوجیز للکردی.**

## په فصل باندې د افت په صورت کښې د اجرت مسئله

**سوال:** که د زراعت نه پس افت راشی نو د مستاجر نه به بدل اجاره ساقطیږی که نه؟

**الجواب:** د تیرشوې اجرت به ثابت وی او د مابقی اجرت به ساقط وی.

**کما فی الهندیه اذا استاجر ارضا للزراعة فاصطلمه آفة کان علیه اجر ما مضی وسقط عنه اجر مابقی لمدته بعد الاصطلاح.**

## اورد ایت نیم په یو رکعت او باقی نیم په بل رکعت کښې وئیل

**سوال:** په یو رکعت کښې چه نیم ایت اووئیلې شی او باقی نیم په بل رکعت کښې نو ایا دا مونځ به صحیح وی؟

**الجواب:** دا مونځ به صحیح وی.........

كما فى الدر المختار ص ۳۹۷ جلد ۱ ولو قرء آية طويلة فى الركعتين فالا صح الصحة اتفاقا لانه يزيد على ثلاث آيا ت قصار قاله الحلبى.

## د قصیده : بدءالامالی ) د یو شعر مطلب

**سوال:** د قصیده (بدء الامالی ) ددې شعر څه مطلب دې؟

ورب العرش فوق العرش لاكن .............. بلا وصد التمكن واتصالى.

**الجواب:** دا د جمهورعلماؤ مذهب دې د الله تعالی د ذات او صفاتو متعلق به همیشه دپاره دوه ایتونو ذهن کښې حاضر ساتې، (الله الصمد) الله تعالی بې نیاز دې هیڅ قسم احتیاج نه لری، (لیس کمثله شئ) دهغه په شان هیڅ څیز هم نشته، نو په عرش باندې الله تعالی ته فوقیت د نصوصو په بناء حاصل دې اوهم د امام ابوحنیفه امام مالک او امام شافعی او امام احمد (رحمهم الله تعالی) قول دې، او هم دا د امام مزنی، امام ابوحاتم، امام ذهبی، امام سراج الدین حنفی، امام ابن الهمام او امام عبد العزیزوغیره نه روایت شوې دی اوپه کوم حدیث کښې چه راغلی دی كان الله ولم يكن شئ.هغه په ظاهر باندې محمول دی اوپه کومو نصوصو کښې چه على العرش استوى.ثابت دی نو استوا معلومه ده مجهوله نه ده او د هغې کیفیت نامعلوم دې خو د متشابهاتو نه دې.ای استواءمنزه عن التمكن والاستقرار.وانه فوق العرش ومع ذالک هوقريب من كل موجود وهواقرب من حبل الوريد ولا يماثل قربا قرب لاجسام اوپه کوم حدیث کښې چه.نزول السماء.راغلی دی نودیو توجیه په بناء باندې داتجلی ده اوکوم ځائ کښې چه داراغلی.وهومعكم اين ماكنتم نوددې نه مراد خویامعیت علماً و قدرةً وعوناً اویاتربینه مرادمعیت ذاتی دې. كمايليق به تعالىٰ لامن حيث التمكن والمماسته والمحاذاة.ويشير اليها كلام اهلاالفن.



## د دیوال سره ګولئ ټکراؤ شی او څوک قتل شی نودا قتل خطاء دې

**سوال:** که یو سړې بل سړې په ګولئ باندې اوولی. لیکن ګولئ په دیوال وغیره باندې اولګی اوبیاواپس شی او هغه دویم سړې قتل کړی. نو په دې کښې قصاص واجب دې که نه؟

**الجواب:** داقتل خطاءدې نوپه دې وجه باندې دیکښې قصاص واجب نه دې. کما فی الهندیه ص ۳ جلد ۶. رجل رمى انسانابسهم فاخطاء فاصاب السهم حائطا ثم عادالسهم فاصاب ذالک الانسان وقتله قال هذاخطاء.

## د غټې ښځې په جماع سره مړه کیدلو باندې ضمان نشته

**سوال:** یوسړې دغټې ښځې سره جماع اوکړې اوپه دې جماع سره هغه مړه شی نوآیاپه دیکښې ضمان شته؟

**الجواب:** په دیکښې هیڅ ضمان نشته کما فی الهندیه ص ۲۸ جلد ۶ رجل جامع امراته ومثلها يجامع فماتت من ذالک فلاشئ عليه.

## د احنافو په نزد د سنتونه پس دعا افضل ده

**سوال** په بعضې ښارونو کښې خلق دفرضونه پس دعا کوی دسنتونه پس نه.اودلویو لویو علماؤ اومفتیانو حوالې پیش کوی نوافضل دسنتونه پس ده که دفرضو نه پس؟

**الجواب:** داحنافوپه نزد باندې دسنتونه پس افضل ده.

كما فى البحر ص ۳۰۴ جلد ۱ .لكن عند نا السنة مقدمة على الدعاء الذى عقب هو الفراغ و كما فى الخلاصة الفتاوىٰ ص ۹۵ جلد ۱ بعد الفريضة الاشتغال بالسنة اولىٰ من الاشتغال بالدعاء وكما فى الاشباه و النظائر ص ۱۲۷ .الاشتغال فى السنة عقيب الفرض افضل من الدعاء . و كما فى البزازيه على هامش الهندية ص ۳۸۰ جلد ۲ . والاشتغال بعد

الفرض باداء السنة اولىٰ من الدعاء و كما فى شرح شرعة الاسلام و يختتم الدعاء بعد المكتوبة قبل السنة على ما روى البقالي . من ان الافضل ان يشتغل بالدعاء ثم بالسنة و بعد السنن والاوراد على ماروى عن غيره وهو المشهور المعمول به فى زماننا .

(١) کوم علماء چه دسنتونه پس دعانه کوی نوهغوی داحنافو ثابت قول نه بغیر دوجهې نه اعراض کوی (٢) عوام په هغوی باندې اعتماد کوی چه دوی مونږته دامام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه قول ښائی خوحال دادې چه هغوی دشوافعو او اهل حدیثو قول ذکر کوی (٣) اوپه حدیث کښې چه دبرمکتوبات دبر المکتوبة راغلی دی دعوامو داذهن جوړوی چه ددې نه پس متصل مراددې حال داچه دسنتو نه پس دعاهم دبر مکتوبات ده = مقدم على المكتوبات نه ده (۴) اوکوم احادیث چه مخالفین ذکر کوی هغه ټول څمونږ په نزد باندې بغیرتاویل نه معمول دی.

## د لا تشدوا الرحال الا ثلاثة مساجد (الحديث) وضاحت

**سوال:** په حدیث شریف کښې راغلی لاتشدوا الرحال الاثلاثة مساجد اوابن تیمیه وغیره ددې نه استنباط کوی چه دپیغبر علیه السلام دزیارت دپاره دوفات نه پس سفرناجائز دې وضاحت اوکړئ؟

**الجواب:** که داحدیث په ظاهرباندې محمول شی دربوجماتونونه علاوه نوروځایونوته سفرکول جائزنه وی نودپیغبر علیه السلام په ژوند کښې دملاقات دپاره به تبوک ته هم سفرکول ناجائزوی.

## یو دوه درې ته په ماطلاقه ئې.. ددې جملې حکم

**سوال:** که خاوندښځې ته اووائی چه یودوه درې ته په ماطلاقه ئې. نوعوام دادتغلیظ دپاره استعمالوی آیا دا اراده صحیح ده؟

**الجواب:** دتغلیظ په اراده سره دااستعمال غلط دې په دې سره طلاق رجعی واقع کیږی ځکه چه یودوه درې دیوځیز شمارل وی انشاء نه وی اوکه دائې مرادوی چه یوطلاقه دوه طلاقه درې طلاقه نودابه دطلاق شمارل شی لیکن



په دې کښې حکم نشته یعنی بیٔ اونه بیٔ اوکه راتلونکې جمله بیٔ مرادوی چه ته به په ماطلاقه بیٔ. داخیال وی نوددې جملې سره ئې هڅو ربط اوتعلق نشته نه دمفعول مطلق کیدلواونه دتمیز کیدلو۔ دادخپل فاسد خیالونو شمار دې. فلیراجع الى محاورة السلمانين.

## د ضاد . تفصیلي مسئله

**سوال:** ضاد . دظاء . سره مشابه دي كه د . دال . سره؟

**الجواب:** ضاد . ظاء . دآل . داجداجدا حروف دی اود هریو مخرج جداجدا دي.
قال فى الشافيه و للضاد اول احدى حافتية و ما يليها من الاضراس و للظاء طرف اللسان و طرف الثنايا و للدال طرف اللسان و اصول الثنايا العليا انتهى مختصرا مع تقديم و تا خير فى العبارة . و هكذا فى كتب التجويد

دارنگې دصفاتو په اعتبارسره هم داحروف جداجدا دي اګرچه ضاد او ظاء حروف داستطالت په صفت کښې جداجدا دي. اوضاد اودال تقریباً په اوو صفاتو کښې جداجدا دي (كما لايخفى على من راجع الى كتب التجويد )

دارنګې دعلماء فن نه منقول دي چه ضاد په اعتبار دصفاتو سره ظاء ته نزدې دي اوپه اعتباردمخرج دال نه نزدې دي اوداهم منقول دي که په ضادکښې اطباق نه وی نودال ترې نه جوړیږی لکه چه په ضاد کښې که استطالت نه وی نو ظاء به شی. کما صرح به فى المفتاح الرحمانى فى علم القراءة لولا الاطباق فيها لكان الصاد سينا والظاء ذالا والضاددالا. انتهى ددېنه ثابته شوه چه دضاد دال سره پوره قرب اونزدیکت دي چه صرف اطباق پکښې تمیز دي بلکې په اعتباردمخرج سره دضاد دال سره ډیر نزدیکت دي.

صرح به فى امداد الفتاوىٰ ص ١٧٧ جلد ١ و فى شرح الشاطبى ان هذا الثلث ( الضاد، والظاء، والذال ) متشابهة فى السمع . والضاد لا تفرق من الظاء الا باختلاف المخرج و زيادة الاستطالة فى الضاد ولو لاهما لكانت احدا هما الاخرىٰ. مجموعة الفتاوىٰ ص ٢٦٩ جلد ١ ۔

ددې تمهیدنه پس واضحه شوه چه ضاداګر چه ظاء اودال دواړه سره نزدې دي لیکن ددې په ادا کولو کښې دخلقوژبې مختلفې دی.

قال فى المنح الفكرية ص ۳۸ وليس فى الحروف ما يفسر على اللسان مثله و السنة الناس فيه مختلف فمنهم من يخرجه دالا مهملا او معجمة و منهم من يخرجه طاء مهملة كا لمصريين ومنهم من يشمه ذالا و منهم يشير بها با لظاء المعجمة .

فقهاء او اکثر مجودین د ظاء سره مشابهت ته مائل دی کما لایخفی علی من راجع الی باب زلة القاری والی کتب التجوید او بعضی امامان مشابه بالظاء ته قبیح او مستهجن وائی.

قال الرضى فى شرح الشافيه ص ۳۷۸ و الضاد الضعيفة. قال السيرافى انها فى لغة قوم ليس فى لغتهم ضاد فاذا احتاجوا الى التكلم بها فى العربية اعتاصت عليه فربما اخرجوها ظاء لاخراجهم اياها من طرف اللسان و الطرف الثنايا و ربما تكلفوا اخراجها من مخرج الفساد فلم يتات لهم فخرجت بين الضاد و الظاء انتهى . و فى كتب اللغة ان هذا الحرف لم يو جد فى غير العربية .

......د دې اختلافو باوجود په دې حرف کښې سختی کول نه دی پکار بلکه کوم سړې چه د دې حرف په ادا کولو کښې د دې د مخرج او صفت خیال ساتی نو هر یو آواز چه او وځی غلط به ورته نه وئیلې کیږی، او مونځ ورپسې صحیح دې او داد محققینو علماؤ رائې ده مولانا گنگوهی رحمة الله علیه فرمائی اصل حرف، ضاد دې د خپل مخرج نه ئې اداکول واجب دې او که بیاهم نه کیږی نو د عذر په صورت کښې د ډک دال، په آوازسره هم مونځ کیږی (فتاوی رشیدیه ص ۲۷۲) او فرمائی چه کوم سړې خالص دال یا ظاء په قصد سره وائی هغه پسې مونځ مه کوئ مگر چه کوم سړې ئې د ډک دال په آواز سره وائی هغه پسې مونځ کوئ

ص ۲۷۴ و فى فتاوىٰ دار العلوم دیو بند ص ۴۷ جلد ۱ . و آنچه از قراء و علماء عرب و علماء حرمین شریفین مسموع میشود . ضاد را شبه صوت بالدال المهمله المعجمه مے خواند تغلیط آن همه علماء و قراء هم سهل نیست.

حضرت تهانوی رحمة الله علیه فرمائی د ضاد په ځاې باندې دال وئیل هم غلط ظاء وئیل هم غلط دی په قصد وئیل گناه ده لیکن د عموم بلوی د وجې نه د دواړو مونځونه نه فاسدیږی. د تجوید د ماهر قاری نه مشق او کړئ او د صحیح وئیلو کوشش کوئ که بیاهم غلط او وځی نو معذوری ده



(امداد الفتاوی ص ۱۸۰ جلد ۱) نو د دې تصریحاتو په بناء باندې په دیکښې سختی کول ښه نه ښکاری ځکه چه حقیقت دادې چه د مشاق قاریانو آوازونه هم مختلف وی. فقط

## د سجده سهو په صورت کښې درود شریف او دعاء

**سوال:** د سجد سهوې په صورت کښې به درود شریف او دعاء په کومه قاعده کښې اداکولې شی؟

**الجواب:** احتیاط دادې چه په دواړو قعدو کښې دې اداکړې شی (یعنی د سجده سهوې نه مخکښې او پس) کمافی شرح التنویر وقیل فیهما احتیاط

## په سجده سهوه کښې یو طرفته سلام گرځول

**سوال:** بعضې خلق وائی چه امام به یو طرفته سلام گرځوی او منفرد به دواړو طرفونو ته سلام گرځوی.

**الجواب:** صحیح داده چه صرف ښی طرفته به سلام گرځوی (کما فی الهندیة ص ۱۶۵ جلد ۱) والصواب ان یسلم تسلیمة واحدة وعلیه الجمهور الیه اشارفی الاصل کذافی الکافی، ویسلم عن یمینه کذا فی الزاهدی.

## د ټولو واجباتو د ترک په صورت کښې به صرف دوه سجدې کوې

**سوال:** که څوک ډیر واجبات پریږدی نو په هغه باندې به څومره سجدې واجب وی؟

**الجواب:** د ټولو واجباتو پریښودلو سره به دوه سجدې واجب کیږی (کما فی رد المحتار حتی لو ترک جمیع واجبات الصلاة سهوا لایلزمه الا سجدتان، بحر ص ۴۹۷ جلد ۱)

## په ولاړه باندې التحیات وئیلو سره سجده سهو نه واجب کیږی.

**سوال:** که څوک په ولاړه (د قیام په حالت کښې) التحیات اولولی نو په هغه سجده سهوه واجب ده که نه؟

**الجواب:** په هغه سجده سهوه واجب نه ده که په اول رکعت کښې وی او که په دوئم رکعت کښې وی (هندیه ۱۷۲ جلد ۱)

## دفاتحې نه پس التحیات ویلوسره سجده سهوه واجب ده

**سوال:** که د سورت فاتحې نه مخکښې یا روستو څوک التحیات اووائی نو په دیکښې سجده سهوه واجب ده که نه؟

**الجواب:** په مخکښې وئیلو کښې واجب نه ده او روستو وئیلو کښې واجب ده لتاخیر الواجب (هندیه ص ۱۲۷ جلد ۱)

## د تشهد په ځائې فاتحه وئیلو یا دفاتحې نه پس تشهد وئیلو سره سجده سهوه واجب ده

**سوال** که د تشهد په ځائې فاتحه اولولی یا د فاتحې نه پس تشهد هم اووائی نو سجده سهوه واجب ده که نه؟

**الجواب:** په دې دواړو صورتونو کښې سجده سهوه واجب ده هندیه ص ۱۲۷ جلد ۱.

## د اولنی رکعت والا سورت نه مخکښې سورت په دویم رکعت کښې وئیلو سره سهوه نه واجب کیږي

**سوال** که په دویم رکعت کښې د اولنی رکعت والا سورت نه مخکښې سورت اووائي نو په دې سجده سهوه واجب ده که نه؟

**الجواب:** په دیکښې سجده سهوه واجب نه ده کذافی المحیط هندیه ص ۱۲۶ جلد ۱.

## داخترا و جمعې په مونځ کښې سجده سهوه

**سوال** داخترا و جمعې په مونځ کښې به سجده سهوه کولې شی که نه؟

**الجواب:** په دیکښې په سهوې سره سجده سهوه پریخودل بهتر دی ناجائز نه دی شامی ص ۵۰۵ جلد ۱

## مسبوق د امام سره سلام اوګرځوی نو سهوه واجب ده یا نه

**سوال** که مسبوق د امام سره سهواً سلام اوګرځوی نو په دیکښې سجده سهوه واجب ده که نه؟



**الجواب:** که مسبوق د امام د اولنی سلام سره یا اولنی سلام سره پیوست سلام اوګرځوی نو په هغه باندې سجده سهو واجب نه ده او که د امام د اولنی سلام نه پس اوګرځوی نو په هغه باندې سجده سهو واجب ده (کبیری ص ۴۲۵)

## که د ظهار یا قتل په کفاره کښې رمضان راشی

**سوال** که د ظهار یا قتل کفارې په مینځ کښې رمضان راشی نو آیا دا کفاره به بیا د سره اداکولې شی؟

**الجواب:** دا به بیا د اول نه اداکولې شی ځکه چه دې کفاره کښې تتابع یعنی پرله پسې والې ضروری دې کما فی الهندیه ص ۵۱۲ جلد ۱ فکفارته صوم شهرین متتابعین لیس فیها شهر رمضان ولا یوم الفطر ولا یوم النحر ولا ایام التشریق كذا فی غایة البیان،

## د متعدد قسمونو په صورت کښې یوه کفاره

**سوال:** د قسمونو متعدد کیدلو په وخت کښې د کفاره یو کول جائز دی که نه؟

**الجواب:** د امام محمد رحمة الله علیه دیو قول په بناء باندې یو کول کافی دې کمافی ردالمحتار ص ۷۱۴ جلد ۳ وفی البغیة كفارات الایمان اذا اكثرت تداخلت ويخرج بالكفارة الواحدة عن عهدة الجميع وقال شهاب الائمة هذا قول محمد وقال صاحب الاصل هو المختار عندی.

## د واده کړې سړی د ښځې د اجازت نه بغیر څلور یا څلور میاشتو نه زیات سفر کول

**سوال** یو واده کړې سړې د علم حاصلولو یا عرفی تبلیغ د پاره څلور میاشتې یا څلور میاشتو نه زیات سفر کولې شی یا نه؟

**الجواب:** د ښځې د رضا او اجازت نه بغیر دا سفر ناجائز دې.

فی شرح التنویر ولا یبلغ مدة الایلاء الا برضاها .وفی ردالمحتار ص ۲۰۳ ج ۳ ویؤید ذالک قول عمر لما سمع فی اللیل امرء ة تقول . فسئل بنته حفصة كم تصبر المرءة عن الرجل فقالت اربعة اشهر فامر امراء الاجناد ان لا يتخلف المتزوج عن اهله اكثر منها .

## د موجوده تبلیغ درجه

**سوال:** که څوک اووائی چه داعرفی تبلیغ فرض دې دې دپاره ؛څه وخت مقررول نشته آیا داصحیح ده؟

**الجواب:** دټول دین تبلیغ شوې دې په دې کښې هیڅ کمې نه دې پاتې شوې حضرت مولانامحمدالیاس رحمة الله علیه په شرالقرون کښې یو اصلاحی پروګرام جوړ کړې ددې درجه دبدعت حسنه نه زیاته نه ده =دېته فرض وئیل دجاهل متجاهل رویه ده.

## قنوت نازله اوامام طحاوی

**سوال:** قنوت نازله وئیل جائزدی که ناجائز؟ حال داچې امام طحاوی په شرح معانی الآثارکښې فرمائی: فثبت لماذکرناانه لاینبغی القنوت فی الفجرفی حال الحرب ولافی غیره وهذاقول ابی حنیفه وابی یوسف ومحمدرحمهم الله تعالی؟

**الجواب:** کیدې شی امام طحاوی په نوروتصانیفو مختصروغیره کښې دقنوت نازله جوازذکرکړې وي اوکیدې شی امام طحاوی په محاربه کښې ددې نفی کړې وی اوپه شدت محاربه کښې ئې مشروع وئیلې وی اوهم داجواب صحیح دې.

## په غاړه یا په مټ تعویذ زوړندول

**سوال:** په مټ یا لاس باندې تعویزاچول جائزدی یاناجائز بعضې خلق ورته ناجائز وائی؟

**الجواب:** په جائز کلماتو سره لیکلې شوې تعویذجائزدې.

لما رواه ابو داؤد عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده ان رسو ل الله ﷺ کا ن یعلمهم من الفزع کلمات اعوذ بکلمات الله التامة من غضبه و شر عباده ومن همزات الشیاطین وان یحضرون .وکا ن عبدالله بن عمریعلمهن من عقل من بنیه من لم یعقل کتبه فاعلقه علیه .

اوپه کوم حدیث کښې چه،ان الرقی والتمائم والتولة شرک،راغلې نودتمائم نه مراد الخرزات التی تعلقهاالنساءفی اعناق الاولادعلی ظن انهاتوثروتدفع العین یعنی مشکنې اومرئ دې چه په هغې کښې دتبرک څه بوئی



قدرې هم نشته لکه چه درقی نه مراداسماءالاصنام والشیاطین والا دې صحیح کلماتو والانه دی.

## درمضان په فجرکښې تغلیس کول حنفی مذهب نه دې

**سوال:** په بعضې ښارونو کښې په رمضان کښې همیشه دفجرپه مونځ کښې تغلیس کولې شی ایاداداحنافو دمذهب مطابق دی.

**الجواب:** داامام ابوحنیفه رحمة الله په نزد باندې دحدیث په بنیادباندې دحاجیانودپاره په مزدلفه کښې تغلیس بهتردې په نوروځایونو کښې نه کما فی شرح التنویر والمستحب الابتداء باسفاروالختم به الا الحاج بمزدلفه. اوبخاری شریف کښې چه کوم راغلی دی چه دپیشمنی (سحری)اومونځ اودریدلو په مینځ کښې دپنځوسو یا شپیتو آیاتونو لوستلوپه اندازه فرق وو. اویاپه کور کښې دپیشمنی کولونه پس به ئې په تیزئ سره دسحر مونځ کولو. نودامحتمل دې چه داالوستل په ترتیل سره وویابغیردترتیل نه وواودپیشمنی داکورلرې وویانزدې وونوپه داسې محتمل روایتونوسره مذهب پریخودل بې باکی ده.

## په ختم القرآن فی التراویح کښې دحافظ قرآن پیسې اخستل دا اجرت علی الامامةدې اجرت علی التلاوت نه دې

**سوال:** حافظ قرآن چه په تراویح کښې په ختم القرآن باندې کومې پیسې اخلی داجائزدی که ناجائز؟

**الجواب:** فقهائې کراموپه تلاوت باندې اجرت اخستلوته ناجائزوئیلې دی لیکن څمونږپه ښارونو کښې حافظان تلاوت هم کوی اوامامت هم کوی.نودهغوی پیسې صرف دتلاوت بدل ګرځول اودامامت نه چپ کیدل بې وجې دی اوکه صرف تلاوت مرادکړې شی نودتلاوت نه خویوتراویح هم خالی نه دی نوبیابه په مطلق تراویح باندې اجرت اخستل ناجائزوی.بهرحال دحافظ په دې پیسوباندې انکارکول هندی مسئله ده حنفی نه ده. اودااجرت علی الامامت دې علی محض التلاوت نه دې.

### د جهاد اصغراو جهاد اکبر وضاحت

**سوال:** حدیث رجعنامن الجهادالاصغرالی الجهادالاکبر، حدیث مرفوع دي یاد یو راوی کلام دي؟

**الجواب:** ملاعلی قاری په موضوعات کبیر صفحه ۴۰ کښې فرمائي چه عسقلاني فرمائي چه دا په ژبوباندې مشهوردې خوداده ابراهیم بن عبله کلام دي کمافی الکنی للنسائی ذکرالحدیث فی الاحیاء ونسبه العراقی الی البیهقی من حدیث جابرقال السیوطی روی الخطیب فی تاریخه من حدیث جابر، اوپه دې حدیث کښې راغلی دی. الجهادالاکبرقال جهادالقلب. وفی روایه هومجاهدة العبد هواه. یعنی جهاداصغردکفراوباطل سره مقابله ده اوجهاداکبردخواهشاتوسره مقابله ده.

### د حدیث (سورالمومن شفاء) وضاحت

**سوال:** دسورالمومن شفاء، حدیث صحیح دې که نه؟

**الجواب:** ملاعلی قاری په المصنوع فی احادیث الموضوع ص ۱۴ کښې فرمائي قال العراقی هکذا اشتهر علی الالسنة ولا اصل له بهذا اللفظ.

### په ذوی الارحام کښې مفتی بهٔ قول

**سوال:** دذوی الارحام متعلق په احناف علماءکښې ډیر اختلاف دې په دې کښې غوره کوم یو دې؟

**الجواب:** دامام محمد رحمة الله علیه قول اشهرالروایتین دې اوهغه مفتی به هم دې. کمافی السراجیه ص ۴۰ وقوله محمد رحمة الله اشهرالروایتین عن ابی حنیفه رحمة الله تعالی فی جمیع ذوی الارحام وعلیه الفتوی.

### د بیت المال نه کیدلوپه صورت کښې دلاورث دمال حکم

**سوال:** چه دکوم سړی ذوی الفروض عصبات، ذوی الارحام وارثان نه وی. اوبیت المال هم نه وی نودهغه میراث به چاته ورکولې شی؟



**الجواب:** چه کله بیت المال نه وی نو نورو رشته دارانوته ورکول جائزدی (فلیراجع الی ردالمحتار ص۷۸۸ جلد۶)

### که ما دا کار اوکړو څه به زنا کار او غل یم.
### په دې الفاظو وئیلو کښې د قسم او کفارې مسئله

**سوال:** که چا دا الفاظ اووئیل چه که ما فلانکې کار اوکړو نو څه به زنا کار یم اوغل یم په دې کښې د قسم کفاره شته که نه؟

**الجواب:** په دې کښې کفاره نشته دې. کما فی الهندیه ص ۵۵ جلد۲ ولو قال ان فعلت فانازان اوسارق فلیس بحالف.

### که ما دا کار اوکړو نوڅه به یهودی یا نصرانی یم.
### په دې الفاظو وئیلو کښې د قسم او کفارې مسئله

**سوال:** که چا دا الفاظ اووئیل، که ما دا فلانکې کار اوکړو نوڅه به یهودی یا نصرانی یم په دې کښې کفاره شته که نه؟

**الجواب:** دا قسم دې په دې کښې کفاره واجب ده. کما فی الهندیه ص ۵۴ جلد ۲ ولوقال فهویهودی او نصرانی اونحو ذلک مما اعتقاده کفر فهویمین استحسانا کذا فی البدائع.

### د حانث کیدلو نه مخکښې ورکړې شوې کفاره به نه واپس کیږی

**سوال-** که چا د حانث کیدلو نه مخکښې کفاره ورکړه نو دا به واپس کولې شی یا نه؟

**الجواب:** دا به واپس کولې نه شی. کما فی الهندیه ص ۶۴ جلد ۲ ان قدم الکفارة علی الحنث لم یجزئه ثم لایسترد من المسکین لو قوعه صدقة کذا فی الهدایة.

### د سرکاری رؤیت هلال. کمیټۍ شرعی حیثیت

**سوال:** څمونږ په ضلع کښې یو غیرسرکاری رؤیت هلال کمیټی مقرره ده نو ده بعضې وجوهاتو په بناء باندې د سرکاری رؤیت هلال کمیټۍ اعلان نه شو اوریدلې آیا دا جائز دی؟

**الجواب:** خبرشئ چه رؤیت هلال کمیټی یو انتظامی او ضروری کاروائی ده په قران او حدیث کښې نه مطلوب ده او نه ممنوع بلکه مباح ده د مسلم شریف او ترمذی شریف په حدیث کښې د حضرت معاویه رضی الله عنه او د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه تصریح ده. چه حضرت معاویه رضی الله عنه د وخت بادشاه وو په شام کښې ئې د اختر کولو فیصله کړې وه او حضرت ابن عباس رضی الله عنه په مدینه منوره کښې په قصد سره په دویمه ورځ باندې د اختر کولو فیصله کړې وه نو ددینه معلومه شوه چه په دې معامله کښې د بادشاه وخت سره موافقت ضروری نه دی خصوصاً په کوم وطن کښې چه اسلامی نظام نه وی او په کمیټئ کښې د وطن دټولو اطرافو خیال ساتل ضروری وی او ځمونږ په وطن کښې د سرحد لحاظ نشته، بې شمیره حاجیان او عادلان خلق میاشت اووینی او ګواهی ورکوی او کمیټی اعلان کوی چه میاشت په نظر رانغله اوحال داچه په سرحد کښې ټول خلق میاشت وینی، نو د یوې علاقې رؤیت به په ټول وطن باندې حاوی کیږی دانه چه د پنجاب او سندهـ نه لیدل دې په ټول وطن باندې لاګوشی. اوپه کمپیوټر باندې بناء کول دحدیث انا امة امية لا نكتب ولا نحسب په بنیاد باندې دعلم هیئت اوعلم حساب په باریکو باندې بناء کول غیرشرعی امردې. اوانسانی ساخت دې.

### په یو. دوه. درې طلاق.. کښې د پښتونخاص محاوره

**سوال:** په پښتنو کښې دا رواج دې چه کله ځوک ښځې ته اووائی، ته طلاقه ئې یو، دوه، درې، نو دا مغلظه ګرځی، نو آیا دا رواج صحیح دې یا نه؟

**الجواب:** دا رواج صحیح نه دې، (۱) ځکه چه ددې نه مراد شماردې د طلاقو انشاء نه ده. (۲) دا رنګې دا د شمار الفاظ دی په دې کښې حکم شته یانه، نشته. (۳) که په دې کښې حکم اومنلې شی چه ددې معنی یو طلاق دې دوه طلاقه دی درې طلاقه ده، نو د محاورې په بنیاد سره پکښې د ،،په،، لفظ راوړل ضروری دی یعنې ته په یو طلاق طلاقه ئې، ته په دوه، ته په درې، او حال دادې چه ،،په،، لفظ نشته. (۴) که دا سړې د دریو طلاقو نیت اوکړی او دا ،،یو،، دوه، درې، د هغه دنیت تفصیل وی نو په صریح کښې د دریو نیت غیر صحیح دې.



### په عصبات کښې علاتی رور. په اعیانی وراره باندې مقدم دې

**سوال:** علاتی رور په اعیانی وراره باندې مقدم دې که نه؟

**الجواب:** علاتی رور په اعیانی وراره باندې مقدم دې. کما فی الهندیه ص ۴۵۱ جلد ۶ فی العصبات ثم الاب ثم الجد اب الاب وا علا. ثم الاخ لاب وام ثم الاخ لاب. ثم ابن الاخ لاب وام.

### په دوه مختلفو رمضانونوکښې په روژې ماتولو باندې د جدا جدا کفارې مسئله

**سوال:** که روژه دار په دوه رمضانونو کښې جماع اوکړی نو دې په کفاره تداخل کولې شی اوکه نه د هرې روژې دپاره به ځان ځان له کفاره ادا کوی؟

**الجواب:** د ظاهر الروایت مطابق مسئله داده چه د هر یو دپاره به ځان ځان له کفاره ورکوی. کما فی الهندیه ص ۱۰۱ جلد ۲ ولو جامع فی رمضانین ولم یکفر الاول فعلیه لکل جماع کفارة فی ظاهر الروایة.

### که خپلوان نه وی نو پردې خلق هم د ښځې لاش دفن کولې شی

**سوال:** که د ښځې خپلوان نه وی نو پردی خلق ئې دفن کولې شی که نه؟

**الجواب:** پردی خلق ئې دفن کولې شی. کما فی البدائع ص ۳۲۰ جلد ۱ ولو لم یکن فیهم ذورحم فلاباس للاجانب وضعها فی قبرها.

### د باغ او میوه جاتو متعلق مسائل

**مسئله** (۱) که یو مالک د باغ نه په عشر کښې میوې واخلی نو دا اسان کار دې چه عاشر (د زکوة ذمه وار کس) دا زکوة په خپل ټرک کښې یا د کرائې په ټرک کښې یا د باغبان په ټرک کښې داحسان په طور یوسی، او مالک د زکوة نه علاوه په میوه جاتو کښې مختار دې چه چرته منډئ ته ئې یوسی، خو بهرحال دا کرایه وغیره به ددې مالک په ذمې باندې وی.

**مسئله** (۲) که د باغ مالک ټولې میوې نزدې یا لرې منډئ ته یورلې نو خرچې به ټولې دده په ذمه باندې وی او د ټول قیمت نه به عشرورکوی، اګرکه د مقامی عشر په حساب سره څو چنده وی.

**مسئله** (۳) که ځوک ټولې میوې واخلی نو کرایه به په خریداروی اوکه د باغ مالک ته به د مقامی نرخ په حساب سره د زکوة قیمت ادا کوی،

## د ریالونو او روپو په مینځ کښې د بیع ناآشنا مسئله

**سوال:** که د یو سړی سره زر ریالونه وی او هغه د سوداګر خواته لاړ شی او دا اووائی چه د هزار په مقابله کښې په پاکستان کښې څما څوی ته شپاړس زره روپئ ورکړه، داجائز دی که ناجائز؟

**الجواب:** په دې معامله کښې ظاهری طور سره سوداګر مشتری (اخستونکې) هم دې او بائع (خرڅونکې) هم دې، چه دا ناجائز دی، لیکن د دې مؤکل په امر سره د یو رائې په بناء باندې دا معامله جائز ده.

**كما فى البزازية على هامش الهندية ص ٣٧٥ جلد ٥ وان امر ه الموكل ان يبيعه من نفسه او اولاده الصغار او ممن لايقبل له شهادة فباع منهم جازوهو قول الطحاوى.**

دا رنګې عربی او پاکستانی نوټونه هم بدل دی کتغائر الثوب الهروی والمروی. چه په دې کښې تفاضل او نساء، دواړه جائز دی.

**کتغائر الثوب الهروی والمروی چه په دے کی تفضال اونسأ دواڑه جائز دی: قلت نظير هذه الوكالة كارسال الرقم بالبريد .**

## په دعا بعد السنت کښې اختلاف په غوره والی کښې دې په بدعت او سنت کیدوکښې نه دې

**سوال:** په کوم مونځ کښې چه د فرضونه پس سنت وی نو هندوستانی علماء د سنتو نه مخکښې دعا کوی او سلیمانی علماء د سنتونه پس دعا کوی، کوم یو قول غوره دې؟

**الجواب:** پیغمبر علیه السلام نه د سنتو نه مخکښې دعا کړې اونه روستو، دا د پیغبر علیه السلام فعل دې او د پیغمبر علیه السلام په قول کښې (دبر المکتوبات) لفظ راغلې دې او د (دبر) په معنی کښې اختلاف دې، هندوستانی علماء ترې نه روستو متصل مراد کوی او څمونږ سلیمانی علماء مثلاً ابن الهمام، ابن عابدین، ابن نجیم صاحب د خلاصة الفتاوې صاحب د بزازیه وغیره تول د (دبر) نه مابعد مراد کوی که متصل وی او که منفصل وی، او د فقهی دلائلو په وجې سره سلیمانی علماء دې دویم قول ته ترجیح ورکوی او دا اختلاف په اولویت کښې دې په بدعت او سنت کیدلو کښې نه دې. (تمت جلد اول)